بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنی او په افغاني تاریخ کې بې
سارې په زر ګونو جدید او نوو مسئلو باندې مشتمل

# تفسیر ایوبي حنفي

دوهم ټوک ۲

تالیف او تصنیف

د علامة العصر ابو الفضل شیخ التفسیر والحدیث فقیه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبدالله الایوبي

الکندهاري السلیمانخېلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالی

مکتبة القراءة والتجوید

کانسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه


د کتاب نوم ........................ تفسیر ایوبي پښتو دوهم توك

مؤلف.......................... الحاج مولنا محمد عبيد الله الايوبي الكندهار السليمانخيلي الحنفي حفظه الله تعالى بفضله الوهبي

کمپوزر............................حبيب الحق حقاني

ټایپ ............................ حقاني کمپيوټر اداره

نشر کوونکې اداره .............. مکتبة القراء ت والتجويد کاسي روډ کوټه

د چاپ ځای ........................ لاهور پاکستان








بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلواة والسلام على من لانبي بعده .

**وبعد**: هغه ذات لره دي تولي ستاينې وي كوم چا چي له عدم څخه ودې تولو كائناتو لره وجود ور په برخه كړ، او درودونه او سلامونه دي دده پر اخري استاذي حضرت محمد ﷺ وي، كوم چا چي راته د دين حقه لار ښودنه وكړه، او د خداى ﷻ كامل رحمتونو دي دده پر ملگرو وي، كوم چي د حق معيار او د هدايت ستوري دي .

محترمو لوستونكو: علماء كرام لكه څرنگه چي صادق مصدوق عليه السلام فرمانيلي دي د انبياء كرام عليهم الصلواة والتسليم وارثان دي، تر څو چي الله تعالى ددې دنيا ثبات ولري، نو دوئ به د الله تعالي ومخلوق ته لارښوونه كوي، څو كله دا لارښونه د ژبي په تقرير، كله د قلم په تحرير وي، خو زما په صحيح اند كومه لارښونه چي




الطبعة الأولى

١٤٢٥ هجري – ٢٠٠٥ ميلادي

**مكتبة القراءة و التجويد**

كوئته – باكستان

**MAKTABTUL-QIRRAT WALTAJWEED**

KANSI ROAD

QUETTA


Scanned by CamScanner




د قلم په تحرير وي د هغې گټې ډېرې وې، ولې چې يو خوا دا چې هغه د ډېرو انسانانو تر لاسونو پورې رسېږي او بل دا چې تر ډېرې زمانې پورې پاتې وي. دا يو څرګند حقيقت دی چې د امت محمديه ﷺ پوهانو او علماوو که د يوې لورې د دين خدمت د درس او تدريس په ذريعه سره کړی دی، نو ورسره يې د قلم ټوك هم په كار اچولی دی، چې په همدې وجه نن زموږ په كتابونو كښې د دين مسئلې هم هغسې روغې رمتې پاتې دي ولې چې د ژبې په الفاظو اوتعبيرونو كښې ډېر فرق راځي، خو قلم يواځنی لاره ده چې نقش يې هم هغسې د پخوا په شان پاتې وي، كه څه هم علماوو په هر وخت كښې پخپلو وعظونو او نصيحتونو سره هم د امت لارښونه كړېده. او اوس يې هم كوي، خو د قلم په پرتله يې ونډه زياته ده بيا هم د كتابونو د تصنيف او تاليف چې كومې گټې دي هغه ورڅخه ترلاسه كېدلای نه سي.

دالله تعالی په لوي فضل او احسان سره د وخت مشهور صاحب تقرير، صاحب تحرير، صاحب تصنيف والتاليف او د افغانانو په غم شريك زما استاد او زما مربي علامه زمان **حضرت مولانا محمد عبد الله الايوبي** السليمانخيلي الحنفي الكندهاري دام فيضه الجاري، كه د يوې خوا په قسم قسم مصروفياتو، او د حديثو او قرآن په درس او تدريس اخته وو، خوله هغه سره سره يې هغه پر دين مين خلگ هم هېرنه كړه، كوم چې په نورو وطنو كښې د هجرت ژوند تېروي، او د خپل ديني او روحاني استاذانو څخه په فراق كښې دي، او يا هم هغه مسلمانان چې د اطرافو په گوټو كښې خپل ژوند تېر وي، خو يو داسې كامل استاذ ورته ميسر نه وي، نو يې قلم را اوچت كړ تر داسې چې د الله تعالی په فضل او كرم

سره یې هیڅ داسې یو کتاب پرینښود، کوم ته
چې د حواشي او یا نکاتو ضرورت و، تر داسې
چې درسي اوغیر درسي کتابونه یې په خپلو
حواشیوو سره ښائسته کړه.

## خو یواځنی ارمان چې د افغانانو په زړه کښې و

هغه په خپله مورنی ژبې پښتو باندې د وخت پر نوو مسئلو باندې مشتمل یو تفسیر وو، د کوم اعزاز چې الله تعالي وده ته وریه برخه کړ، چې دا دی ستاسو په لاسونو کښې یې اوس دوهم ټوک لکه خلانده لمر وځلېد، کوم چې په یوه مکمله سیپاره باندې محیط دی، لکه دا ویاړ چې الله تعالي وده ته وریه برخ کړ همدارنګه د چاپ او کمپوزولو چار یې د ښه معیار یواځنی اداري مکتبة القرا۰ت والتجوید کوټي وسرته ورسولې، چې هسې دا ویاړ بیا الله تعالی ددې اداري وچلونکو ته وریه برخه کړ.

د الله تعالی څخه ورته بشپړه صحت، په قلم کي روانګي، او په دماغ کښي ورته نور هم ځتوالی غوارو

والسلام

**د مکتبة القرا.ت والتجوید باني**

قاري فضل الحق حقاني کوټه بلوچستان

بسم الله الرحمن الرحيم

اَلْحَمْدُلِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَآلِهٖ وَصَحْبِهٖ اَجْمَعِيْنَ.

**درویش وایي**:- چي هم دا اوس زه شروع کوم په تفسیر شریف یعني په دوهم جلد د جمعې شریفې د سحار په وخت کي په توفیق د رب العزت جل سلطانه په دوهم (۲) د ربیع الثاني اوائل /۱۴۲۵ھ ق

قال تبارك وتعالى

**وَاِذِ اسْتَسْقٰى مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ**

او په یاد کړئ هغه وخت چي طلب د سقیا یعني د ابو وکړی موسی ﷺ لپاره د قوم نو موږ ده ته وویل چي ته بخپلي لکړي ډبره ووهه، یعني لـه هغې ډبري د خدای ﷻ په عظیم قدرت خپل به تاسي تـه اوبـه د چینلو وغیره در کړي.

**درویش وایي**:- وایي چي دا هغـه وخت و چي بني اسرائیل په تیه کي وه اوبه نه وې او دوی تږي وه.

**پوهـنـه**:- چي دا لکړه د آس د آدم ﷺ د جنت لـه درختـی څخـه را استلې وه چي وږدوالی یې لس (۱۰) گزه وو، پر قد د موسی ﷺ او شکل یې داسي و آ نو د غـه دوه سرونه یې په ظلمت کي د شپې لکـه څراغان لګېدله. او دا لکړه قرناًبعد قرن و انبیاء ﷺ ته پـه میـراث پاتـه سوې وه

حتی چي د شعیب ﷺ لاس ته رسیدلي وه او شعیب ﷺ چي د موسی ﷺ خسر و موسی ﷺ ته يې ورکړه

**یوه**:- چي دا بل نعمت دی پر اسلافو د یهودیانو في زمن موسی ﷺ.

**فائده**:- په دې ډبره کي اختلاف دی اول دا چي الف ولام د الحجر د عهد لپاره دی او که د جنس لپاره.

**درویش وايي**:- الف ولام جنسي دی یعني یوه ډبره له ډبرو څخه که څه هم لوی دلیل دی د قدرت الهي او ستره معجزه ده د موسی ﷺ ولي ډبره که معینه وي شاید د چا وهم په و دې ته ولاړسي چي د دې ډبرې به داغه خاصه وي چي هر څوك چې په لرګي و وهي دابه اوبه راباسي لکه خاصیت د آهني روبا په راکشولو کي د وسپني وخان ته. او په مطلق ډبره کي دا توهم ګنجائش نه لري. مګر بیا هم راویان وايي مثلا ابن عباس ﷺ وايي چي دا مربع معینه ډبره وه چي د موسی ﷺ سره به په توبره کي ورسره وه په مقدار د سرې د سر وه، او عطاء ﷺ هم د ابن عباس ﷺ تائید کوي چي دی وايي چي دې ډبرې څلور مخه درلوده او له هر مخه څخه درې چینې راتلې چي دولس کېږي (۱۲) او بني اسرائیل هم دولس (۱۲) قومه "سبط" وه یوه یوه چینه به یو یو قوم ته روانه وه.

او له قتاده ﷺ روایت دی چي دا ډبره د کوه طور چي موسی ﷺ د اوبو لپاره ورسره ګرځول هر ځای چي به په تیه کي بني اسرائیلو وارول او د اوبو ضرورت به پیدا سو نو موسی ﷺ به لکړه ووهل دولس (۱۲) چینې به خندې رواني سوې ډبرې خوړې اوبه يې وې، او شپږ لکه قوم ته موسی ﷺ بې اوبه ورکولې او چي باربدل به بیا به موسی ﷺ لکړه ووهله اوبه بې وچي سوې

او بعض مفسرين وايي چې روايت په بخاري او مسلم کې هم موجود دی چې بني اسرائيلو چې به غسل کاوه لڅ لڅ به وه او يو د بل عورت ته بې سره کتل او موسیٰ ﷺ به ستر د عورت کاوه، نو بني اسرائيلو په خپلو کې سره ويله چې موسیٰ ﷺ چې دونه ستر کوي چوره به وي د شرم له سببه لڅ زمونږ سره نه لمبيږي، نو خدای ﷻ دا تهمت د دوئ پر خپل دوست باندي نه و پېرزو نو موسیٰ ﷺ يوه ورځ ګوښه له خلګو څخه په يوه واله کې لمبېدی اولنګ يې نه و وهلی او کالي يې پر يوه ډبره ايښي وه نو دی چې اوبو ته ورشوه سو ډبري د کالو سره ميدان کړه، موسیٰ ﷺ لڅ پسي راووتی او نعري يې کړې " ثوبي حجر ثوبي حجر" يعنې ودرېږه زما کالي راکړه خو ډبره نه درېدله او پر څو مجلسه د بني اسرائيلو تېره سوه او موسیٰ ﷺ لڅ په پسې و بني اسرائيلو چې وليدی موسیٰ ﷺ نو يې وويل چې زمونږ ګمان غلط و ولې چې موسیٰ ﷺ خو چوره نه دی.

نو ډبره ودرېده موسیٰ ﷺ چې کالي واغوسته نو يې ډبره يو څو لکړي ووهله، په حديث شريف کې داسي راغلي دي چې د موسیٰ ﷺ له وهلو څخه په قدرت د خدای ﷻ پر ډبره تغمې پيداسوې لکه سرې چې په لرګي ووهي نو جبرائيل ﷺ وه موسیٰ ﷺ ته وويل چې د اوبره د رسره واخله "فلی فيه قدرة ولک فيه معجزة، نو موسیٰ ﷺ ډبره په توبره کې واچول.

**درويش وايي:-** چې مظهري وايي چې راتلل د جبرائيل ﷺ په بخاري او مسلم کې نسته نوره قصه روح البيان او مظهري په اجمالاً او تفصيل سره راوړې ده.

**درويش وايي:-** چې دا قصه خو بيله کوم شکه معجزه د موسیٰ ﷺ وه لکن اعجب تردې معجزې معجزه د رسول کريم ﷺ ده چې بخاري او مسلم او اصحاب التصانيف الصحاح يې روايت کوي چې څو واره

پېښنه سوې ده چې په بعض سفرو کې ﷺ بلکه په مدینه منوره کې هم چې اوبه به نه وې د اوداسه او رسول الله ﷺ ته به یو پیاله قدر اوبه د اوداسه به چاراوړې چې به هغې پیالې کې به د علیه السلام په پراخه توګه لاس مبارك نه ځایه دی او صحابه کرام ﷺ ورته راغله چې نوري اوبه خو نسته بیله دغې پیالې د اوبو. نو علیه السلام به پر پیاله لاس مبارك کښېښوی راوي د حدیث وایي چې زما قسم په خدای ﷺ دی چې ما په سترګو ورته کتله چې د هرو دوو ګتو د علیه السلام به چینه د ابو رابهېدله.

په بعض واقعاتو کې به له راوي څخه چا پوښتنه وکړه چې "کم کنتم" یعنې تاسې څو کسان واست چې په دغو اوبو مو اودسونه تازه کړه؟ نو هغه به ورته وویل "لو کنا مائة الف لکفانا لکن کنا الف وخمس مائة" او په بعض واقعاتو کې به راوي ورته وویل "کنا ثلاثین رجلا" په هر حال راوتل د ابو له ډېرو خو رواجي کار دی لکه چینې د غرو. لکن راوتل د زلالو اوبو د ویښو او غوښو څخه هیڅ امکان نه دی.

ولهذا:- موږ وویل چې معجزه د رسول کریم ﷺ تر معجزې د موسی ﷺ اعجبه ده، او آنحضرت ﷺ د بعض دغو واقعاتو په باره کې داسې وفرمایله ﴿حی علی الطهور المبارك والبرکة من الله عز وجل﴾

پوهنه:- چې درویش ددغې معجزې ﷺ نقل بالمعنی وکړی، ولې چې تفصیل د ټولو روایاتو په لفظ سره عربي او بیا د هغو الفاظو ترجمه په پښتو کول ډېر وخت او ځای غوښتی، زه امید کوم چې ناظران دې کتابونه د صحاح سته وو مطالعه کړي نو به تصدیق زما د نقل ورته حاصل سي وباالله التوفیق.

# فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا

نو را ووتلې له هغې ډبرې څخه دولس (۱۲) چينې

**پوښتنه**:- په نفس وينا د خداى ﷻ خو دولس (۱۲) چينې نه دي راوتلي؟

**ځواب**:- هو لكن ټوله مفسرين رحمهم الله وايي چې دغه ايت قرآني يعني "فانفجرت" د محذوف سره مربوط دى يعنې "فضرب فانفجرت آه

**پوښتنه**:- چې "فانفجرت" او "فانفجست" چې په بل آيت قرآني كې راغلي معنا يې وه آه عند اكثر المفسرين، او دا دولس (۱۲) چينې په عدد د اسباطو د بنې اسرائيلو وې، مفسرين رح وايي چې دا اوبه به ډېرې شېريني وې او د هر قوم او سبط لپښتي معلوم وه، حكمت د دولسو (۱۲) چينو يا تضاد په منځ كې د قومو د بنې اسرائيلو او يا عدم الازدحام على عينٍ واحد دى فافهم.

**فائده سنيه**:- في دفع خرافات اهل الطبعية.

**درويش وايي**:- چې راغب اصفهاني رحمه الله او قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چې بعض جاهلان د علم طبعي

**درويش وايي**:- چې بعض ناپوهان د مكاتبو او پوهنځيو د اسلامي ممالكو چې دوئ خان ته روشن فكران وايي او سائنس دانان هم وايي او په حقيقت كې هغه جاهل ترين د انسانانو هم دوئ دي د دغې معجزې د موسى عليه السلام چې په مذكوره آيت قرآني كې خداي ﷻ ذكر كړه منكر دي او په دې انكار سره په اتفاق د امت مرحومه دوئ كافران دي، دوئ وايي چې راوتل د چينو په ضرب د موسى عليه السلام څرنګه امكان پذير دى،

راغب رحمه الله وایي چې اولاً دوئ انـدازه د قدرت عظیمه د رب العزة ﷻ نه ده لګـولې چې خـداي ﷻ څرنګـه تغیـرات خارجـه عن العـادة البشـریة پـه طبائعو کې د مخلوقاتو او کائناتو راولي ومع ذالك، د دوئ پر طریقـه د عقـل صرف چې د دوئ څخـه څـوك پوښتنـه وکـړي چې یـوه ډبـره چـې د مقناطس په نامه یادېږي چې په پښتو یې آهن روبا بولي څرنګه وسپنه لـه لېرې ځای څخه وځان تـه راکشـه وي؟ او یا پوښتنـه ځندي وکړه سي چې یوه ډبره سته چې پـه نامـه د باغض الخل یادېږي یعني ددې ډبرې د سرکې سره بغض اوعداوت دی حتی چې پـه یو لوښي کې چې سرکه وي او دا ډبره ورایله کړي په سرکه کې نه غوټه کېږي بلکه د باندې تر لوښي اوسرکې راوزي، او ابـو العلاء المغربي وایې په خواصو کې د ډبرو یو قسم ډبره سته چې حلاق الشعریه یې بولي یعني د وېښتانو خریونکې چې د هرځای په وېښتانو پورې یې ومومږي هغه پاك ایسته کوي او داسې سپکه ډبره ده چې دا دومره وي لکـه د مېچنې پل چې وې تلې یو درهم تول یې وي، او که په خونه کې دا ډبره پرته وي چې هلتـه ښځې یانر سر ږمنځه وي او ورېښتان ځندي تویېږي دغه ډبره داټوله وېښتـان وځان تـه راکشه وي حتی چې سرې ورته وګوري خیال بې داسې چې داده وېښتانو کوټه ده نو د دغو ډبرو په باب کې که څوك د دغو جاهلانو څخه پوښتنـه وکړي چې مذکوره ډبرې ولې دا خارج عادة الاحجار کارونه کوي، دوی په جواب کې وایي چې دا کارونـه د دغـو ډبرو طبعیـة دی یعنـي صنعت د حکیم مطلق جل سلطانه کارنه په کښې لري.

نو مـوږ ودوي تـه وایـو چـي تاسي نـو ولې ددې آیت څخه انکار کوي شاید چې ددغـه موسوي ډبرې دي هـم دا طبیعت وو چې د مخکې څخه بې اوبه راکشولې.

# قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ كُلُوا وَاشْرَبُوا مِن رِّزْقِ اللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿٦٠﴾

په تحقیق معلوم وورتولو انسانانو ته یعني هر سبط ته د یهودیانو خپل ځای د شرب یعني خپل لښتی چي د بل پر لښتي او به نه ځښي "وقد مر وجهه" او تاسي خورک کوئ په تقدیر د قلنا یعني چي ربط نحوي د ماقبل سره صحیح سي او تاسي څښل کوئ د رزق څخه د خدای ﷻ یعني چي من او سلوی ده، او د ډبري اوبه دي او تاسي فساد مه کوي په مځکه کي.

**پوهه** [illegible] - چي "عثی" سخت فساد ته وایي نو مفسدین یې حال مؤکد دی، بیضاوي، مظهري او نور مفسرین رحمهم الله هم وایي چي دې حال مؤکده ته څه ضرورت وو، دوئ وایي چي که څه هم د "عثی" استعمال خو غالباً په فساد کي وه لکن بعض "عثی" خو فساد نه وي لکه مقابله د ظالم متعدي په فعل سره د هغه او بعض "عثی" مستلزم وي لکن صلاح راجح لره وي لکه خضر ﷺ چي هغه نابالغه کشنی مړ کړی کما سیناتي في القرآن، او یا خضر ﷺ د هغه کښتی چي دی او موسی ﷺ او نور خلک په کښتی کي سپاره وه د ابو وخوا ته تخته وکښل کما سیناتي في هذ التفسیر ان شاء الله تعالي

**درویش وایي:-** چي ګویا د "عثی" تفسیر پر دې تقدیر نفس تجاوز پر بل دی نو که فساد وي کما هو المتعارف اوکه مقابله وي او که اصلاح راجح په کښي وي او مظهري یو بله توجیه کړې والله اعلم بصحته

پوښتنه:- څه ضرورت وو چې خداي ﷻ موسی ﷺ په غرق کې د فرعون په وهلو د دریاب په لکړه سره، او یا په طلب د بني اسرائیلو په وهلو سره د ډبرې په لکړه سره امر کړی خداي ﷻ خو پر فلق البحر او پر اخراج د اوبو بېله ضرب العصا هم قادر وو ؟

ځواب:- د خداي ﷻ عادت دی چې په دار الاسباب کې مسببات په اسبابو پورې مربوط کړي دي، او بل حکمت الهي دا وو چې انسانانو ته دا وښيي چې ټوله مسببات صرف په قدرت الهي پورې اړه لري او اسباب موثر في الحقيقة نه دي کما في الموضعين المذکورین. ولې په دغو دوو ځایو هر عاقل په دې پوهېږي چې ضرب العصی موثر حقیقي د فلق البحر او یا د اخراج د اوبو خونه دی.

## وَإِذْ قُلْتُمْ يَٰمُوسَىٰ لَن نَّصْبِرَ عَلَىٰ طَعَامٍ وَٰحِدٍ

او په یاد کړئ هغه وخت چې تاسې ووېل یعنې ستاسې اسلافو په زمانه کې د موسیٰ ﷺ چې موږ هر ګز صبر نه سو کولای پر دغه یوه خوراک چې من او سلویٰ وه چې په قسمت کې موږ ته مقرردي.

پوښتنه:- چې د وحدت معنا داده چې بدلېږي نه، ورنه دا خو دوه طعام وه کما لایخفی.

پوښتنه:- چې دا بیان د بل جنایت دی د اسلافو د بني اسرائیلو چې دوئ نا شکري د نعمت د خدای ﷻ چې من او سلوی وه وکړه.

پوښتنه:- مخاطب په آیت کې خو بني اسرائیل موجودین په زمانه کی د علیه السلام دي او ناشکري د نعمت د خداي ﷻ خو ددوئ اسلافو کړي وه ؟

**جواب**:- لکن چونکه د حاضرینو د عصر نبوي ﷺ او د دوئ د اسلافو سره مشابه وه نو ځکه یې مخاطب دوئ کړه یعني لکه اسلافو د دوئ چې له نعمت الهي ناشکري کړې وه چې من او سلوي وه، حاضرینو د عصر نبوي ﷺ هم ناشکري د نعمت الهي چې آنحضرت ﷺ دی وکړه یعني ایمان یې پر رانه وړی.

**سوال**:- حاضرین د عصر نبوي ﷺ په نعمت والي د علیه السلام پو هېدله؟

**جواب**:- هو ولي دوئ به دده ﷺ په راتګ خلګو ته زېرې ورکاوه او پر مشرکانو بې د جنګ په وخت کي د رخواست د نصرت کاوه په روئ د علیه السلام کما یدل علیه قوله تعالی ﴿ وکانوا یستفتحون ﴾ الایة.

**پوهنه**:- چې قاضي بیضاوي رحمه الله وایي چې چونکه "من" او "سلوی" طعام د اهل تلزز وه او بني اسرائیل کښت کاره خلګ وه نو د دوئ و خپل عادي خورک ته اشتیاق وسو، یعني سبز یجات وغیرها کما سیناتي نو ځکه یې له من او سلوی څخه بېزاري ښکاره کړه.

فَادۡعُ لَنَا رَبَّكَ يُخۡرِجۡ لَنَا مِمَّا تُنۢبِتُ ٱلۡأَرۡضُ مِنۢ بَقۡلِهَا وَقِثَّآئِهَا وَفُومِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَاۖ

نو ته خواست وکړه زموږ لپاره

**پوهنه**:- چې کلمه د "فا" سببیه ده یعني زموږ عدم صبر پر طعام راحد باندې سبب دی ستاسو د سوال د خداي ﷻ څخه ستا چې موږ ته راوباسي او ښکاره کړي.

**پنځمه خبره**:- چي "يخرج" مجزوم دى چي جواب د امر دى كما هو القانون النحوي او مفعول د يخرج محذوف دى اي شيئا. د بعض هغه شيانو څخه چي مځکه يې شنه کوي.

**شپږمه خبره**:- چي اصل د "مما" من ما وو نو كلمه د من تبعضي ده او كلمه ما موصله ده.

**اوومه خبره**:- د بعض مافي الارض سوال له دې جهته دوئ وکړی چي ټوله ماتنبت الارض تر حصر وتلي دي نو سوال يې ممكن نه دى.

**فائده**:- نسبت د انبات و مځکي ته سره ددې چي شنه کونکی خو خداي ﷻ دى، مجازي دی چي قابل يې په ځاى کي د فاعل درولی دی كما في انبت الربيع البقل، د بقل څخه يعني د سبزي کاريو څخه د مځکي مراد هغه سبز بجات دي چي خوړل کېږي لکه پالك بېنډى، گندنه مارو کدو شيرين کدو گوبی، الى غير ذلك.

**اتمه خبره**:- چي د اعراب د لاري بعض مفسرين وايي چي "بقلها" بدل دی د "ما" موصوله څخه په اعاده د حرف جر، او بعض مفسرين رح وايي چي "من بقلها" حال دى د ضمير څخه چي د "تنبت" سره مقدر دی او راجع و "ما" موصوله ته دى والتقدير ماتنبه الارض كائنا من بقلها او بادرنگ يا چمبرخيال د مځکي، او د فوم تفسير چاچي په اوږد كړى دى هغه ضعيفه تفسير دى ولي د معظم د خوراكي موادو ذكر چي غنم دي نه راغلي، نو ښه تفسير هغه دى چي معظمو مفسرينو يې تفسير کړيدی لكه تفسير كبير بيضاوي روح البيان او مظهري د عطاء رحمه الله څخه هم روايت کړی دی يعني غنم.

فروپیښ وایي:- چي د ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي فوم دوډی، د غنمو ته وایي مراد د ماتنبت الارض انبات بالواسطه مراد دی ولي چي ډوډی خو د مخکي څخه نه شنه کیږي او عدس ټولو اقسامو ته د دال شامل دی او ماشو ته هم او بصل په پښتو پیازو ته وایي وټولو اقسامو ته د هغه.

قَالَ اَتَسۡتَبۡدِلُوۡنَ الَّذِیۡ هُوَ اَدۡنٰی بِالَّذِیۡ هُوَ خَیۡرٌ

نو موسٰی ﷺ دوئ ته په استفهام انکاري وویل یعني دا خواست مه غواړئ، آیا تاسي بدلوئ ادنٰی شی یعنې بېکاره او اخس شی یعنې چي تاسي یې ذکر وکړي په هغه شي سره چي هغه خیر او ښه دي یعني چي من او سلوٰی دي یعني تاسي چي په عوض کي د ښه شي بېکاره شی غواړئ.

فائده:- وجه د خیریت د من او سلوٰی داده چي اول خو بې تکلیفه او خواري تاسي ته رسېږي، او بل د بدن انساني لپاره تر مذکوره شیانو چي تاسي یې مطالبه کوئ گټور دي، او تر ټولو لوی خیریت او فضیلت یې دادی چي په اخرت کي حساب هم نسته، م، ر، ب، د.

اِهۡبِطُوۡا مِصۡرًا فَاِنَّ لَکُمۡ مَّا سَاَلۡتُمۡ

فروپیښ وایي:- چي چونکه بني اسرائیلو اصرار پر خپل مطالبه باندي وکړی نو خدای ﷻ دوئ مخاطب کړه چي تاسي ووزئ او ولاړسئ مصر ته ولي چي تیه خو بیابان دی او ستاسي مطلوبه شیان په دې دښت

کي نه برابرېږي بلکه دا شیان په امصارو کي دستیاب کېږي نو ستاسي لپاره ب- مطلوبه شیان هوري تاسي ته میسر سي .

**پوهنه**:- چي "انّ" فانّ لکم آه کي علة دی د هبوط و مصرته .

**فائده**:- ضحاك وايي چي مراد د مصر څخه مصر فرعون دی .

**سوال**:- مصر فرعون خو علم او نوم دی نو غیر منصرف دی نو تنوین يې ولي ورکړی دی ؟

**جواب**:- عجمه چي ساکن الاوسط وي صرف يې روا دی، کَهِنْدٌ ونُوْحٌ ورَغدٌ کما تقرر فی النحو، او مظهري د مصر یو ښار د ښارو اراده کړی دی، اوروح البیان وايي چي مصر فرعون مراد نه دی او نه مطلق مصر مراد دی بلکه مراد بیت المقدس دی ﴿ لقوله تعالی یاقوم ادخلوا الارض المقدسة التي کتب الله لکم ﴾ نو سره ددې تصریح په ارض مقدسه سره به څرنګه اراده د مصر فرعون روا وي بیضاوي اراده د مصر فرعون په صیغه د ضعف راوړي ده اشاره کړې الی ماقال روح البیان لانه الاظهر مګر تائید د ارادې د مصر فرعون هم سته ولي چي په مصحف کی د عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه غیر منون راغلي دي قاله البیضاوي رحمه الله

**فائده**:- په نحو کي وايي چي په نومانو کي د ښارو او یا د وطنو په تاویل د بلدة او قریة واخلې نو غیر منصرف لاجتماع العلمیه والتانیث فیه، او کې په تاویل د بلد او مکان واخلې نو منصرف دی لعدم التانیث

**پوهنه**:- چي مصر په اصل لغت کي لوئ ښار ته وايي اوګاهي قریه جامعي ته هم مصر وايي .

# وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ

او وهل سوی دی پر دوئ باندې ذليل والی، سپکوالی. او مسکنت او فقر.

**پوښتنه**:- چې ضربت دلته یا په معنا د احطیة دی کما في قولهم ضربت علی فلان العقبة اذا احیطت به، او یایی معنا داده الصقت بهم نو ماخوذ دی د ضرب الطین علی الحائط یعنی ختې یې په دیوال پورې ومښتلې.

**پوښتنه** :- چې دا جزاء د ناشکرۍ ددوي د نعمت الهي ده، او سپک والی د دوئ دادی چې په ټوله نړۍ کې دوي خوار او ذلیل دي، او فقر د یهودیانو مراد ځندي فقر القلب دی او حرص دمال دی، او یامراد دی دا چې یهودیان که څه هم اغنیاء وي لکن په لباس د فقر او ذلت ژوند کوي ددې سببه چې پر موږ باندې جزیه یعنې مالیه او سرغم بالانسي.

**پوښتنه**:- خدای ﷻ د یهودیانو د ذلت او مسکنت څخه اخبار وکړی، او سره ددې یهود خپل مستقل حکومت په دې زمانو کې لري بلکه داسې جابر حکومت لري چې شاوخوا ممالك عربيه اسلامیه لکه مصر، شام، فلسطین، بیروت حتی سعودي عربستان ټوله ددوئ د حکومت څخه په خوف او خطر کې دي کما سمعت في النشريات العامه

**ځواب**:- دا آیت په دې ځای کې مطلق راغلی دی او په بل ځای کې مقید دی په دې سره ﴿وضربت عليهم الذلة، اينما ثقفوا، الابحبل من الله وحبل من الناس﴾ یعنې یهود به په ذلت کې وي هر چیرې چې دوئ

پیدا کړه سي مګر نه هغه وخت چي خداي ﷻ ددوئ سره کومك وکړي او
خلك هم ددوئ سره کومك وکړي، د خداي ﷻ د کومك معنا داده چي څه
وخت چي مسلمان د خداي ﷻ د اوامرو او منهیاتو څخه مخالفت په ډکه
پیمانه مختاره کړي، نو خداي ﷻ عذابًا لهم في الدنيا يهود پر دوئ
مسلط کړي، او د حبل من الناس معنا داده چي نور کافران به ددوئ
کومك وکړي او دیهودیانو موجوده حکومت هم پر دغه اساس مابين ته
راغلی دی یعني چي د ډېرو حکومتو اهل یعني عمومي او اکثره یې
شبراً بشبر د کافرانو د افعالو او اخلاقو سره اخته وه نو خداي ﷻ يهود
پر مسلط کړه یعني د مسلمانانو د دغو هیوادو په زړو کي بیره د یهودو
پیدا کړه او د یهودو د زړو څخه بیره دمسلمانانو وه ایستل د بلي خوا د
دهشت ګرد اعظم د ټولي دنیا یعني امریکا هم د یهودو سره مالي
مرستي او د اسلحې کومکونه شروع کړه تا چي اسلامي قوتونه کمزوري
او د پښو واچه وي، نو لهذا هره بین المللي جرګه چي دیهودو پر ضد
تصویب وکړي که څه هم په اتفاق الرای وي ظالم امریکا هغه بین المللي
قانون ویتو کړي.

**فائده**:- په اصول الفقه کي وايي چي مطلق او مقید چي په یوه واقعه
کي وي مطلق پر مقید محمول وي نو ددې سببه دا آیت پر هغه مقید آیت
محمول دی.

**درویش وايي**:- چي هم دغه عذاب د (۲۵) کلو څخه د افغانستان
پر مسلمان ملت جریان لري ولي چي زما په یاد دي چي د افغانستان
عمومي اسلامي وګړي ډېر پر دین مین او د اسلامي قوانینو پابنده خلك
وه چونکه په آخري دورکي د ظاهر شاه د حکومت دیني قوانین بې تر
پښو لاندي کړه یعني عموماً خلکو، نو خداي ﷻ عذاباً لهم یو وار روس



Scanned by CamScanner

پر مسلط کړي. او يا اوس يې امريکا پر مسلط کړي لکن چونکه د روس پالسي زور او توپك سالاري وه نو ناکامه او شرمنده د افغانستان څخه ووتی او امريکايانو چي وليده چي د افغانستان غيور خلګ په زور سره څوك نه سي مهارولای او دوئ وليدي چي د دنيا لوي ابر قدرت چي امريکا په خپله هم ختدي بيرېدي د افغانستان غيورو مسلمانانو د ابد لپاره پر ګوډو کړی او امريکا يې هم د خطرې څخه د روس بيغمه کړي نو امريکايانو لپاره د مهارولو د افغانستان د خلګو بله پاليسي مختاره کړه يعني د ډالرو ورکولو لار يې وخوائينو او مشرانو او قومندانانو ته د افغانستان په مخه واخسته والله اعلم چي امريکا به په دې پاليسي کي کاميابه سي او که نه. اللهم نغراً و ذلاً للامريکا کما ذللت الروسيه.

تبصره:- که مسلمانان د هر هيواد وخپل اسلامي دين ته د عزت په ستر ګو وګوري يعني اسلامي احکام په عمل کي پياده او عمل په تولو ديني او اسلامي احکامو که اوامر وي او که منهيات وکړي، نو هيڅ کفري طاقت که څه هم ډير ابر قدرت او جګ خولي وي د مسلمانانو د مقابلې طاقت به ونه لري او د شکست سره به مخامخ سي.

﴿ قال الله تعالي وانتم الاعلونه ان کنتم مو منين ﴾ يعني که تاسي په حقه او کمال سره مسلمانان ياست نو تاسي به عالي ياست پر کافرانو، ددي دليل دادی چي په عصر نبوي ﷺ کي هم دوه سپر قدرتونه وه يعني روم او پارس څرنګه يې د مسلمانانو د خوا څخه شکست وريه برخه سو تاسي د تبوك غزا د قرآن کريم څخه مطالعه کړئ چي وروسته پر خپل ځای په دې تفسير کي به هم راسي ان شاء الله تعالی، او د پارس کسرئ چي د عليه السلام مکتوب چي و دته يې ليکلی وو توټه توټه کړی يعني څيري يې کړی او عليه السلام چي دا واقعه واورېدل نو يې وويل چي



Scanned by CamScanner

اللهم مزقهم كل ممزق يعني خدايه ته پارسيان هم توك توك كړې ځرنګه
چي د پارسيانو حكومت د ابد لپاره په لږ موده كې د مابين څخه ولاړي.

وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ
كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَ
يَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ بِغَيْرِ الْحَقِّ
ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿٦١﴾

او دوئ رجوع وكړه په غضب د خداي ﷻ

پوښتنه:- چي "بوء" كه څه هم په معنا د رجوع ده لكن د بوء
استعمال خوا مخوا په شر سره كيږي.

او دا غضب د خداي ﷻ چي پر دوئ مسلط سو په سبب ددې چي دوئ
به همېشه كفر كاوه په آياتو د خداي ﷻ يعني په معجزاتو د انبياو عليهم
السلام من فلق البحر، واظلال الغمام، وانزال المن والسلوي وانفجار
العيون من الحجر، كما قد عدت عليهم، او يا مراد د آياتو څخه آياتونه
دكتب المنزله وو دي كالانجيل والقرآن او آيت الرجم او په هغو آيتو كي
چي به نعت د عليه السلام په كښي ذكر سوي وو په تورات كي، او وژل
بې انبياء ﷺ ولې چي دوئ مړ كړي شعيب، ذكريا او يحيٰ و غيرهم
عليهم السلام.

پوښتنه:- قتل د نبي خو ضرور بغير الحق وي ولي چي وژل پر حق
خو يا دادی چي سړی قصاصاً ووژل سي، او يا محصن زناء وكړي او يا

مرتد سي العیاذ با لله نو دا کارونه خو په انبیاء علیهم السلام کي هیڅ نسته لعصمتهم عن الذنوب.

**ځوینځ وايي**:- چي ددې سوال په جواب کي بیضاوي او مظهري او روح البیان وغیرها داسي وایي اي عندهم یعني ددوئ په نیز هم ناحقه قتل وو اذ لم یروا فیهم ما یعتقدون به جواز قتلهم کما مر من الا مور الثلثة المجوزة للقتل بل حملوا هم علی ذالک اتباع لهوی وحب الدنیا.

**حاصل دجواب داشي**:- چي قید د بغیر الحق لپاره د احتراز نه دی بل کي دا قید لازم دی لپاره د شفاعت ددوئ ذکر سو، مثلا دعوت الله سمیعا لکن پر دغه جواب قفال رحمه الله دا سوال کړی دی چي ددوئ عقیده خو داوه چي دغه مقتولین انبیا نبیان نه دی او معجزات ددوئ صرف توهمات دي، او هم په دغه سبب دوئ دغه نبیان ووژله، او صاحب کشاف د دفعي ددغه سوال داسي عبارت ویلی دی "فلو سئلوا وانصفوا من انفسهم لم یذکروا وجها یستحقون به القتل عندهم.

**سوال**:- په قرآن مبارك کي خداي ﷻ وایي ﴿ انا لننصر رسلنا الایة﴾ او په بل آیت کي خداي ﷻ وایي ﴿وقد سبقت کلمتنا لعبادنا المرسلین انهم لهم المنصورون ﴾ او په دې آیت کي خداي ﷻ وایي "ویقتلون النبین آه" نو دا په مابین کي د آیتو تعارض نه دی ؟

**ځواب**:- ابن عباس رضي الله عنه او حسن بصري رحمه الله وایي چي هر نبي چي په قتال د کفارو به مامور وو پر هغو باندي خداي ﷻ کافر نه دی مسلط کړی بلکه د هغو يې په جنګ کي کومك کړی دی، او هغه انبیاء چي بني اسرائیل ووژله هغوته امر د قتال د کفارو نه وو ورکړی، نو چي خداي ﷻ کفار ددوئ پر قتل مسلط کړه دا کرامت او رفع د منزلت ددوئ وه "کمثل

من يقتل في سبيل الله من المؤمنين فدفع التعارض المتوهم من البين والحمدلله

او بعض مفسرين رح په جواب کي د تعارض متوهم داسي وايي چي مراد د نصرت څخه د انبياء عليهم السلام كما في الايتين المذكورين نصرت په حجت او دليل او معجزه سره مراد دى، او هغه نصرت خو خداي ﷻ د ټولو انبياؤ سره کړ دى قوله "ذالك آه" اي المذكورمن الكفر بالايات العظام وقتل الانبياء عليهم السلام په سبب د عصيان ددوئ دى نو لفظ د "با" سببي دى او ما مصدري دى، او دوئ وه چي تجاوز يې د امر الهي څخه کاوه يعني دوئ عصيان او همېشه والى د تجاوز الحدود الالهيه دوئ وکفر ته ورسول ولي چي د عادته سره سم چي څوك پر صغيره ګنهو دوام وکړي لکه مثلاً د نامحرمو پيغلانو او خوانانو ښخو سره خبري کوي سړى کبيره ګناه ته رسوي لکه زنا په مثال مذکور کي لکه مداومت پر کبيره ګنهو سړى وکفرته رسوي ګاهي.

**مسئله**:- د آيات مذکوره ووڅخه دامعلومه سوله چي د حلالو خوندورو ماكولاتو خورك مباح دى كالمن والسلوى لبني اسرائيل وقد ورد في الحديث الصحيح ان النبي ﷺ كان يحب الحلوى والعسل ويشرب الماء البارد العذب.

**فائده**:- عدس او زيتون غوري خورك د انبياء كرامو دى په حديث نبوي ﷺ کي راغلي دى "عليكم بالعدس فانه مبارك مقدس وانه يرقق القلب ويكثر الدموع فانه بارك" يعني دعا د بركت كړې ده سبعون نبيا اخرهم عيسى بن مريم.

فائده:- د عدس خورك بدن سپكوي لپاره دعبادت د خداي ﷻ او شهوت حيواني په جوش نه راولي لكه غوښي او دغنمو ډوډی، تاري خوايي عمر بن عبد العزيز به يوه ورځ ډوډی د زيتون په غوړو پوري خوړله او نيوه ورځ به يې په عدسو پوري او بله ورځ بې غوښي خوړلې، او مهماني د ابراهيم ﷺ به د عدسو څخه خالي نه وه وهذا كاف في فضيلة العدس .

مسئله:- خورك د پياز او وږي او ګندنې او هر هغه شي چي بد بوينه وي مباح دی يعني حرام نه دی .

سوال:- په صحيح حديث كي راغلي دي "من اكل البصل" يعني پياز "والثوم" يعني وږه "والكراث" يعني ګندنه "فلايقربن مسجدنا" يعني زموږ مسجد ته دي نه راځي مراد په حديث نبوي ﷺ كي فقط مسجد نبوي مراد نه دی ولهذا لم يقل مسجدي بلكه عام مسجدونه د مسلمانانو دي "فان الملا ئكة تتاذى مما يتاذى منه بني آدم" ولي چي ملكي ازارېږي د هغه شي څخه چي انسانان په ازارېږي چي بد بويي ده لكه په دغو درو ما كولاتو كي سته. نو پوښتنه داوه چي ددې حديث مبارك او د مسئلې تر مابين منافات نسته ؟

ځواب:- يا منافات نسته ولي چي په حديث شريف كي منع د اكل څخه نه ده راغلې يعني لا تاكلواهذه الماكولات مذكورة، بلكه د تقارب يعني د حضور څخه د مساجدو منع راغلې ده په سبب د بوي يې ددې حديث څخه دا هم معلومه سوله چي كه په مسجد كي څوك نه وي هم دي آكل د دغو شيانو مسجد ته نه ورځي ولي چي ملكي خو په مسجد كي سته كه څه هم انسان نسته .

مسئله:- بعض فقهاء رحمهم الله پر مساجدو باندي نور مجامع الناس قياسه وي او پر اشياء ثلثه هر بد بويه شي هم قياسه وي لکه چرس وغيره والله اعلم.

فائده:- عليه السلام چي د دغو درو شيانو د خورك پر هېز كاوه، لانه ﷺ كان يناجي الملائكة ويناجي الله ﷻ فلذا رخص لسائر الناس، لكن مع هذا اقتداء په افعالو او اقوالو او احوالو كي په عليه السلام پسي عزيمت دی قال المولوي المعنوي عبدالرحمن الجامي قدس سره

يا نبي الله السلام عليك
انما الفوز والفلاح لديك

يعني فوز وفلاح ستا په متابعة پوري مربوط دی.

گر نه رفتم طريق سنت تو
هستم از عا صيان امة تو

مانده ام زير بار عصيان پست
افتم از پاي اگر نه گيري دست

پوښتنه:- كه يو چاته دغو دروشيانو بدني فائده كول او يا د يوې مريضي دوا يې وه نو خورك يې ببله كراهيته او ببله منع د دخول څخه د مسجد روادی او كه څرنگه؟

ځواب:- په حديث صحيح كي راغلي دي ﴿ان كنتم لابد لكـــم هـ اكلها فاميتوها طبخا﴾ كه تاسي لره چاره نه وه د خورك څخه د دغو درو شيانو نو دوئ مړه كړئ په پخېدو سره، مراد لـه مړكـه څخه ازالـه د بد بويي د دغو شيانو چي پاخه يې كړي.



Scanned by CamScanner

# إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا

يعني په محمد ﷺ سره سواء كان اخلاصاً او نفاقاً فدخل فيه المنافقون.

# وَالَّذِينَ هَادُوا

اي دخلوا في دين اليهودية

# وَالنَّصَارَىٰ

اي الداخلين في دين النصارى

# وَالصَّابِئِينَ

وهم قوم خرجوا من كل دين ويقال لهم الدهرية

# مَنْ آمَنَ

يعني د دغو ډلو څخه

# بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

يعني بمحمد ﷺ بالقلب واللسان يعني منافقين نفاق پرېږدي او يهوديان دين د يهوديت پرېږدي چي دين منسوخ دی، او د عليه السلام سره په دين اسلام کي داخل سي، وهکذا النصارى دين منسوخ پرېږدي او اسلام ته غاړه کښېږدي، وهکذا دهريين صانع اکبر اوسنی دين پرېږدي او پر ورځ د آخرت او جزاء هم ايمان راوړي، نو پر دې تفسير دا سوال نه واردېږي چي د مومنانو په باره کي ايمان ته ضرورت و چي ددوئ په حق کي هم خداي ﷻ وويل ﴿من آمن منهم آه﴾ وجه الدفع يې

داده چې په "ان الذین امنوا" کې خو منافقین هم داخل وه نو د دوئ په باره کې ﴿من آمن منهم﴾ اي آمنوا اخلاصاً ویترکوا النفاق" خداي ﷻ ووایه .

**پوښتنه**:- چې صاحب الکشاف او صاحب د روح البیان د "الذین آمنوا" یوازې منافقین مراد کړي دي ولې چې معطوفات یې ټوله کفار دي .

**فائده**:- لفظ د یهود که عربي وي نو مشتق دی د هاد په معنی د تاب نو دا نوم پر دوئ هغه وخت کښېښول سو چې دوئ تو به د عبادة العجل څخه وکښل، او که دا عبراني لفظ وي او په عربي مستعمل سوی وي نو اصل یې یهودا وو چې مشر زوئ د یعقوب ﷺ وو، نو ګویا دغه قوم د یعقوب ﷺ د مشر زوئ په نامه مسمٰی سوي دي .

**فائده**:- نصارٰی جمع د نصران ده لکه ندامٰی جمع د ندمان ده، نو دې ډلې ته چې نصارٰی وایي په دې سبب چې کومک د عیسٰی ﷺ یې کړی وو، او بعض مفسران وایي چې دوئ د عیسٰی ﷺ سره ملګري په یوه قریة کې وه چې د هغې نوم نصران وو نو په نامه د هغې قریې یې مسمٰی کړه سوه، بیضاوي رحمه الله وایي چې "یاء" په لفظ نصراني کې لپاره د نسبت نه ده بلکه لپاره د مبالغې ده لکه احمري چې عرب وشدید الحمرة سړي ته وایي .

**پوښتنه**:- چې مور چې نصارٰی جمع د نصران وبلله نو هغه سوال متوهم دفع سو چې نصارٰی خو به جمع د ناصر وي او فاعل خو پر فعالی نه جمع کېږي .

**پوښتنه**:- چې مور تفسیر د "صابئین" په دهریانو سره وکړی هغه د ډېرو مفسرینو رحمهم الله خوښ تفسیر دی، او بیضاوي رحمه الله وایي چې

"صابئين" يو قوم دی په مابين کي د نصاری او يهودو يعني بعض احکام يې د دين د عيسى ﷺ څخه اخستي دي، او بعض احکام يې د دين موسى څخه اخستي دي او مجموع يې خپل دين ګرځولی دی، او بعض وايي چي دوئ عبادت د ملکو کوي او بعض وايي چي دوئ عبدة الکواکب دی نو که لفظ عربي وي نو مشتق دی د صباء "بمعنى خرج" او يا د صبا څخه مشتق دی په معنا دمال "لانهم خرجوا ومالوا عن سائر الاديان الى دينهم الباطل قاله البيضاوي رحمه الله .

**درويش وايي:**- چي دا تائيد د اول تفسير چي موږ په دهرپانو سره وکړی کوي کما لايخفي .

**مسئله:**- "صابئين" چي په هره معنا وي ذبائح يې مردار دي او ددوي د ښځو سره نکاح هم نه ده روا کذا في روح البيان .

**فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۶۲﴾**

نو دوئ لره ثواب د دوئ دی يعني چي خداي ﷻ د دوئ سره وعده کړې ده چي جنت او نعيم د جنت دي او هيڅ بېره نسته پردوئ او نه به دوئ غمجن وي په ورځ د اخرت .

**پوښتنه:**- چي خوف بېره د اينده شي څخه او غم پر تېر سوي شي وي، نو کفار په ورځ د قيامت هم د عذاب النار څخه بېرېږي او هم به غمجن وي چي موږ ولي ايمان نه راوړی پر خداي ﷻ او پر نبي ﷺ د خپلي زماني او هغه مؤمنان چي په دنيا کي په عمل کي تقصير او کوتاهي کړي وي هغه به پر تضييع العمر في اللهو والعب باندي غمجن وي .

**پنځمه فائده**:- چي کلمه د "من" موصوله او "آمن" صله ده، نو "من" مبتداء ده "فلهم اجرهم آه" یې خبر دی او ټوله جمله خبر د "ان" ده او د قانون نحوي سره سم چي موصول متضمن معنا لره د شرط وي کما في مانحن فیه په جزاء کي فاء راوړه کېږي .

**سوال**:- سیبویه چي د امام النحاة په سترګه علماء د عربیت ورته ګوري هغه دخول د فا په خبر کي د "ان الذین" روا نه بولي .

**ځواب**:- هو نقل صحیح دی لکن نورو امامانو د علم النحو د سیبویه دغه قول رد کړی دی په دې ایت سره .

﴿ان الذین فتنوا المؤمنین والمؤمنات ثم لم یتوبوا فلهم عذاب جهنم﴾

**درویش وایي**:- چي حق القول بان فوق کل ذي علم علیم، افسوس پر حاسدانو د درویش چي په تصانیفو او حواشیو کي د درویش ګرځي چي یوه خبره غلطه په کښې پیداکړي نو د حسد سُرنا په خوله کي ونسي تاچي اعلان د غلطیا د درویش په کښې وکړي .

ای بې بخته حاسده عبید الله کله یا قولاًاو یا تحریراً دا ویلي دي چي زه له خطا او سهوي او نسیان او غلطیا څخه معصوم یم بلکه عجبه لا دا ده چي مغلط حاسدان نه پوهېږي چي سهو دکاتب څخه صادره سوې وي هغه هم و درویش ته منسوبه وي ځکه په قرآن مبارك کي دغه عبارت سته، ﴿ ومن شر حاسد اذا حسد ﴾

**پوښتنه**:- نه د حاسدانو څخه همېشه شکایت کوي سبب یې څه دی ؟

**فوائد:** - زما په خپل ځان خوا نه ده بده ولي په حسد او غيبت کي ددوئ ماته ډېره فائده رسېږي، ولي چي ددوئ د افعال حسنه ثواب ماته رانقل کېږي زما پردوئ زړه سوځي چي ستاسي په حسد خو رب جل وعلا خپل نعمت د ما څخه نه اخلي البته زما په خپله ګناه سره که يو نعمت د ما څخه اخلي وابېخلي، اخر خو علماء ياست خلګو ته وعظ او نصيحت د حسد کوئ چي ګناه کبيره ده او خپله عمل نه په کوي، او دا تبليغ هم کوي چي غيبت او بهتان ګناه کبيره او په خپله عمل نه په کوي

**بيت**

واعظان کین جلوه درمحراب ومنبر میکند | چون به خلوت میروند آن کار دیر میکند

او په دې هم ښه پوهېږې چي کاروان د تصنيف د درويش دکلو څخه روان دی ستاسي په غيبت نه راګرځي او دا مسئله به هم تاسي ليدلې وي چي په غيبت کي حق العبد سته هغه عبد يې په ورځ د قيامت غوښتونکی دی سعدي شيرازي څرنګه خوږ نصيحت کړی چي وايي

زبان آمد از بهر شکر وسپاس | به غیبت نگر داندش حق شناس
گزر گاه قرآن وپند ست گوش | به بهتا ن باطل شنیدن مکوش
دوچشم ازپی ضع باري نکوست | زعیب برادر فرو گیر ودوست

**وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۝**

او په ياد کړئ اې بني اسرائيلو د عصر نبوي ﷺ هغه جنايت ستاسي د نيکه ګانو د عصر د موسی ؑ چي موږ واخسته ټينګه وعده ستاسي څخه يعني ستاسي د اسلافو څخه چي تاسي به متابعت د موسی ؑ کوئ او عمل به په توراة کوئ.

پوښتنه:- چي دا واقعه تر تيه د مخه وه چي فرعون غرق سو او دوئ سالم پاته سوه، او موږ پورته کړی سر بېره پرتاسي يعني ستاسي پر اسلافو طور.

پوښتنه:- چي په رفعنا کي واو عاطفه دی لپاره د مطلق جمعي او يا واو حالي دی په تقدير د "قد" کما هو القانون النحوي في وقوع الماضي حالاً، او د طور څخه مراد يا معين غر دی او بعض مفسران وايي چي طور په سرياني ژبه نفس غره ته وايي.

پوښتنه:- چي نسبت د رفع الطور خداي ﷻ وخان ته وکړی په دې اعتبار چي امر په رفع الطور خداي ﷻ وو که څه هم رافع الطور ظاهراً جبرئيل ؑ وو، بغوي رحمه الله وايي چي څه وخت چي موسی ؑ ته توراة ورکړه سو او ده وبني اسرائيلو ته وويل چي دا کتاب قبول کړئ او عمل په وکړئ په احکامو دده، دوئ چي د تورات احکام واورېده ډېر سخت احکام په کښې وه يعني ډېر داسي اعمال شاقه چي دوي به عادت نه ورسره درلودی په هغو مامور سوه، او ډېر داسي اعمال وه چي دوئ به محبت ورسره درلودی د هغو څخه نهي سوله نو بني اسرائيلو د قبوله څخه انکار وکړی، نو خداي ﷻ جبرئيل ؑ امر کړی چي يو غر له بېخه څخه پر راوه کاږه پر اندازه د قوم د موسی ؑ چي فرسخ په فرسخ کي وه نو جبرئيل هم غر پر دوئ را پورته کړی او لکه سايوان پر سرو د دوئ، او ورته وه يې ويل که چيري توراة نه قبله وئ دا جبل دربانديدي ايله کوم فسجدوا وقبلوا احکام التوراة باسرها" نو دا معنی ده ددې قول د خداي ﷻ "خذوا ما اتيناکم" يعني در واخلئ او قبول کړئ او عمل په وکړئ په هغه کتاب چي ما تاسي ته در واستاوه.

**پوښته**:- چي د "خذوا" سره "قلنا" محذوف دی لپاره د ربط د ماقبل سره كما هو القانون النحوي .

**فائده**:- پر يهودو چي يې غر را پورته كړی نو دوئ پر سجده سوله لكن سجده يې پر نيم مخ وه او په يوه ستركه يې غره ته كتله و هذه السجدة هي المعتاد لهم الى يومنا هذا . قوله بقوة يعني په كوشش تام سره او په هميشه توب سره قوله تعالي ﴿ وَٱذۡكُرُواْ مَافِيهِ ﴾ يعني تاسي په ياد كي ساتئ او هېره وئ مه او درس يي هم كوي قوله تعالى "لعلكم تتقون"

**پوښته**:- چي چونكه ترجي حقيقةً پر خداي ﷻ محاله ده، او لعل لپاره د ترجي دی، نو له دې سببه بعض مفسرين رحمهم الله لعل په معنا د لام بولي او ترجمه د ايت داسي كوي "لكي تتقوا المعاصي" او بعض مفسران رجا او اميد راجع وبني اسرائيلو ته بولي، او داسي ترجمه د ايت كوي "رجاء منكم ان تكونوا متقين" او څوك د متقين دا معنا كوي چي تاسي به د هلاكت في الدنيا څخه خلاص سي او د عذابه څخه د قيامت به هم خلاص سئ .

**سوال**:- پر بني اسرائيلوا باندي د طور راپورته كول خو اجبار د دوئ دی پر ايمان باندي او اجباري ايمان خونه دي صحيح ؟

**ځواب**:- چي جبر خو هغه دی چي سړی مسلوب الاختيار وګرځي نو دوئ په اختيار ايمان راوړي لكن د ېېري دطور د نسكورېدو پر دوئ نو دا خو لكه كافر چي په جنګ كي د مسلمانانو ايمان راوړي په اختيار لكن د ېېري د مرګ نو دې ته اكراه وايي چي معنا يې سلب الرضا ده نه سلب الاختيار او اجبار چي الجا يې هم بولي سلب د اختيار ته وايي كذا قال القفال رحمه الله وكذا في حواشي البيضاوي رحمه الله .

**سؤال**:- په قرآن کريم کې راغلي دي "لا اکراه في الدين" او په بل ځای کې داسې راغلي دي "افانت تکره الناس حتى يکونوا مؤمنين".

**جواب**:- روح البيان او سليمان جمل او نور ګڼ شمير مفسرين رح وايي چې دا ايتونه د مخه تر امر بالقتال د کافرانو سره نو په آياتو سره د امر بالحرب مع الکفار منسوخ دی.

عنايت الهي پر امت محمدي ﷺ د خداي جل سلطانه وعز برهانه دادی چې زموږ قرآن کريم يې په (۲۳) کاله زمانه کې د نبوت محمدي ﷺ تکميل کړی، او په کرار کرار يې موږ د عباداتو سره اموخته کړو او په تدريج يې د محرماتو څخه بېزاره کړو په دې تفسير کې به ان شاءالله العزيز په خپل ځای کې راسي چې په څونه ډېر تدريج پر موږ د مياشتې د روژې روژې فرض کړه سوې او په آخر کې راته وويل سوه "فمن شهد منکم الشهر فليصمه، او په څومره تدريج يې پر موږ شراب حرام کړه او په آخر کې يې وويل چې شراب رجس يعني مردار مشروب دی فاجتنبوه آه، وهکذا العبادات الاخر سوی الايمان والکفر اللهم لک الحمد على احسانک مع الامة المرحومه.

ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ۚ فَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ لَكُنْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۶۴﴾

بيانو تاسې يعني ستاسې نيکه ګانو مخ واړاوه د وفا څخه له عهد او ميثاق مذکور پس له محکمه ميثاقه څخه نو که نه وای فضل دخداي ﷻ او رحمت د خداي ﷻ يعني چې مهلت يې درکړی او سمدلاسه يې عذاب درنه کړی نو به تاسې وای له خاسرينو څخه.

**پنځمه [illegible]**:- چې خسران د تجارت دادی چې د سړي راس المال د تجارت هم د لاسه و وزي ګټه خو پرېږده.

**درويش وايي**:- چې تر "توليتم آه" د مخه آيت يعني و "اذاخذنا ميثاقكم آه" صريح دی په دې ګي چې اخذ الميثاق په رفع د جبل د اسلافو د يهودو په زمانه كي د موسى ﷺ وه، وصرح بذالك البغوي رحمه الله حتى قال فلما راو ان لا مهرب قبلوا وسجدوا الخ، نو ددې عبارت څخه خو صراحةً دا معلومه سوه چې هغه اخذ الميثاق پای ته ورسېدی، او دغه رنګه درست آيت يعني "ولقد علمتم الذين اعتدوا آه" په باره كي د اسلافو د يهوديانو دی اذا علمت هذا نو دغه آيت "ثم توليتم آه" هم په باره كي د اسلافو د يهوديانو دی، او په دې آيت كي چونكه لفظ د "ثم" د تراخي او لفظ د "من بعد ذالك آه" راغلی دی نو داسي معلومېږي چې دا تولي ددوئ وروسته تر "اخذ الميثاق برفع الجبل" د يهوديانو د اسلافو څخه پېښه سوې ده او مظهري هم د "توليتم" تر جمه داسي كړې ده "اي اعرضتم عن الوفاء بالميثاق" يعني په و "اذ اخذنا ميثاقكم" كي ذكر سوه نو د هغې تولي معنا داده چې اسلافو د يهوديانو د عصر نبوي ﷺ په هغه امر د خداي ﷻ چې "خذوا و اذكروا" وفاء يې ونه كړه.

**درويش وايي**:- چې پر دغسي تفسير كلام آلهي توله منتظم او متسق ګرځي يعني توله په باره كي د اسلافو د يهودو دي، نو هغه تفسير چې مظهري كړی دی "ويمكن ان يراد ولولا فضل الله عليكم ببعثت النبي محمد ﷺ آه" ددې مقتضي دی چې مخاطب په "توليتم" سره حاضرين د عصر نبوي ﷺ دي "فحنئذ ينفک النظم القرآني يعني قوله تعالى ثم توليتم آه عن السابق والسياق لان الكلام السابق يعني قوله واذ اخذنا

میثاقکم آه واللاحق یعني الذین اعتدوا آه کلاهما في شان اسلاف الیهود لا في شان الیهود الحاضرین في العصر النبوي ﷺ وقد اشار المظهري الی ضعف هذا التوجیه بایراده بقوله ویمکن ان یراد آه واورد بیضاوي رحمه الله هذا التوجیه مع الاول بقوله بتوفیقکم للتوبه او بمحمد ﷺ

او خفاجي رحمه الله په شرح کې د بیضاوي ددې دواړو توجیهو په زړه پوري مفصل بیان کړی دی، او صاحب د روح البیان رحمه الله صرف اوله معنا د آیت مذکوره کړې ده او دوهمې توجیه ته یې اشاره هم نه ده کړې او د "والله عنده علم کتابه العزیز" درویش خوشه چین د تفاسیرو بیان پوره درته وکړی.

وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِينَ اعْتَدَوْا مِنكُمْ فِي السَّبْتِ فَقُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ ﴿٦٥﴾

**ژباړه**:- چې لام موطئه د قسم دی یعني قسم په خدای ﷻ دی چې تاسې ای معاصرینو د عصر نبوي ﷺ خبر یاست په هغو کسانو چې ستاسې اسلاف دي چې تجاوز یې کړی په تعظیم کې د یوم السبت.

**فائده**:- سبت په لغت کې قطع ته وایې یا په دې سبب چې خدای ﷻ په دغه ورځ د شنبې قطعه د خلق السموات والارض کړې ده، او یا په دې سبب چې یهودیانو ته د خدای ﷻ له خوا څخه امر سوی وو چې د دنیا کارونه به په دغه ورځ نه کوئ، او فقط او خاص د خدای ﷻ عبادت به کوي او بعض یهودو دا امر الهي نه کړی اجراء، او په دغه ورځ یې ښکار د ماهیانو کاوه نو موږ په سبب د دغې جریمې ددوئ ودوئ ته وویل چې وګرځېږي بېزوګیان او د خدای ﷻ په دربار کې خوار او ترټلي.

**سوال**:- بیزو والی خو ددوئ په قدرة کي نه وو نو دوئ څرنګه په بیزو والي سره د خپلو ځانو مامور سوه ولي چي د امر تقاضا داده چي مامور به توان او قدرت پر ماموربه لري ·

**ځواب**:- دا شرط په امر تکلیفي کي دی او دلته امر تکویني دی "وهو لایقتضي ذالك" قصه داده چي په زمانه کي د داود علی نبینا وعلیه الصلوة والسلام یوه قریه وه چي نوم یې ایله وه او د دریاب پر غاړه واقع وه نو دوئ یعني اهل ددې قریې چي یهود وه له ښکاره د ماهیانو ممنوع وه د شنبې په ورځ بلکه په عبادت د خداي ﷻ مامور وه نو د امتحان الهي سره سم چي ورځ به دشنبي سوه ماهیان د دریاب به په هیئت اجتماعي سره د دریاب غاړي ته راتږدې سوه او پزي بې تر اوبو رایستلي وې او چي د شنبې ورځ به تېره سوه نو ماهیان به په اوبو کي سره متفرق سوه، نو شیطان ودوئ ته دا وسوسه په زړو کي ور واچول چي تاسي خو د ښکار څخه د ماهیانو یعني د نیولو څخه منع یاست، نو داسي وکړئ چي دریاب ته نژدې حوضونه جوړ کړئ او له دریابه لښتی وکاږئ د شنبې په ورځ دي هر سړی په یوه لرګي ماهیان د خپل حوض د لښتي پر خوا را پوري وهي وي او هغه به د لښتي څخه حوض ته ورځي چي مازدیګر سي د لښتي خوله دي په خاورو بندوي او دیکشنبې په ورځ دي هر سړی د خپله حوض څخه ماهیان بې تکلیفه ښکاره وي او دوئ هم د ډېرو کسانو په دغه هیله د ماهیانو په ښکار لاس پوري کړی، نو اهل قریه درې حصې سوله یوه ډله خو هم دغه ښکاریان وه او بله ډله یې وه چي نه یې ښکار کاوه او نه یې ښکاریانو ته نصیحت کاوه، اومتدین علماء ددوئ په وعظ او تبلیغ د ښکاریانو یې خوله خلاصه کړه او دا بې ورته ویل چي دا عمل ستاسي عین ښکار دی دا کار مه کوئ، نو چونکه ښکاریانو یې په خوله

نه کول نو هغه متدین علماء د قریي ښځه ښتدي پار سوه او نژدي وقریي ته یې خیمي و درولي او دایي همیشه ورته ویل چي یو وخت عذاب الهي پر تاسي راځي .

فائده:- دا قریه ایله په منځ کي د مدینې منورې او د شام وه پر غاړه د قلزوم د دریاب او په دې قریه کي اویا زره کسه اوسېدل .

فائده:- خلوبنت کاله دوی دا بنکار وکړی او چونکه عذاب الهي زر نه راتلی نو دوی ورځ په ورځ دلاوره کېدل او متدین علماددوی (۱۲) زره کسه وه .

فائده:- ددې قصې ذکر په قرآن مبارك کي او مخاطب کول د معاصرینو د نبي ﷺ من الیهود ځه حکمت د خداي ﷻ دی .

جواب:- حکمت الهي تحذیر او بېرول د معاصرینو یهودیانو یعني که تاسي پر علیه السلام ایمان نه راوړئ او په وعظ قرآني عمل نه وکړئ نو امکان سته چي تاسي به هم په ورته عذاب د اسلافو ستاسي اخته سي کما وقع مثل عقوبة اسلاف الیهود علی فرقتین منهم بني النضیر وبني قریضة .

پوښتنه:- دا معاصرین ولي نه سوه مسخ لکه اسلاف ددوی ؟

جواب:- مسخ د ظاهر په برکت د علیه السلام د ټولو مسلمانانو ښځه پورته سوله لانه ﷺ رحمة للعالمین .

فائده:- قردة او خاسئین دواړه خبر د "کونوا" دي والمعنی کونوا جامعین بین القردیة والخسیئة یعني ذلة او طرد تمام القصة .

چونکه منع کونکي علماء چي تعداد یې (۱۲) کسه وو د ایله څخه ووتل نو د ورځي به دوئ کلي ته د ایلي راتله لپاره د خرید او فروخت د مایحتاج الیه، نو یوه ورځ چي دوئ کلي ته ورغله د ټولو کورو دروازې ترلي وې او هیڅ څوك په قریه کي نه وو. دوئ حیران سوه چي څه پېښه ده هره دروازه چي بې وټکول چا جواب نه ورکاوه.

**پوهنه**:- چي د ظاهر سره موافق بیضاوي رحمه الله او مظهري رحمه الله دواړو په دې مقام کي له ظاهره د قرآن مبارك یوازي قردة یعني بیزوګیان ذکر کړي دي، اوروح البیان بیزوګیان او سرکوزان دواړه ذکر کړي دي او ډیر اوږد بیان یې په دې ځای کي کړی دی والله اعلم.

**فائده**:- د بعض خلګو خیال دادی چي د بیزوګیانو نسل هم ددغه وخت څخه شروع سوی دی لکن دا ګمان غلط دی ولي چي مسخه سوی انسانان توالد او تناسل نسي درلودلای بلکه د بیزوګیانو نسل له پخوا څخه هم وو، او موجوده بیزوګیاني پس له درې ورځو ټولي مړې سوې.

**تنبیه**:- هغه د واعظانو ډلي خو یقیناً ددې عذاب څخه نجات پیدا کړی او هغه د ښکاریانو ډله خو یقیناً تردې عذاب لاندي راغله، او دریمي ډلي چي ښکار یې نه کاوه، او نه یې ښکاریانو ته نصیحت کاوه محتمل پاته دي په یو حدیث شریف کي داسي راغلي دي ﴿ان الله یعذب العامة بعمل الخاصة﴾ لکن په بل حدیث مبارك کي راغلي دي چي څه وخت چي خبث او معاصي په خلګو کي ډېره سي یعني خاصةً بعض کسان چي هغه ددې معاصیو څخه پاك وي لکن اهل عصیان ته تبلیغ او نهي عن المنکر نه کوي نو که عذاب الهي نازل سي ټوله په هغه عذاب کي شاملېږي "ثم یبعثون علی نیاتهم واعمالهم" یعني دنیاوي عذاب به

عام وي، او اخروي عذاب به خاص وي په مرتکبينو سره د معاصيو وهو الظاهر والله اعلم بالصواب.

**فَجَعَلْنٰهَا نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ**

نو موږ وګرځوله دا مسخه او یا عذاب عبرت یعنې څوک چې دغه واقعه واوري نو هغه منع سي د معصيت الهيه څخه نو د "نکال" اصل معنی منع ده څکه د پښو و بند ته نکل وايي. لمنعه الشخص عن الحركة" او دا نکال عبرت دی هغو خلګو لره چې حاضر دي و يقربيې ته د ايلې او هغو خلګو لره چې لري دي د ايلې څخه او یا معنا داده چې دغه عقوبت نکال او عبرت دی د اهل قرې لپاره چې هغه دولس زره (۱۲۰۰۰) کسان واعظان وه د شا وخوا دقرية الايله لپاره، او یا معنا داده چې دغه عقوبت عبرت د معاصرينو ددوئ لپاره او د هغو کسانو لپاره چې وروسته تر دوئ پيدا کېږي، او یا عبرت د مابين يديها يعنې تر دوئ له مخه تېر سوي وه، او د هغو کسانو لپاره چې تر دوئ وروسته نسل دی ولې چې دا واقعه په کتابو کې د اولنيو انبياء عليهم السلام راغلې وه او په کتابو کې د متاخرينو هم شهرت لري.

**پوښتنه**:- په نحو کې وايي چې کلمه د "من" د ذوي العقول لپاره او کلمه د "ما" د غير ذوي العقول لپاره ده، نو د مابين يديها وماخلفها څخه خو انسانان مراد دي، نو څرنګه تعبير ددوئ څخه په ماسره صحيح دي؟

**ځواب**:- اولاً چې تحقيق دادی چې کلمه د "من" که څه هم خاصه په ذوي العقولو پوري ده لکن کلمه د "ما" عامه ده کما في قوله تعالی

"والسماء ومابناها الاية" وثانيها على تقدير التسليم، چي تعبير ددوئ څخه په كلمه د "ما" لپاره د تحقير او اهانت دى وههنا كلام دقيق في شروح البيضاوي ولصعوبة فهمه لايليق ايراده ههنا او دا مسخه او عقوبت پند او نصيحت دى لپاره د تقوى دارو خلكو د امت محمدي ﷺ

**بيت**

پندگير از مصائب ديگران
تانگيرند ديگران زتو پند

نرود مرغ سوي دانه پراز
چو ديگر مرغ بينند اندر بند

**پوښتنه**:- چي دا عقوبت جزاء ده د هغه چا چي قدر د احسان الهي نه وكړي او د منعم حقيقي ﷻ د نعمت قدر ونه كړي او په حلم د خداي ﷻ خطا وخي او معصيت ته دوام وركړي.

**فائده**:- مسخ د ابدانو خو ددې امت څخه پورته ده لكن مسخ القلوب اوس هم سته قالوا علامه مسخ القلوب درې شيان دي.

(١) په عبادت كي د خداي ﷻ حلاوت او خوند نه محسوسه وي.

(٢) د گناه څخه نه بېرېږي.

(٣) او د مرگ څخه د چا عبرت نه اخلي، او د عوف بن عبد الله رحمه الله څخه روايت دى چي اولياء الله و به خلكو ته دا درې نصيحتونه كول.

(١) من اصلح مابينه وبين الله اصلح الله مابينه وبين الناس.

(٢) ومن عمل آخرته كفاه الله امر دنياه.

(٣) ومن اصلح سريرته اصلح الله علانيته.

وقال محمد بن علي الترمذي ﷺ اولاً .

(۱) اصلاح د کوچنیانو په دیني مدرسو کي کېږي .

(۲) اصلاح د غلو او قطاع الطریق په بندي خانو سره کېږي .

(۳) اصلاح د ښځو د کور په اوسېدو سره کېږي .

(۴) اصلاح د سپین ږرو په مسجدو سره کېږي یعني لزوم المساجد للجماعة في الصلوة الخمس

# وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖۤ اِنَّ اللّٰهَ یَاْمُرُكُمْ اَنْ تَذْبَحُوْا بَقَرَةً

**ربط:-** چي دا بل پېغور الهي دی وموجودینو ته د عصر نبوي ﷺ په بیان سره د یو جنایت چي ددوئ د اسلافو څخه پېښ سوی وو والمعنی په یادکړئ هغه خبره د موسی ﷺ چي قوم ته یې وویل چي خدای ﷻ تاسي امر کوي چي تاسي ذبح کړي یوه غوا یعني د جنس د بقر که نروي او که ښځه کذا قالوا .

**ربط:-** چي اول ددې قصې قوله تعالی دی ﴿وَاِذْ قتلتم نفساً فادارئتم فیها﴾ کما سیئاتي وهذا باتفاق المفسرین ﷺ او سبب د تقدیم د اخیر د قصې پر اول باندي په اجماع د مفسرینو ﷺدا دی چي دا اوسنی آیت مشتمل دی پر بله نوع د معاصیو او بدي څخه د اسلافو د بني اسرائیلو چي دوئ استهزاء او پسخند په دغه امر الهي په ذبح د بقرې واهه کما سیئاتي، او چابك یې امتثال د دغه امر الهي ونه کړی بلکه ډېر او اوږده سوالونه یې د موسی ﷺ څخه وکړه اصل قصه د روح البیان او مظهري د تفسیر سره موافق دا وه چي په بني اسرائیلو کي یو غني

سړی چې نوم يې عامل و او د دې غني د اکازوئ يا زامن وه اودې سړي بل وارث نه درلو دی ببله دغه ابن العم نو چونکه د اکازوي يې ومرګ ته د هغه غني ډېر انتظار وکړی خو هغه په خدايي مرګ نه مړ کېدی نو د اکازوي پر ورولاړ سو هغه غني يې مړکړی تاچې دی يې ميراث يوسي او بيايې د شپې له مخه يو وړی د يو بل کلي پر شاوخوا يې وغورځاوه سحار چې د هغې قريې خلګو مړی وليدی او د اکا زوي قاتل يې په خبر کړی، نو دعوه د قتل يې پر هغه کلي والو وکړه موسی ﷺ چې کلي وال راوغوښتل هغو د قتل څخه انکار وکړی، نو موسی ﷺ ته يې وويل ته و خداي ﷻ ته خواست وکړه چې ددې مقتول قاتل معلوم کړي موسی ﷺ چې درخواست وکړی نو خدای ﷻ ورته وويل چې ته دوئ ته ووايه ان تذبحوا بقرة آه .

**مروبش وايي:-** چې دا شان نزول اقرب دی و حق ته تر هغه شان نزول چې بيضاوي ﷫ بيان کړی حيث قال کان فيهم شيخ موسر فقتل ابنه بنو اخيه طمعا في ميراثه آه ولې چې په دې شان نزول کې طمع د ميراث د شيخ ژر نسته، ولې شيخ خو ژوندی دی هلته به دوئ ته ميراث رسېږي چې شيخ مړسي نو د شيخ د مرګ درك و دوئ ته څه معلومېدی .

## قَالُوٓا أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا

دوئ و موسی ﷺ ته وويل چې ته په موږ پسخند وهې يعني موږ د مړي د قاتل پوښتنه کوو او ته راته وايي چې غويی ذبح کړئ .

**پوه ښه:-** چې هزو خو مصدر دی نو حمل يې يا مبالغةً دی لکه زيدٌ عدلٌ چې مجاز في النسبة يې بولي، او يا مصدر په معنی د مفعول دی اي مهزوء بنا چې مجاز في الطرف يې بولي او يامضاف ورسره محذوف

دی اي اهل هزء چي مجاز بالحذف يې بولي والاول اولي لاشتماله على المبالغة كما تقرر في علم البيان

**يوه فائده**:- چي "قالوا" جمله مستانفه ده او استيناف بياني دی كانه قيل فماذا فعلو في جواب الامر الالهي هل تسارعوا الى الامتثال املا وحاصل الحواب انهم لم يتسارعوا بل اشتغلوا بمالايعني من الاسئلة

**قَالَ أَعُوذُ بِاللَّهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ ﴿٦٧﴾**

موسی ﷺ ورته وويل چي زه پناه په خدای ﷻ غوارم چي زه به د جاهلانو د جملي څخه خان ګرخوم ولي چي په خای کي د جواب شرعي استهزاء کول د جاهلانو کار دی

**پوښتنه**:- دوئ خو موسی ﷺ ته وويل چي ته په موږ پسخند وهې نو موافق د دوئ د سوال خو دا وو چي يا پسخند نه وهم نو ولي موسی ﷺ ورته وويل اعوذ بالله آه ؟

**ځواب**:- په علم معاني کي وايي چي دا جواب دی سره د دليله يعني د استهزاء په خای کي د جواب جهل ورسره لازم دی، او لازم په ما کي نشته يعني جهل نو ملزوم هم په ماکي نشته يعني الاستهزاء، ويقال لمثل هذا الجواب : الجواب على الطريق البرهاني في مصطلح علم المعاني .

**يوه فائده**:- چي صاحب د روح البيان او مظهري ﷫ دواړه وايي چي څه وخت چي بني اسرائيلو ته دا معلومه سوه چي ذبح د بقرې د خدای ﷻ د خوا عزم او جدي دی او د دوئ د عقولو څخه د اديره بعيده معلومېدل چي د بقرې مذبوح چي په يوه جزء سره مړی دي ژوندی سي او خپل قاتل به وښائي او د خدای ﷻ له قدرت عظيمه څخه غافله وه او د دوئ له

غايت حماقت څخه د اخيال وو چي داسي غوا به نو يو بل ډول غوا وي نو څکه يې په طلب کي د وصف د هغې سوالات شروع کړه کما سيناتي، په حديث شريف کي چې روايت يې عکرمة ﷺ مرسلاً کړى دى راغلي دي چې رسول الله ﷺ وويل لو ذبحوا اي بقرة ارادوا لاجزئتهم ولكنهم شددوا على انفسهم فشدد الله عليهم .

**ترويږ وايي:-** چي د خداي ﷻ د اوامرو پلټنه نه ده پکار بلکه ببله چون او چرا و اوامرو ته د خداي ﷻ دي لبيك وويل سي بلاتوقف.

حكمت الهي: اكثر مفسرين رحمهم الله وايي چي په بني اسرائيلو کي يو صالح د خداي ﷻ دوست سړى وو او يو زوي يې کوچنى درلو دى او يوه گستره ياګلگى يې درلوده نو څنګله ته يې ورروستل او خداى ﷻ ته يې مناجات وکړى چي زه دا گستره وتاته امانت درکوم زما د زوئ لپاره چي لو سي، او ماينه يې په دې خبره کړه چي که زه مړسوم او زما زوئ لوى سو او تاسي ضرورت د نفقې درلودى نو فلاني څنګله ته دي ورسي او داسي خواست دي وکړي ياالٰه ابراهيم ﷺ واسمعيل ﷺ واسحاق ﷺ رد علي امانة ابي، خير صالح سړى وفات سو او زوئ چې لوي سو ډېر صالح او د مور ډېر اطاعت او عزت يې کاوه او گستره په څنګله کي لو سوله او د هرچا څخه به څغاسته او چا يې قدرت پر نيولو نه درلو دى او هيڅ د څنګله ليوانو او پړانګانو وغيره کار نه په درلو دى لانها امانة عند الله ﷻ او په رنګ تکه ژړه وه چي خلګو به مذهبة بلل لان لونها كلون الذهب الاصفر، او دا خوان به شپه درې حصې کرځوله نو يوه دريمه بې د خداى ﷻ عبادت کاوه اويوه دريمه بې خوب کاوه او يوه دريمه به د مور وسر ته ناست وو چي نه بايده مورته يو ضرورت پېښ نسي، او دې څوان به د ورځي بوتي ټولوله او په شابې بازارته راوړه په هر مبلغ چي بې خرڅ

کړه دربمه د هغه مبلغ بې په رضاء د خدای ﷻ خیرات کړه اویوه دریمه بې د مور او خپل د خان لپاره وودې وغیره په رانیوله اویوه دریمه بې مورته ورکړه بالاخیر مور ورته وویل چې زویه دا لرګي او بوټي پرتاډیر تکلیف دی او ستا پلار په وخت د مرګ ماته داسي وصیت وکړې چې هر وخت چې زمازوی ځوان سو او تاسي محتاجه سواست نو مایوه ګستره چې په فلاني ځنګله کي ده ما و خدای ﷻ ته امانت ورکړې ده نودي دی هغه ځنګله ته ورسي هغه مخنی خواست دي وکړي، نو مور و زوی ته وویل چې ته هغه ځنګله ته ورسه او خواست وکړه که ګستره در لره راغله نو تر غاړي بې ونه سه او کورته یې را وله نو بیابې خرڅه کړو خپله ګزاره به په کوو. ځوان چې ځنګله ته ورغلی او خواست یې لکه چې د مخه ذکر سو وکړی ځوان ته ګستره په ځغاسته راغله ځوان ترغاړه ونیوله د کور پر خوایې روان کړه نو ګستري خبري ورسره وکړې په قدرت د خدای ﷻ او ورته وه یې ویله چې ای ځوانه چې د مور فرمان برداره یې فرما سپور سه دا به و تاته اساني وي د پښوتر تګ ځوان ورته وویل چې ماته مور د سپرتیا امر نه دی راکړی بلکه وې ویل چې تر غاړه یې و نسه نو ګستري ورته و ویل که ته پر ماسپور سوی وای بیابه دي پر ما قدرت نه وای پیداکړی ابداً. او هغي ورته وویل که تاغره ته امر ورکړی وای چې د بیخه و ښېږه او زما سره روان سه غر به درسره روان سوی وای، لبرك لاهك" نو ځوان ګستره مورته را وستله مابنام مور ورته وویل چې زویه ته فقیر یې او د ورځي بوټي په شا را وړې او د شپې د خدای ﷻ عبادت دېرګران تاته تمامېږي نوصبا دا غوا بازار ته بوزه او خرڅ یې کړه ځوان ورته وویل چې په څوېې خرڅ کړم مور ورته و ویل چې د بنې غوا قیمت درې دینار دی نوتې هم په درې دیناره که یې مشتري پیدا سو خرڅه کړه

لکن موروړته و ویل که د دري دینار مشتري پیدا هم سو یو وار به زما
سره مشوره کوي، خوان صبا غوا ګنج ته د غواوو یعني د غواوو د
خرڅېدو ځای ته ورووستل. نو خدای ﷻ یوه ملکه په رنګ د سړي ګنج ته
ور واستوله چي د خوان امتحان وکي د مور په اطاعت کي، وان کان الله
به خبیراً او د دې لپاره چي خلګو ته خپل قدرت او د مور د اطاعت قدر
وښیي نو ملکي و خوان ته و ویل چي غوا دي په څو ده! خوان ورته وویل
چي په دري دیناره ملکي دري دینار پر را وکښېښل او وې ویله چي واخله دا
غوا زماده خوان ورته و ویل چي د مور سره یوار مشوره کوم ملکي ورته
وویل چي د مور مشوره پرېږده زه به شپږ دیناره درکړم، خوان ورته و ویل
چي که په تول د غوادینارونه ته راکړې د مور بې مشورې بې دریاندي
خرڅه نه کړم. ملکي ورته و ویل چي ښه دی د مور سره دي ما ښام
مشوره وکړه صبا زه بیا راځم او په شپږ دیناره به یې درڅخه رانسم خوان
غوا بیرته را وستل او مور ته یې د خریدار قصه وکړه مور یې ورته و ویل
چي نو دي ولي نه پر خرڅول خوان ورته و ویل خوتا و ویل چي زماسره به
مشوره کوې، لکن خوان ورته و ویل چي هغه سړي وعده وکړه د بیا چي
صبا راځي او په شپږ دیناره یې رانسي مور یې ورته و ویل چي پرخرڅ یې
کړه لکن که دي خرڅوله زماسره به یو وار مشوره کوې خوان چي صبا
غوا ګنج ته ور وستله هغه سړی بیا ورته راغلی ورته وېویله چي د
مورسره دي مشوره وکړه هغه خوان ورته و ویل هو لکن مور راته و ویل
چي په وخت کي د خرڅولو به بیا هم زما سره مشوره کوې مشتري ورته و
ویل چي د مور تر مشورې تېر سه زه به (۱۲) دیناره درکړم خوان هغه
مخنی خواب ورته و وایه نو یې غوا بیرته کورته راوستله او مشتري و ویل
چي صبا بیا راځم غوا په (۱۲) دیناره زماده خوان چي کورته راغلی او د

دولس (۱۲) دینارو قصه یې مور ته وکړه موریې ورته و ویل چي زویه دا انسان نه دی بلکه ملکه ده په صورت کي د انسان چي خدای ﷻ ستا امتحان کوي، نو صبا چي ورغلې هغه سړي ته و وایه چي مور ستا سره مشوره کوو چي مور دا غوا خرڅه کړو اوکه نه صبا چي ځوان ورغلی نو هغه سړي ته یې د مشورې خبره وکړه نو ملکي ورته و ویل چي ولاړ سه مورته دي ووایه چي غوامه خرڅوه ولي چي موسی بن عمران ﷺ یې ستا څخه رانیسي د یوه قتیل د قاتل د معلومولو لپاره نو که مو خرڅوله ورته و وایاست چي مور دا غوا په دونه قیمت درکوو چي پوست بې د دینارو را ډکوې، اخر الامر چي بني اسرائیلو پلټنې ډېري ډېري شروع کړې خدای ﷻ په جواب جواب سره غوا د ځوان او مور پر غواټپه او حصرکړه او بیا مجبوراً هغه غوا په قیمت مذکوره بني اسرائیلو رانیوله کما سیاتي بیانه في الایات التالیه .

**درویش وایي**:- چي په دې حکایت کي ډېر عبرت او نصائح سته .

(۱) د شیخ صالح توکل پرخدای ﷻ .

(۲) د خدای ﷻ رحم پرخپلو دوستانو .

(۳) بایدامانت د چا نسي ضائع ولي چي خدای ﷻ د شیخ صالح امانت نه کړی ضائع .

(۴) د مور پر او اطاعت د مور برکتونه .

(۵) د امر الهي پلټنه او چون و چرا په کښي ویل سبب د دوني لوي مصیبت گرځي لکه په مذکوره قصه کي چي بني اسرائیلو ته پېښ سو

(۶) د ناحقه وژلو د چا بد عواقب .

**درویش وایي**:- چي بعض جاهلان چونکه په مذکوره قصه کي د غوا خبري د ځوان صالح سره راغلې نو دا قصه موضوعي او بې بنیاده

بولي لکن د حیوان خبري د انسان سره په صحیح حدیثو سره ثابتي دي چنانچه په صحیح حدیث کي چي روایت یې امام بخاري رحمه الله او امام مسلم رحمه الله او نورو محدثانو رح کړی دی، دا سي راغلي دي چي آنحضرت ﷺ یوه ورځ په خپلو خبروکي و ویل چي یو سړی وو چي غوبی یې لپاره د یوي یعني قلبه کشي لپاره را رهي کړی وُ، نو پر سپور سو غوبي ورته و ویله چي زه خدای ﷻ د حراصت یعني یوي لپاره پیدا کړی یم نه د سپرتیا لپاره، صحابه کرامو رضي الله عنهم و ویل "سبحان الله بقرة تکلمت" علیه السلام ورته و ویل "انا اومن به وابو بکر رضي الله عنه وعمر رضي الله عنه" راوي د حدیث وایي چي ابوبکر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه په دغه مجلس کي حاضر وه، او دغه رنګه په بخاري او مسلم کي راغلي دي یوه لیوه او شرمښ د شپانه سره خبري وکړې، حاصل دا چي خبري کول په قدرت الهي پوري اړه لري نه په لویه ژبه سره اونه په نرۍ ژبه پوري، بلکه حیوانات خو پرېږده جمادات هم په قدرت د رب جل وعلا خبري کولای سي و قد ورد في الحدیث الصحیح انه ﷺ قال اني لاعرف الحجر الذي یسلم علی حین جاورت الحراء اوکما قال

## قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا هِيَ

بني اسرائیلو وموسیٰ علیه السلام ته و ویل چي ته خواست وکړه و رب ته ستا چي موږ ته بیان کړي چي څه شی ده هغه غوا چي مړی په ژوندی کېږي بیضاوي او مظهري او صاحب د روح البیان بلکه اکثره مفسران رحمهم الله تعالی د "ماهي" معنا دا سي کوي "ما مایتها و صفتها" وروسته وایي چي حق د سوال دا وو چي دوئ دا سي ویلي وای ﴿اي بقرة هي او کیف هي لان السوال عن الحال والصفة یکون باحد هذین اللفظین یعني اي

شئ او کیف﴾ ولې چې اهل معقول په متنقه توګه وايي چې کلمه د ماسوال دجنس څخه دشي وي غالباً . او جنس د بقرې خو دوئ ته معلوم و

**پوښتنه**:- نو دوئ ولې سوال په "ماهي" سره وکړی ؟

**ځواب**:- چونکه دوئ د مړي ژوندي کیدل او قاتل ښوول په مطلق هر فرد چې د جنس د بقر وي بعید او غیر ممکن باله او د دوئ دا زعم او ګمان وو چې دا بقره د نورو بقراتو څخه بون بعید لري حتی لکه دا غوا به د جنس د بقراتو څخه نه وي بلکه لکه جنس آخر چې وي نو ځکه دوئ دا غوا داسي فرض کړه چې موږ یې ګویا جنس نه پیژنو نو ځکه یې سوال په "ماهي" سره وکړی .

**الاعراب**:- کلمه د "ما" مبتداء ده او کلمه د "هي" خبر دی او دا جمله منصوب محلاً مفعول د "یبین" ده یعني "یبین لنا" جواب هذا السوال او توله جمله جواب د امر یعني "ادعو" ده او په حیز کي د جزم ده .روح البیان

قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَلَا بِكْرٌ عَوَانٌ بَيْنَ ذَٰلِكَ فَافْعَلُوا مَا تُؤْمَرُونَ ﴿٦٨﴾

موسی و ویل چې شان دا دی چې خدای ﷻ وايي چې دغه بقره مامور بذبحها نه به زړه وي سالخورده اونه به داسي خوانه وي چې تر اوسه لنګه سوې نه وي او په منځ کي د دغو دوو سنو ګلو به وي او تاسي په امر کړه سوي یاست چې ذبح د بقرې ده، نو امر په معنا د مامور دی.

**پوښتنه**:- چې عوان هغه حیوان ته وايي چې څو واره لنګه سوې وي کذافي المظهري، لکن درویش وايي چې ددې تطبیق پر غوا د یتیم د

صالح متوکل دېر مشکل دی فتفکر في القضیة المذکورة من قبل.

**فائده**:- حروف د بکر د اولیت لپاره دی ومنه البکرة بضم الباء بمعنی اول الصبح و الباکورة په معنا د اولي مېوې.

**فائده**:- چونکه "ذالك" اشاره ده و "فارض" او "بکر" ته په تاویل د مذکور نو لـه دې سببه اضافت د "بین" و "ذالك" ته روا سو، او هغه سوال نه وارده بړي چي د "بین" لفظ خو متعدد شي ته مضاف کېږي او "ذالك" خو مفرد دی.

**فائده**:- بیضاوي او مظهري او اسمعیل الحقي ﷭ وایي چي دلته یو سوال پیداکېږي چي د راجع کولو څخه د ضمیرمعلومېږي چي د اول الامر څخه مراد د رب جل وعلا شانه هغه بقره معینه د صالح سړي د زوي او د ماینې وه نو به څوك دا سوال کوي چي دلته خو تاخیر د جواب او بیان تر وخت د خطاب اول لازمېږي.

**جواب**:- دا دی چي تاخیر د بیان تر وخت د خطاب جائز دی مګر تروخت دحاجت تاخیر ناجائز دی لکن اکثر حنفیان ح او بعض شافعیان ح وایي چي تاخیر او ځنډول د بیان تر وخت د خطاب هم ناجائز دی، نو دوئ وایي چي د اول الامر څخه مراد د بقرې څخه مطلق ده لکن د دوي په سوالو سره هغه مخصوص وګرځېدله کما مر في الحدیث النبوي ﷺ لَو ذَبحُوا اَیَّةَ البَقَرة ارادوا لَاَجزَئتهم آه" لکن پر دې تقدیر نسخ د حکم الهي قبل الفعل لازمېږي.

**جواب**:- چي نسخه قبل الفعل خو روا ده لکه په لیلة المعراج کي چي پر علیه السلام پنځوس لمنځونه فرض سوه او قبل العمل وه پنځه ته

منسوخ سوه كما في حديث البخاري رحمه الله وغيره من الحديث الطويل في قصة المعراج النبوي ﷺ.

**پوښتنه**:- تخصيص د مطلق ولې نسخه ده ؟

**ځواب**:- تخصيص وتقيد چې تر مطلق وروسته وي د هغه مطلق د اطلاق ناسخ دی او كه چېرې قيد وروسته نه وي بلكه متصل وي هغه ته نسخه نه وايي بلكه تخصيص يې بولي لكه په كفارة اليمين كې پر قرائت د جماهيرو داسې راغلي دی "فصيام ثلاثة ايام" او په قرائت كې د ابن مسعود رضي الله عنه داسې راغلي دي "فصيام ثلاثة ايام متتابعات" نو دا نخسه نه ده بلكه دې ته تخصيص وايي.

**پوښتنه**:- چې اطلاق او تقييد كه په دوو واقعو كې وي نو مقيد پر مطلق نه حمل كېږي كما حمله الشافعيه رحمهم الله بل يجري المطلق على اطلاقه والمقيد على تقييده قال تعالى في حكم كفارة الظهار فتحرير رقبة وفي كفارة القتل الخطا فتحرير رقبة مؤمنة كذا في نور الانوار وغيره من الكتب الاصول.

**تنبيه**:- په پښتنو كې بلكه په ډېرو نورو قومو كې هم دا مشهوره ده چې بقره د بني اسرائيلو غوا وه يعني "تاء" د بقرة لپاره د تانيث ده او د اخفش د قول څخه چې مظهري هم رانقل كړی دی كما مر هم دغه تصريحاً معلومېږي او بناءً على هذا د دروېش په بعض ځايوكې په كستره تفسير كړی دی او په بعض ځايوكې په غوا لكن د ورستني آيت څخه يعني تثير الارض ولاتسقي الحرث آه دا فهمېږي چې په بقره كې كلمه د تا لپاره د وحدت ده او دا مذبوح غويی وو ولې چې د مځكې قلبه كشي چې په پښتو يې يوې بولي او د اوبو را كښل د څاه څخه

عادت غالباً په نرو غویو سره خلك کوي په غواووسره یې نه کوي نو ځکه بعض مفسران رح تفسیر د "ان تذبحوا بقرة" داسي کوي "اي بواحد من جنس البقر .

**سوال**:- که دا بقرة غویی وای نو ضمائر د مونث ولي په ټوله قصه کي ورته راجع کیدله ؟

**ځواب**:- که کلمه د "تاء" لپاره د وحدت وي او دا بقرة نر غویی او جوانه هم وي نو تانیث لفظي خو ورسره دی نو په اعتبار د تانیث لفظي ضمیر د مونث ورته راجع کېږي مثلاً په " تمرة " کي تاء د وحدت لپاره بالاتفاق ده لکن ضمیر د مونث ورته راجع کېږي البته ارجاع د ضمیر مذکر په اعتبار د معنا جنسي هم ورته صحیح دی .

**درویش وایي**:- چي امام ابو منصور الماتریدي رحمه الله وایي چي په آیت مذکور یعني تثیر الارض آه، کي دا معلومېږي چي دا بقرة د بني اسرائیلو غویی وو په هغه دلیل چي اثارة الارض وسقی الحرث من عمل الثیران یعني د نرو غویو کار و، کما قلت آنفاً وقال ذلک الامام رحمه الله في ارجاع الضمائر المونثة الیها هي مبنیة علی التانیث اللفظي کما مر آنفاً ومثل له ذلک الامام رحمه الله بقوله تعالی وقالت طائفة .

**درویش وایي**:- چي نهایت توجیه د قول مشهور دا ده چي د هغه زماني خلګو په سبب د مسکنت او فقر په غواوو هم یوې او قلبه کښي او سقی الحرث کوله "و الی المشهور ذهب الامام ابو یوسف رحمه الله و حقیقة العلم عندالله العزیز العلیم .

**نوروښت وايي:-** چي شايد مطالعه كونكي د دې تفسير به دونه تحقيق په بقرة د بني اسرائيلو په نورو تفاسيرو كي نه كي مطالعه والله الموفق.

**قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا لَوْنُهَا قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النَّاظِرِينَ ﴿٦٩﴾**

بني اسرائيلو و ويل چي ته خواست ستا وخداى ﷻ ته وكړه چي موږ ته دي بيان وكړي چي د دې غوا به رنګ څرنګه وي، نو موسى ﷺ ورته وويل چي شان دا دى خداى ﷻ وايي چي دا غوا به ژړه وي او صاف ژړ رنګ بې وي چي و دې ته كتل به خوشحالي او خوند پيداكوي په زړو كي د كتونكو.

**فوائده:-** چي "فاقع" تاكيد دى د صفرة او "فاقع لونها" مبتداء او خبر دى، او جمله صفت د بقرة **وماقيل ان فاقع مرفوع على الفاعلية فليس بشئي،** ابن عباس ؓ وايي چي شديد الصفرة به وي، او حسن البصري ؒ الصفراء السوداء قال المظهري وليس بشيئ ولي چي فقوع خالص والي ته ژړ والي وايي نوځكه تاكيد د صفرة واقع كېږي كما يقال اصفر فاقع او سواد تاكيد د حلوك دى كما يقال اسود حالك او د سور والي په تاكيد كي احمر قاني ويل كېږي، او د شين والي په تاكيد كي اخضر ناضر ويل كېږي له تولو دغو تاكيداتو څخه مقصود مبالغه په هغه رنګ كي وما في روح البيان چي داسي به ژړه وي چي ښكر او ښو نكري بې هم ژړ وي **فاغراق لا مبالغة فافهم.**

**فائده**:- د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چې د ژړ رنګ بوټونه په پښتو کول خوشحالي ډېره وی ﴿لقوله تعالی تسر الناظرين﴾ او ابن زبیر ﷺ او محمد بن کثیر رحمه الله منع کړې لـه تورو چوټو څخه ولي چي لابس ته يې غم پیدا کېږي او د تاریخ په پاڼرو کي راغلي دي چي د فرعون موزې سرې وې، او دده د وزیر هامان موزې د اوسپني وې او توري موزې یا بوټونه د علماوو دي او په صحیح روایت سره ثابته ده چي د ﷺ موزې توري وې

**قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا هِيَ إِنَّ الْبَقَرَ تَشَـٰبَهَ عَلَيْنَا**

بني اسرائیلو وموسیٰ ﷺ ته و ویل چي ته خواست وکړه زموږ د رب څخه ستا چي موږته دي بیان کړي د دغي غوا به څه حال او صفت وي ولي دغه بقره چي موصوفه په عوان او صفرة سره وي ډېري دي نو پر موږ مشتبه ده چي کومه غوا ذبح کړو .

**سوال**:- دا پوښتنه خو دوئ اول وار وکړه نو بیا په راګرځولو کي څه فائده سته ؟

**جواب**:- هو سوال اول خو دی لکن په را ګرځولو کي غرض مزید توضیح د بقرة مامور بالذبح دی، او دا قول د دوئ ان البقر آه عذر دی د دوئ لـه خوا په راګرځولو کي د اول سوال .

**فائده**:- په هیڅ لفظ قرآني کي دونه ډېر قراءت نه دي راغلي لکه په لفظ کي د بقرة او تشابه، په دې ځای کي په یوه قرائت کي الباقر راغلی دی و هو اسم لجماعة البقر، او په بل قرائت کي الاباقر راغلی دی او په

بل قرائت کي بواقر راغلی دی و کلاهما جمعا بقر، او په بل قرائت کي يتشابه او په بل کي تتشابه بالتذکير والتانيث نو تذکير يې په اعتبار د لفظ د بقر دی او تانيث يې په اعتبار د معنا جنسي دی ولې چي د اسم جنس تذکير او تانيث دواړه روا دي نحو نخل منقعر والنخل باسقات کما في القرآن المجيد او بل قرائت تشّابه بادغام التاء في الشين او په بل قرائت کي تشابه راغلی دی چي يوه تا يې خندي حذف کړې ده او په بل قرائت کي تشابهت مخفف راغلی دی، او په بل قرائت کي تشابهت مشدد راغلی دی او په بل قرائت کي متشابه راغلی دی او په بل قرائت کي متشا بهت راغلی دی، او په بل قرائت کي مشتبهة راغلی دی او په بل قرائت کي متشبه فتامل في صيغها وابوابها وتذکيرها وتانيثها وفعليتها واسميتها او ارجع الی کتب القراءات.

وَإِنَّآ إِن شَآءَ ٱللَّهُ لَمُهْتَدُونَ ۝

او موږ به که اراده د خدای ﷻ وه لار به پيدا کړو يعني و ذبح ته د هغي غوا او يا وقاتل ته د مقتول، روی البغوي رحمه الله عن ابي هريرة رضي الله عنه «قال قال رسول الله ﷺ لولم يستثنوا لما بينت لهم اخر الابد» يعني که دوئ ان شاء الله نه وای ويلې دوئ ته به تعيين د غوا نه وای سوی تر اخر د ابد

قَالَ إِنَّهُۥ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُولٌ تُثِيرُ ٱلْأَرْضَ وَلَا تَسْقِى ٱلْحَرْثَ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيهَا

موسی علیه السلام وويل چي خدای ﷻ وايي چي دا به داسي غوا وي او يا به دا سي غويی وي علی التفسيرين المذکورين چي نه به خواره سوې

وي یعني دنکره سوې به نه وي چې قلبه کښي کوي په مځکه یعني د ذراعت لپاره او نه به د کښت لپاره اوبه په راخېژي.

پوهنه:- چي کلمه د لا ثاني زائده ده او دواړه فعله صفت موضحه د ذلول دي والحاصل لا ذلول مثیرة و ساقیة او نه به وي ددې غوا یا غوایی رنګ مخالف د رنګ څخه د پوست د دي.

پوهنه:- چي شیة مصدر دی پر وزن دعدة و تصریفه وشي یشي وشیا وشیة فهو واش اذا اختلف بلونه لون مخالف.

## قَالُوا الْـٰٔنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ

بني اسرائیلو و ویل چي اوس راتګ وکړی په حقیقت حال د بقره او توله بیان د حال د بقره.

پوهنه:- چي مراد د حق څخه ضد د باطل نه دی یعني هغه د مخه بیانات باطل وه لان هذا کفر.

## فَذَبَحُوهَا وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ ﴿٧١﴾

پوهنه:- چي پس له دې قوله د بني اسرائیلو "الئن جئت آه" دستي عمل د ذبح د بقرې نه دی سوی بلکه تقدیر دکلام داسي دی "فطلبوها بکمال اوصافها فلم یجدوها الامع الفتی فاشتروها بملا سکها ذهبا فذبحوها" نو یې حلاله کړه بقره اود وئ یعني بني اسرائیل ودې ته نژدې سوي نه وه چي دا کار دي وکړي یعني بقره خو یې ذبح کړه لکن قبلاً ودې ته نژدې نه وه چي ذبح دې کړي.

**پوهنه**:- چي جمله "وما كادوا آه" حال دى د ضمير څخه د "ذبحوا آه" روح البيان نقل كړى دى د يو چا څخه چي د ابتداء څخه د امر الهي د ذبح تر وخت پوري د ذبح څلوېښت كاله تېر سوه و هذا بعيد جداً عقلاً و نقلاً كما لايخفى.

**پوهنه**:- سبب د "ماكادوا يفعلون" يا خو تطويل او كثرت د سوالو د دوئ وو او يا سبب ګران والى او ثقل د ثمن د بقرې وو او يا له سببه د ظهور د قاتل د رسوايي څخه بېريدل و هذا الوجه انما يصح اذا كان طرح بنو اسرائيل المقتول عند قرية من غير اليهود و دعوا القتل على اهل القرية فتامل.

**وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادّٰرَءْتُمْ فِيهَا ۖ وَاللَّهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ ﴿٧٢﴾**

**هذا اول القصة يعني په ياد كړئ هغه وخت چي تاسي وواژه يو سړى**

**پوهنه**:- خطاب د جمع كه څه هم قاتلان دوه كسه وه په سبب د وجود د قتل په دوئ كي يعني اسناد يې مجاز دى حيث اسند الى الكل ماصدر عن البعض كما يقولون بنو فلان قتلوا مع ان القاتل منهم واحد، نو تاسي هر چا دفع د خپل ځانه كوله او مړى مو پر بل تاوانه وه نو اصل معنا د "درء" دفع ده او حاصل د معنا يې اختصام دى.

**پوهنه** چي اصل "ادارئتم تدارئتم" نو يې تا په دال كي مدغمه كړه لقرب المخرج چونكه ابتداء بالساكن په عربي ژبه كي نسته نو همزه د وصل يې ورته را جلب كړه، او خداى ﷻ مخرج يعني مظهر دى د هغه شي چي تاسي پټاوه يعني القاتل.

**سوال**:- لفظ د مخرج خو په حال د نزول د قرآن په معنا د ماضي دی او قانون نحوي دی چي اسم فاعل چي په معنی د ماضي وي عمل نسي کولای نو دلته څرنګه مخرج عمل په "ماکنتم آه" کي عمل وکړي یعني چي "ماکنتم آه" مفعول د مخرج وګرځېدی او منصوب محلاً سو ؟

**ځواب**:- په عمل کي د اسم فاعل زمانه د تکلم اعتبار نه لري حتی یرد ماقلت، بلکه معتبر حال د حکم دی چي تر اسم فاعل د مخه وي چي هغه دلته "تدارء" دی ﴿ولاریب ان الاخراج لما کنتم تکتمون﴾ تر تدارءتم وروسته دی یعني مستقبل دی او اسم فاعل چي په معنا د مستقبل وي عمل کولای سي .

**فائده**:- حالت د ماضي چي حاضر فرض کړي او تعبیر په اسم فاعل څخه وکړي هغه هم عمل کولای سي کما اعمل باسط ذراعیه فافهم .

**فائده**:- روح البیان وایي چي مخاطب په قتل سره بني اسرائیل في زمن نبي ﷺ دي او سره ددې دا قتل خو په اسلافو کي ددوی پیداوو لرضاهم بفعل اولائك .

والمعنی په یاد کړئ اي بني اسرائیلو د عصر نبوي ﷺ وقت د قتل د اسلافو ستاسي یو سړی چي نوم یې عامل بن شراحیل وو .

**فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ بِبَعْضِهَا**

نو موږ پس لـه ذبحي ودوئ ته وویل چي تاسي دا مړی په بعض د هغي بقرې ووهي .

**پوهه**:- چي جمله د "فقلنا آه" عطف دی پر "ادارئتم" او "والله مخرج آه" جمله معترضه ده په مابين کي د معطوفينو او ضمير مذکر د فاضربوه راجع نفس ته دی په تاويل د شخص.

**فائده**:- چونکه خدای ﷻ لفظ د بعض مطلق وواېه نو ښه دا ده چي پر خپل اطلاق پاته سي يعني اي بعض کان لکن مع هذا. بعض مفسران رح وايي چي د لکي په ښخ بې ووهی؛ بعض وايي په ژبه د غوا بې و وهي بعض وايي چي په راسته ورانه بې و وهی.

**فائده**:- مشبه د وروسته يعني کذالك آه محذوف دی يعني دوی مقتول وواهه په بعض د بقري هغه ژوندی سو په قدرت د خدای ﷻ او تر ښارګو بې وينې بهېدلې او وې ويل چي زه فلاني وفلاني ذبح کړم او دا چي بې و ويل نو سمدستي غخار اومړ سو، نو قاتل بې د ميراث څخه محروم سو لکن چونکه مدعي د قصاص بې نه وو نو څکه قصاص نه سو و ما في روح البيان فاخذ او قتلا آه محل بحث الا ان يقال قتلا سياسة.

**فائده**:- موسی ﷺ ولي په خپله هغه مړی نه وواهه تا چي څوك توهم د سحر ونه کړي

كَذٰلِكَ يُحۡيِ اللّٰهُ الۡمَوۡتٰى

او داسي خدای ﷻ ژوندي کوي مړي يعني په سبب ظاهري چي هغه په نيز د عقل مؤثر في الحقيقة نه دي.

وَيُرِيۡكُمۡ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ ۝

او په تاسي کي اي بېوقوفانو د بني اسرائيلو خدای ﷻ ويني دلائل د قدرت خپل يعني هغه څوك چي پر احياء د نفس واحدة قادر وي په صرف سبب ظاهري غير مؤثر هغه قادر دی پر ژوندي کولو د ټولو انسانانو په ورځ د قيامت

**پوښتنه**:- د بني اسرائيلو مړی خو خدای ﷻ په خپل قدرت عظيمه ژوندی کړی نو ولي خدای ﷻ اول وار دا مړی نه ژوندی کاوه يعني بېله شرط د ذبح د بقرې ؟

**ځواب**:- عادت الهي په دې سره جاري دی چي په دار الاسباب دنيا کي تقديرات خپل په اسبابو پوري مربوط کوي که څه هم عقلاً وشرعاً هغه صرف اسباب ظاهره وي او موثر نه وي، او بل دا چي په شرط ولو کي د ذبح البقرة تقرب الى الله عز وجل ته دی او بل په ذبح د غوا د يتيم نفع مالي د يتيم وه او د توکل على الله خاصه فائده ظاهرول وه يعني چي پلار د يتيم پر توکل على الله خپل ګسټره په ځنګله کي خوشي کړه او په دې اشتراط کي دا فائده هم ظاهره سوه چي څوك چي تقرب الى الله ﷻ ته کوي په مالي شي بايد په انفس او په هغه ګران قيمت سره دې کوي لکه په ما نحن فيه د يتيم غوا کما مر من قيمتها "ويوئيده" هغه حديث چي ابو داؤد يې روايت کړی دی چي عمر ﷺ اضحيه وکړه په يوه نجيبه اوښه سره چي قيمت يې درې سوه دينار وو چي په هغه زمانه کي تر دغې او ښې ګران مايه اوښه هيڅ نه وه .

**فائده تصوفيه** - پوه سه چي صوفيه کرام رح د بعض نصوص د باطن څخه يو بل بيان کوي نه په دې معنا چي هغه معنا چي دوئ يې بيانوي تفسير مستقل دی بلکه تفسير خو هغه دی چي د ظاهر الفاظو څخه د قرآن بحسب اللغة العربية مع ملاحظة العلوم العربية کالنحو والصرف والمعاني والبيان وغيرها فهمېږي لکن دا اشارات تصوفيه صرف يو بيان کنايي دی .

نو واوره چي دوئ وايي چي كه غوك غواړي چي لوي د ښمن خپل چي زما په موت حقيقي كي يعني الجهل بالمعارف والعلوم الحقة كوشش كوي وهو النفس الامارة بالسوء دى وپېژنم نو لازم داده چي دى د دنفس امارت غوا چي قوة شهوية دى ذبح كړي يعني شهوات نفسيه دي په رياضاتو او اذكارو او خلوت خانو سره زائل كړي په داسي وخت كي د خوانى او د سپين رېرتوب په منځ كي وي كما قال الله تعالى في بقرة بني اسرائيل لافارض ولابكر عوان آه وهكذا الى اخر القصة القرآنية، نو پر مور مومنانو دا واجب ده چي مور كوشش وكړو په احياء كي د نفوسو خپل په حياء حقيقي سره يعني نفس امارة خپل مطمئنه وګرځوو او زړونه خپل په اصلاح حقيقي سره اصلاح كو يعني پر صرف لحم صنوبري باندي پري نږدو بلكه معدن د معارفت الهيه يې وګرځو ليتميز قلو بنا عن قلوب الحيوانات العجم، او اعمال او عبادات په اخلاص حقيقي سره وكړو يعني على طريقة ماجاء في الحديث النبوي ﷺ ان تعبد الله كانك تراه الى اخر الحديث كما في الحديث المتفق عليه الطويل وورد في الحديث الصحيح ان الله لاينظر الى صوركم و احوالكم بل الى قلوبكم واعمالكم، سعدي شيرازي رحمه الله وايي

شخصم بچشم عالیان خوب منظر است
وز خبث باطنم سر خجلت فتاده پیش

طاؤس را بنقش نگاري كه هست خلق
تحسين كنند او خجل ازپاى زشت خويش

# ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً

پوښتنه:- چي كلمه د "ثم" لپاره د استبعاد ده او مخاطب معاصرين د نبي ﷺ دي بالخصوص ملايان د يهودو او قسوة او قساوة غلظت او صلابت ته وايي لكه په ډبره كي نو په زړو كي قساوت عبارة دی دعدم قبول الحق والعبرة بحال الغير، نو په اصطلاح دعلم بيان په قست كي استعارة تبعية ده، او يا استعارة تمثيلية وتحقيقها في العلم المذكور او كلمه د "او" خو لپاره اصلاً د شك ده او شك پر خداي ﷻ محال دی نو دلته يا لپاره د تخيير ده يعني اوريدونكي د حال مخير دي په دې كي تشبيه له ډبري سره كوي، اوكي د "اشد قسوة" كما في او الواقع بعد الامر نحو اقتل كذا وكذا، او يا كلمه د "او" لپاره دشك ده لكن شك راجع دی وناظر ته دحال د دغو يهودو يعني هغه شك دی چي دكوم شي سره مشابه دي زړونه ددوئ.

پوښتنه:- چي "او اشد قسوة" معطوف دي پر لفظ د حجارة نو معنا داده چي زړونه ددوئ په قسوة كي لكه ډبره دي او يا لكه اشد قسوة تر ډبري لكه وسپنه او بعض مفسران رح وايي چي اشد قسوة معطوف دی پر كالحجارة نو پر دي تقدير لفظ د مثل ورسره مقدر دی فالمعنى فهي كالحجارة او مثل ماهو اشد منها. بيا مضاف حذف سو او مضاف اليه يې په ځای كي ودرېدی.

پوښتنه - لفظ د "اقسی" چي اسم تفضيل دی او تر اشدقسوة كوتاه دی ولي نه وويل سو؟

**جواب**:- په لفظ کي د "اشد" مبالغه ده په شدت کي چي پر شدت ماده وضعیه دلالت کوي بخلاف اقسیٰ لانه انما یدل علی الشدة صیغة فقط فتامل .

**نوبنیش وایي**:- چي هذا حاصل مافی التفاسیر الحاضرة عند الفقیر وتشریح تلك التفاسیر، نو اوس واوره سلیسه ترجمه د ایت مذکوره

او بیا کلک سوه زړونه ستاسو وروسته تر هغه نو ستاسو زوړونه لکه دبري دي یا سخت تر دبري لکه وسپنه .

**پوښتنه**:- ستا دا تفسیر خو د پښتنو لپاره دی نو پښتانه به استعاره بتبعه او استعاره تمثیلیه، او یا ورته ودغو ته د عربي علومو په اصطلاحاتو څه پوهېږي نو څرنګه عبیدالله ته د موضوع د تفسیر د باندي نه ولاړې ؟

**جواب**:- زه منم چي زما دغه تفسیر د پښتنو لپاره دی لکن ما هیڅ کله دا نه دي ویلي چي د تفسیر د پښتنو د عوامو لپاره دی نو په اصطلاحي عربي مسائلو که څه هم عوام الناس نه پوهېږي لکن علماء او طالبان په پوهېږي فلم اخرج عن موضوع التفسیر هداك الله تعالی .

# وَإِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْأَنْهٰرُ

او په تحقیق بعض لـه دبرو څخه هر آینه په کثرت سره بهېږي لـه هغه څخه ولي .

**فائده**:- په دي آیت کي بیان دی د کثرت د قسوت د زړو د دوئ یعني د بني اسرائیلو تر دبري او بیان دی د اشد قسوة .

فائده:- مِنَ الْحِجَارَةِ خبر مقدم دی د "اِنَّ" او خبر يې "لَمَّا" دی او لام لپاره د تاکيد دی او د "مِنْهُ" ضمير راجع دی و "مَا" ته او "مَا" عبارة دی د ډبرې څخه نو تذکير د ضمير په اعتبار د لفظ د "مَا" دی، او تفجر بهبدل دي د اوبو په کثرت سره او انهار جمع د نهر ده چې مجری وسيع ته وايي

# وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَآءُ

او په تحقيق بعض لـه ډبرو وچوي نو راوزي لـه هغه ډبرې څخه اوبه يعني چينه دون النهر.

فائده:- اصل د يشقق يتشقق و بيا يې تا په شين کې مدغمه کړه.

پوهنه:- چې دا عبارت قرآني لپاره د تعميم د اوبو بهبدلو دی له ډبرو څخه د قسم د ترقي نه دی ولې چې تفجر تر تشقق بالا دی فافهم.

# وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ

او بعض لـه ډبرو څخه د لوړه خايه څخه راشوه سي کښته خای ته لـه بېرې د خداي ﷻ.

والحاصل:- چې د بعض ډبرو څخه اوبه د ولو په شان راوزي او د بعض ډبرو څخه اوبه د چينو پر ډول راوزي او انسانان او حيوانان او نباتات نفع خندي اخلي بخلاف هؤلاء اليهود چې د دوئ لـه زړو څخه نه د معرفت الهي ولي راوزي او نه د اقرار په نبوت محمدي ﷺ چينې راوزي، او بعض ډبري د خداي ﷻ لـه بېرې کښته راشوه کېږي بخلاف هؤلاء اليهود چې دوئ د حسد او تکبره لـه لوړي څخه وکښته خای ته د انقياد و امر الهي ته د بېرې د خداي ﷻ نسوه راشوه فحق القول ﴿ان قلوبهم اشد قسوة من الحجارة﴾

**فائده جليله:-** معتزله وايي چي خشيت د ډبري پر طريقه د فرض دی يعني ان کان له عقل لفعل ذلك، او قاضي ناصر الدين البيضاوي رحمه الله سره ددې چي ناموړی سني شخصيت دی په دې مقام کي وايي چي خشيت پر حقيقت باندي نه دی محمول ولي چي حقيقت خشيت علم او فهم غواړي چي په جماداتو کي نسته بلکه مراد دلته مجازاً انقياد د امر الهي دی، علامه مظهري رحمه الله دا خبره د بيضاوي ليس شيئ ګڼلې ده، او علامه بروسوي رحمه الله وايي چي مذهب د اهل السنت والجماعت دادی چي ډبره که څه هم جماد ده لکن خدای ﷻ ودې ته فهم ورکړی دی چي په هغه فهم د خدای ﷻ څخه ببرېږي فوق د ببري د بعض انسانانو، او ټولو جماداتو او نباتو ته خداي ﷻ فهم قوت د تسبيح او تهليل ورکړی دی چي پرته له خداي ﷻ څوك نه په پوهېږي، قال جل ذکره ﴿وان من شيئ الا يسبح بحمده ولکن لاتفقهون تسبيحهم﴾ وقال عز من قائل ﴿والطير صافات کل قد علم صلاته وتسبيحه﴾ فعلينا الايمان بذلك وتفويض علمه الى الله عزوجل، او په ډبرو کي حقيقت خشيت شته په حديث کي د هجرت نبوي ﷺ راغلي دي چي څه وخت چي عليه السلام په معيت د ابوبکر رضي الله عنه د شپې له مخه د مکې مکرمې له ښاره ووتل اول د ثبير غره ته ورغلل ثبير ورته وويل چي زما څخه کښته سئ ولي چي کفار د مکې ستا د وژلو په طلب کي سر ګرم دي خو زه د خداي ﷻ څخه ببربږم چي په ما کي ته ونه وژل سې او ما به خداي ﷻ په عذاب کړي نو جبل ثور ور ناري کړې الي يارسول الله ﷺ ماته راسه اي رسول د خداي ﷻ او په حديث متفق عليه کي راغلي دي چي آنحضرت ﷺ چي ممبر د مسجد نبوي ﷺ نه و جوړسوی تکيه يې ويوې ستني د مسجد چي د خرما وچ لرګی وو کوله بيا څه وخت چي ممبر نبوي ﷺ جوړ سو او عليه السلام د

خطبې لپاره پر ممبر کښېنستی هغه ستن له فراقه د نبي ﷺ په ژړا سوه حتی چي اهل مسجد ټولو واورېدل حتی چي نبي ﷺ ښکته ورته راکښېنسته سو او ستن يې په غېږ پورې ونيول فتحن کحنين الصبي الذي يسکت فسکتت، او في المثنوي

انکه اورا نبود از اسرار داد کی کند تصدیق اوناله جماد

او داغه رنګه په صحيح حديث کي راغلي دي چي د هغه پسه غوښو چي په خيبر کي يهودايانو زهر ور اچولي وه او نبي کريم ﷺ ته يې د مهماني په توګه راوړي وې پس لـه دې چي عليه السلام يوه يا دوې ګولي ښندي وخوړلې، نو هغه غوښو ورته يې وويل چي په ما کي زهر دي ما بالا مه خورئ.

**درويش وايي:-** چي دا حديث ډېر طويل دی، وايضاً قد ورد في الحديث الصحيح ﴿ان النبي ﷺ يوماً اراد قضاء الحاجة وامر شخصاً ان يقول لهاتين الشجرتين ان ياتيا فآتيا وضمنا فاستترالنبي ﷺ بهما فاذا قضا الحاجة ذهبتا الی مکانها او کما جاء الحديث﴾ وفي المثنوي

نطق آب ونطق خاک ونطق گل هست محسوس حواس اهل دل

فلسفي کو منکر حنا نه هست از خواص اولياء بيگانه است

وقد ورد في الحديث المتفق عليه بينما راع في غنمه عدا الذئب فاخذ منها شاة فطلب الراعي حتى استنقذها منه فالتفت اليه الذئب فقال من لها السبع يوم ليس لها راع غيري فقال الناس سبحان الله ذئب تکلم فقال عليه السلام انا او من به ابوبکر وعمر قال الراوي وماهما ثَم

وايضاً ورد في الحديث الصحيح عليه السلام وايي چي زه هغه ډبره پېژنم چي زه به قبل النبوت غار حرا ته تلم دي به ويل السلام عليکم.

**ډروېش وایي:-** چي که زه د تسبيح او جزوع د جمادات په تفصيل بيان کړم ورقي به ډکي سي لکن

ناطبع شریفت نبذیرد ملالتی ... ان به که بیان را بدعاء مختصر کنم

وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝

او نه دی خداي ﷻ غافل او ناخبره لـه هغه کارو څخه چي تاسي يې کوئ.

**پوه سه:-** چي په دې آيت کي وعيد شديد دی د هغه کسانو لپاره چي قسوت القلب لري او د قرآن او مواعظو بليغه و څخه د عليه السلام يې زړه نه نرم کېږي، وقد قال الله تعالى ﴿لو انزلنا هذا القرآن على جبل لرئيته خاشعاً متصدعاً من خشية الله، وتلك الامثال نضربها للناس لعلهم يتفكرون﴾

اَفَتَطْمَعُوْنَ اَنْ يُّؤْمِنُوْا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُوْنَ كَلٰمَ اللّٰهِ ثُمَّ يُحَرِّفُوْنَهٗ مِنْۢ بَعْدِ مَا عَقَلُوْهُ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ۝

ايا تاسي طمع لري؟ خطاب دی و عليه السلام ته او مسلمانانو ته چي ايمان به راوړي يعني يهوديان په سبب ستاسي د دعوت او تبليغ او حال دادی چي وه يوه ډله ددوئ چي وايې ورېدی کلام د خدای ﷻ يعني تورات او بيا به دوئ تغير ورکاوه وهغه کلام الله ته وروسته تر دې چي دوئ به په پوه سوه چي کلام الله تورات خو داسي وايي لکه نعوت د عليه السلام چي احبار يعني ملايانو ددوئ يا تغير ورکړی او يا يې پټ کړه

جداً للرياسته وماكانوا ياخذونه من الاموال من سفلتهم، او داغه رنګه
ايت الرجم يې هم پټ كړې لاجل الرشوة او دوئ به علم درلودی يعني پر
دې چي موږ دروغ وايو پر تورات. وهذا قول مجاهد وقتاده وعكرمه
والسيدي وجماعة من المفسرين رح. او ابن عباس ﷺ وايي چي دا آيت په
اسلافو كي د بني اسرائيلو دی يعني هغه اويا (۷۰) كسان چي حضرت
موسیٰ كوه طور ته ببولي وه لپاره د شهادت پر خبرو د موسیٰ ﷺ د
خدای ﷻ نو كلام الله مع موسیٰ ﷺ دوئ تولو واورېدې او په وهم
پوهېدل نو صادقو مومنانو هغه بيان وقوم ته وكړی چي اورېدلي يې وه و
بعض منافق صفتو ددغو اويا كسانو وه قوم ته داسي وويل چي موږ امر
او نهي دخداي ﷻ له خوا وليدلې لكن په اخر كي خدای ﷻ داسي هم
وويل چي ستاسو خوښه ده كه په دُغه امر او نهي عمل كوي او كه يې نه
كوي.

**فائده**:- همزه د استفهام په "افتطمعون" كي لپاره د انكار دی يعني
دا طمع ويهودو ته مه كوي لكه چي عليه السلام او مومنانو به يهودو ته
درلوده.

**فائده**:- كلمه د فاء لپاره د عطف ده پر مقدر باندي اي "اتسمعون
اخبارهم وتعلمون احوالهم كمامرت في الايات السابقة فتطمعون آه.

**فائده**:- د "ان يومنوا" څخه يا ټوله يهود مراد دي او يا ملايان ددوئ

**فائده**:- فريق اسم جمع ده چي مفرد د خپل لفظه نه لري، لكه قوم او
رهط.

**فائده**:- ددې فريق څخه بعض مفسرين ﷺ وايي مراد ملايان د دور
حاضره نبوي ﷺ دي وهو الظاهر من قوله تعالی "افتطمعون. او بعض

مفسرین وايي چې مراد اسلاف د دوئ دي نو پر دې تفسیر معنی د آیت داسي ده چې تاسې ومومنانو ته د عصر حاضر طمع د ایمان لري او سره ددې چې يوه ډله د اسلافو ددوئ کلام الله مع موسی ﷺ واوریدی او بیا يې وه هغه ته تغیر ورکړ، حاصل داچې ددې قوم عادت دی تغیر د کلام الله نو ددې قوم طمع د ایمان نه ده پکار.

وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا ۚ وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُم بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ

او چې ملاقي يعني يو ځای سي يهود يعني منافقين د دوئ د هغه کسانو سره چې ایمان يې راوړی دی يعني اصحاب النبي ﷺ نو دوئ وايي چې موږ هم ایمان راوړی دی يعني لکه ایمان ستاسو او دا هم ورته وايي ان محمداهو البشر به فی التورات، او چې خالي سي يعني رجوع وکړي بعض د يهوديانو يعني چې منافقان نه وي بلکه مجاهرين باليهوديت وي الی بعض يعني د هغو کسانو سره چې منافقان وي د خلوت معنا وي د خلوت معنا داده چې بل هيڅوک نه وي ببله دوي.

پوهه:- چې د "خلا" چونکه "الی" صله نسي کيدای علی قانون العربية، ولي چې صله د خلوت باء د حروف جاره و ده کما يقال خلوتُ بفلانٍ.

نو ځکه مفسران وايي اې منضمين الى بعض چي دې ته په اصطلاح د نحو تضمين وايي يعني چي د يو فعل سره لكه چي "خلا" دى د بـل فعل لفظ ورسره مقدر په قرينه د صلې د هغه يعني حرف جر چي د لـته لفظ د "الى" دى نو وايي هغه كسان ددوي يعني منافقينو ته ددوي د سرزنش پر ډول چي ايا تاسي خبر وركوي مسلمانانو تـه، استفهام انكاري دي يعني داسي بايد ونه كړي په هغه شي سِر او راز چي خداى ﷻ وتاسي ته ښولى دى يعني تورات كي چي نعوت د عليه السلام دى.

**درویش وایي**:- چي استفهام پـر تقديـر مـذكوره يعني پـه "اتحدثونهم" كي لپاره د تفريع دى د مجاهرينو له خوا څخه منفافقينو ته. يعني منافقينو ته سرزنش وركوي چي تاسي ولي و مسلمانانو تـه دا بيـان كوي، اوقاضي بيضاوي يو په زړه پوري تفسير داسي كړى دى چي فاعل د "قالوا" ثاني منافقين دي يعني دوي وخپـل قوم ته تهنا وايي چي فكر كوئ، چي تاسي اظهار او بيان د ما في التوراة من نعوت محمد ﷺ و مسلمانانو ته ونه كړى په دې كي د منافقينو غرض دادى چي موږ خو په يهوديت كي قائم او سر سخت يو چي ستاسي تر خولـه څه خبري په باره كي د نبي اخر زمان څوك وا نه وري، نو پـه دي تقدير استفهام لپاره د نهي او منع دي.حاصـل دا چي منـافقين د مومنانو او د خپـل قوم دواړو سره منافقت كوي.

لِيُحَآجُّوكُم بِهِۦ عِندَ رَبِّكُمۡۚ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ۝

**پوهه**:- چي لام متعلق دى په حديث سره او دا لام د غـرض نـه دى بلكه لام عاقبت دى نحـو "لدوا للموت وابنو اللخراب" نـو معنى داده چي عاقبـت ستاسي ددې تحديث بـه داوي چي مومنـان بـه ستاسي پـه دغه

تحدیث سره ستاسي سره دلیل وايي په نیز د خدای ﷻ ستاسي، او تاسي به په دې حجت سره مغلوبه او ساکت وګرځوي آیا تاسي په دغه مغلوبیت په نېز د خدای ﷻ او رسوایي نه پو هېږي، نو مفعول د "تعقلون" محذوف دی او یا معنی داده "افلا عقل لکم تعلمون بـه خطـاتکم الفاحش في ذالک التحدیث نو تعقلون منزل منزلة لازم دی.

**فائـده**:- بعض مفسرین رحمهم الله د "عند ربکم" معنا داسي کوي چي "عند کتاب ربکم" چي تورات دی، کما یقال في حکم هو عندالله کذا اي في کتابه و شرعه، او بعض مفسرین وایي چي معنی د عند ربکم داده چي په ورځ د قیامت به په حضور کي د خدای ﷻ مسلمانان به پر تاسي شاهدان او ګواهان وي چي په خدای ﷻ دغه منافقین په حقیقت سره په تورات پو هېدله او په حقیقت د دین محمدي ﷺ پوهېدله او سره د هغه په باطن خندي منکروه، نو تاسي به خدای ﷻ ته څه جواب وه وایاست، لکن بیضاوي رحمه الله پر دې تفسیر دا سوال کړی دی چي دوئ خو اهل کتاب وه په دې پوهېدله چي اخفاء د حکم الهي پـه اخرت کي فائده نه کوي، واجاب عنه المظهري بجواب لاافهمه والله اعلم.

او پر جواب د مظهري رحمه الله حواشیو د بیضاوي مفصل رد کړي دی، او بعض مفسران وايي چي معنی د آیت داده "عند رسول ربکم" پر دې تفسیر محاججت او مغلوبیت پـه نیز د علیه السلام خدای ﷻ عین مغلوبیت په نیز خپل يې وباله لپاره د تعظیم د علیه السلام او یا مضاف محذوف دی، فافهم.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا په هیله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

اَوَلَا يَعْلَمُونَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۝

**پوهـنـه:** چې همزه د استفهام داخل پر محذوف دی او کلمه د "واو" عطف پر هغه محذوف ده، والتقدير يقولون ما قالوا ولا يعلمون، او دوئ نه پوهېږي چې په تحقيق خدای ﷻ خبر دی په هغه شيانو چې دوئ يې پټوي او په هغه شيانو چې دوئ يې ښکاره کوي چې د هغو شيانو څخه پټول د کفر دی او اظهار د بل شي، و تحريف الكلم عن معانيه في كتابهم التوراة

**درويـش وايـي:-** چې اول تفسير د حال سره د منافقينو ډېر مناسب دی، دون الثاني لان المنافقين اظهروا عند المؤمنين ما في التوراة بان النبي ﷺ هو المبشر به في التوراة قال عز وجل

وَمِنْهُمْ اُمِّيُّوْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ اِلَّآ اَمَانِيَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ ۝

او بعض له يهودو څخه اميان دی

**پوهـنـه:-** چې امي يا منسوب دی امة العرب ته چې خالي د علم او کتابت څخه وه، او يا منسوب دی وام ته يعني څرنګه چې مور زېږولی وو هغه سي بېعلمه پاته دی، والمآل وا حد چې اميان نه پوهېږي په کتاب سره يعني په تورات يعني تاچي دوئ مطالعه کړي حققيت حال د نبي اخرالزمان ﷺ او د هغه احوال او صفتونه به دوئ ته معلوم سوي وای، نو به يې ايمان راوړی وای مګر دغه اميانو زده کړی اماني.

**پوهـنه**:- چي اماني جمع د امنيت ده چي تمنى څخه ماخوذ دي او استثناء د اماني د کتاب څخه استثناء منقطع ده، ولي چي اماني يعني اکاذيب باطله خو د جنس څخه د تورات نه دي، معنى داده چي ودوئ ته شهوات باطله ثابت دي يعني هغه تغيرات چي ملايانو ددوئ په احوال کي د عليه السلام کړي دي، او دوئ ته يي بيان کړي دي اويا دا چي دوئ ته عذاب النار نسته مګر يو څو ورځي "كما قال الله تعالى اياما معدودة" چي دا هم د خرا فاتو څخه ددوئ د ملايانو دی، او يا دا چي زموږ اجداد، نيکه ګان انبياء دي هغه په ورځ د قيامت د هري نوعي د ګناه شفاعت زموږ کوي او داتوله بي حجته او بي دليله خبري دي، او نه دي دغه اميان مګر نه په دغو خبرو کي دوئ ګمان کوي يعني يقين نه پرلري كما هو حال المقلد للباطل.

**فائده**:- په "الايظنون" کي اصل مستثنى محذوفه ده او صفت يي په ځاى کي د رېدلى دی، والتقدير ان هم الاقوم يظنون، يعني لاعلم لهم بذالك.

**سوال**:- دغه اميان د يهودو خو به يا مقلد وه د خپلو ملايانو او يا به جاهلان په جهل مرکب سره، و کل منها جازم والظن اعتقاد غير جازم بل غالب كما ثبت في كتب المنطق فيكيف اطلق على اعتقادهم الظن ؟

واجاب عنه القاضي البيضاوي بقوله وقد يطلق الظن باذاء العلم على كل راي واعتقاد من غير دليل قاطع وان جزم به صاحبه كاعتقاد المقلد الجازم والزائـع ان الحق لشبهة وحاصل.

**الجواب**:- چي مراد د ظن څخه هغه معنى منطقي مذکوره نه ده بلکه مراد ځندي مقابل الحق دی که څه هم صاحب الظن يي جازم وي فتامل فانه دقيق.

فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

**پوهنه**:- چي "وَيل" يوه كلمه ده هر سړی چي په هلاكت كي واقع سي وايي يې حتى نو يې معنى بښرا ده وخپل ځان ته په عذاب سره او دلته يې معنى داده "عقوبت عظيم" نو "ويل" مبتداء ده او مابعد يې خبر دی، او د نكره مبتدا والی په سبب د توصيف با العظمة ده نحو "شر اهر ذاناب، وقال رسول الله ﷺ "الويل واد في جهنم يهوي فيه الكافر اربعين خريفاً قبل ان يصل، نو ابتداء يې پر دې تقدير په سبب د علميت ده.

**ترجمه**:- نو عذاب دی او هلاكت دی هغو كسانو لره چي نوشته كوي الكتاب يعني تورات چي دوئ تحريف او رد و بدل پكښي كړی دی په خپلو لاسو.

**پوهنه**:- چي كتابت خو په لاسونو وي نو فائده د "بايديهم" دفع د توهم د مجاز ده، ولي چي كاهي سړی وايي چي كتبت الي فلان او سره ددې چي ده په خپل لاس نه وي نوشته كړی بلكه په بل سړي يې نوشته كړی وي او بيا دوئ وايي و عوامو ته خپل دغه كتابت يعني المحرف د طرفه څخه د خدای ﷻ دی يعني اصلي تورات دی.

**پوهنه**:- چي څه وخت چي رسول الله ﷺ و مدينې منورې ته راغلی او دايې اعلان وكړی چي زما نعت او احوال په تورات كي موجود دي، نو ملايان د يهودو ويرېدله كه موږ اظهار د تورات واقعي عوامو ته خپل وكړو نو هغه به پر محمد ﷺ ايمان راوړي نو زموږ رياست به پر عوامو پر

شطره د زوال سي او هغه صدقات چي مور د عوامو څخه تر لاسه کوو د منځه څخه ولاړسي نو يې صلاح دا وکړه چي نعوت د نبي اخر الزمان ﷺ چي په تورات کي وه بدل يې کړی مثلا په تورات کي داسي وه چي نبي اخر الزمان به حسن الوجه وي جعد اشعر به وي يعني ويښتان به يې وړده وي او توري ستر ګي به يې وي او ميانه قده به وي، نو ملايانو د يهودو داسي نوشته کړه چي نبي اخر الزمان سور سړی وي اوشني ستر ګي به يې وي وربښتيان به يې هيڅ کت نه لري، نو عوامو چي به په باره کي د عليه السلام د خپلو ملايانو څخه پوښتنه وکړه دوئ به هغه خپل ليکلي اکاذيب ورته ويله يعني د نبي اخر الزمان په تورات کي دغه صفتونه او حليه ده چونکه عوامو به هغه حالات او نعوت په عليه السلام کي نه ليدله نو بې له عليه السلام انکار کوی او ايمان به يې نه راوړی.

**درويش وايي**:- چي ملايانو ديهودو دنيا ته تر ثواب الآخرة ترجيح ورکړه "فضلو واضلو بعض علماء السوء فينـــاء، او د يهودو د ملايانو دغه غرض شوم خدای ﷻ په داسي کلماتو کي بيان کړی دی.

# لِيَشْتَرُوا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيلًا ۚ

تا چي دوئ رانسي او حاصل کړي په دغه تحريف سره يو ثمن لږ.

**پوهنه**:- چي اطلاق د شراء دلته مجازي دی ولي چي تحريف خو مال نه دی او شراء خو مبادلة المال بالمال ده .

**پوښتنه**:- ملايانو د يهودو خو ډېر شی تر لاسه کوی من الزکوة وهو ربع المال في دينهم الصدقات النفليه والرسوم العاديـة، نو دا ثمن قليل دی ؟

**فوائد**:- توصيف په قلت سره يا لـه دې سببه دی چي دا ثمن قليل خو فاني دی. او بل په دې سبب چي دوئ په دغـه تحريف سره جنتونه او نعيم د اخرت لـه لاس ور کړه د هغو په مقا بـل کي دا ددوئ ماخوذ ثمن هغه قدر او اعتبار نه لري.

**فائده**: مشابه ددې کارو د ملايانو د يهودو زموږ په بعض امامانو کي د مساجدو هم محسوس کيږي مثلاً د مسجد لوئ زکواة ورکونکی يا د مسجد مشر رشوت خور وه نو امام په هغه کي تفصيل نه کوي، او يا مشر مقتدي سود خوره و، که څه هم اوس يې سود پرې ايښی وي، امام د مسجد د سـود خورۍ په باره کي هغـه مفصل آياتونـه او حديثونه نه بيانوي، او يا يوغټ مقتدی د مسجد شراب خوره وي، د شراب خورۍ د حرمت او عذابو له تفصيل څخه امام مسجد ډډه کوي، او يا د مسجد يو غټ مقتدی د کافرانو په حکومت کي پر مسلمانانو راضي د او طرف داره يې وو، امام مسجد په دې باره کي ځان ګنګی اچولی وي، او دی عذر دا وايي چي په دې باره کي خو بيان کول سياست دی، او زه په اولـه ورځ غټ مقتدي چي ماته يې امامت راکاوه د سياست څخه منع کړی يم. افسوس چي د خدای ﷻ تر امر يې د مقتدي نهي ته اعتبار ورکړی، "و ما ذالك الا اخذه الثمن القليل من المقتدي و امثال ذالك كثير،

چوکفر ازکعبه برخيزد کجا ماند مسلمان،

في روح البيان، ان الدين ليس بالتمني فالذين ركنوا الى التقليد المحض واغتروا بظنون فاسدة وتخيلات مبهمة فهم الذين لا نصيب لهم من كتبهم الا قرائتـــهم دون معرفة معانيها وادراك اسرار ها وهذا زماننا من مدعي الاسلام فا المـــدعي المحض والمتمني الخالص عاقبتها خسران وحسرة وضلال وندامته ووهال انتهي وفي المثنوي

تشبه گرد وق اید از سر ا ب — چون رسد دروي گریزه جوید آب
مفلسان گرخوش شوند ازرز قلب — نیک آن رسوا شود در دار ضرب،

ولهذ ورد في الحديث الصحيح النبوي ﷺ للجاهل ويل وللعالم سبعين ويلاً،

**قیل**

چون به خلوت میروند آن کار دیگر میکنند ☆ واعظان کین جلوه درمحراب و منبر مکنند
حمید الله غزنوي

چو بینم دین احمد در غریبي — دلم سوزان زچشم خون جاري

**درویش وایي**: چي جنید بغدادي یو ورځ دخپل وعظ په دوران کي ویلـه لو لـم اسمع قوله ﷺ ان الله قد یوید هذا الدین بالرجل الفاجر لما اجترئت، علی الوعظ فانا ذالک الفاجر، یعني که ما دغه حدیث نبوي ﷺ نه وای اورېدلی چي علیه السلام وایي چي خدای ﷻ ګاهي تائید د خپل دین کوي په فاجر یعني ګناه کاره فاسق سړی سره او مابه دلاوري نه وي کړې پر وعظ باندي، یعني په دې معنی چي وعظ خو تائید د دین دی هغه خو باید صالح سړی وکړي، جنیده ستا و د وعظ یې سره څه نو چي مذکور حدیث مي واورېدی نو پر وعظ دلاور سوم چي ته یې هغه رجل فاجر نو تائید د دین مه پرېږده.

**درویش وایي**: چي ورته خبره زما څخه په جلد اول کي سوې ده، الحمدلله چي اوس چي جنید بغدادي رحمه الله همنوا مي پیدا کړی نو بیا مکرر وایم کوم فاسق یم کوم فاجر یم — پرتفسیر باندي مین یم
په قیامت د هر عالم سره د نېکو عملو به یو دفتر وي.

درویش وایي: من نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن در بغل، اللهم وفقني لاختتام هذا التفسیر علي وجه الصواب بالصحة والسلامة

فَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ أَيْدِيهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا يَكْسِبُونَ ﴿۷۹﴾

نو ویل دی دوئ لره یعني ملایانو محرفینو لره د تورات په تغیر د وصف نبوي ﷺ او "ویل" دي وي دوئ لره چي دوئ د تورات په بدلولو تجارت د دنیا کوي .

تفسیر سلیس: نو هلاکت او عقوبت دوي ملایانو لره د یهودو په سبب د هغه چي ددوئ لاسو لیکل یعني بدل کړل سوي آیتونه د تورات، اوعذاب دوي لره په سبب دکسب تجارت په تورات سره

وَقَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَةً

او وایي یهود چي موږ نه مسه کوي اور یعني دوږخ مګر یو څو ورځي په حساب سره .

یوه مسئله:- چي د یهودو دا عقیده ده چي د دنیا عمر اوه زره کاله دی، او پر زر کاله خدای ﷻ موږ ته یوه ورځ د دوږخ عذاب را کوي یعني که موږ هر څای یو او هرڅو معاصي کوو، وقاله ابن عباس او قتاد او عطاء ﷺ چي یهود وایي چي موږ ته څلویښت ورځي عذاب راکوي یعني په حساب د هغه ورځو چي زموږ نیکه ګانو عبادت العجل کړی دی که هر څو موږ بد کارونه وکړو او یا ښه کارونه وکړو، او ابو منصور ماتریدي ﷫ وایي چي مراد د "ایام معدودة" څخه هغه ورځي د عصیان دي هر څو چي وي ،او یا به د دوئ همیشه والی په دوزخ کي نه وایي که څه هم سرې کافر وي یعني که یو سړی شل (۲۰) کاله مثلاً په کفر کي

تېر کړي وه نو هغه شل کاله په دوزخ کي تېره وي بيا به جنت ته ځي لکه د جهميه وو چي هم دا عقيده وه، وهذا العقيدة كفر بواح وان كانت الجهمية يعدون انفسهم فرقة من فرق المسلمين، او يا يهود دا عقيده لري چي موږ دوستان د خدای ﷻ يو او يا لکه زامن د خدای ﷻ يو، نو زموږ عذاب داسي دی لکه مهربانه پلار چي يې وزوئ ته ورکوي، او يا مهربانه دوست چي دوست ته يې ورکوي، نو هغه عذاب يو څو ورځي وي او بيا پلار راضي سي او عذاب قطع کړي، وهذا العقيدة منهم كفر باطل لان عذاب من مات علي الكفر ابدي لا ينقطع اصلاً في جميع الكتب الالهية .

قُلْ أَتَّخَذْتُمْ عِنْدَ اللَّهِ عَهْدًا فَلَنْ يُخْلِفَ اللَّهُ عَهْدَهُ أَمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ۝

او ته ووايه اي محمد ﷺ و دغو يهودو ته چي آيا تاسي اخستې ده عهده د خدای ﷻ څخه چي تاسي به تر ايام معدوده بالا په دوزخ کي نه پرېږدي .

او بعض مفسران وايي چي عهده په دې آيت کي په معنا د خبر ده يعني تاسي ته خدای ﷻ خبر درکړی دی چي تاسي ته بالاتر ايام معدوده عذاب نه درکوي، نو که چيري خدای ﷻ ستاسي سره وعده کړې وي او يا يې خبر در کړی وي نو خدای ﷻ د خپل وعدې څخه خلاف نه کوي ولي چي خلاف د وعدې څخه محال دی پر خدای ﷻ باندي .

**فائده** :- چي يو "وعد" دی او يو "وعيد" دی، وعد وه دې ته وايي چي د جنت او نعمتونو وعده د چاسره وکړي د هغې وعدې څخه خلاف کوي دا خو اتفاقاً پر خدای ﷻ باندي محال دی لانه من الخصال الرزيله،

او وعيد دې ته وايي چې د يو عذاب وعده پر يوه عمل د چاسره وکړي د هغه په خلف اختلاف دی، بعض وايي پر خدای ﷻ دا هم محال دی، او اکثره علماء پر دې عقيده دي چې ددې څخه خلف ممکن غير واقع دی، والتفصيل في کتب العقائد، او محب الله البهاري په مسلم الثبوت کې دا مسئله په ښه توګه بيان کړې ده، او که خدای ﷻ وتاسي ته دا اخبار کړی وي چې تاسي ته زائد تر ايام معدوده عذاب نه درکوم نو خلاف د خبر خو کذب دی او کذب پر خدای ﷻ محال دی او که تاسي واياست پر خدای ﷻ هغه څه چې تاسي علم نه پرې لري.

**فائده:** همزه د "اتخذتم" لپاره د استفهام انکاري دی يعني تاسي دا وعده د خدای ﷻ نه ده اخستې.

**فائده:** همزه دلته مفتوح دی ولي دا همزه د استفهام دی همزه د وصل نه دی، ولي چې اصل يې "اتخذتم" همزه د وصل په درج کې ولاړې او فلن يخلف الله آه جواب د شرط مقدر دی، اي ان کنتم اخذتم عندالله عهد آفلن يخلف الله آه.

**فائده:**- کلمه د "ام" يا منقطعيه ده په معنی د "بل اتقولون آه" نو دا تصريح او سرزنش دی ودوئ ته ويمکن انيکون معادلة لهمزة الاستفهام يعني ام متصله دوئ په معنی ددې که "کم يود" دي له امر څخه واقع وي نو مطلب د استفهام باعث کول دي دده پر اقرار، ولي چې د دغو دوو امرو څخه خو يو واقع دی بلاشك نو تاسي ووایاست چې کوم يو واقع دی

بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً وَّاَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓئَتُهٗ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۸۱﴾

**پوهنه:**- چې کلمه د بلی لپاره د اثبات د مانفوه عن انفسهم من عذاب النار زماناً طويلاً و معنی الآية، هو تاسي ته عذاب مدت طويل سته

**فائده**:- من مبتداء ده او متضمن معنی لره دشرط ده ځکه یې په خبر کي فا راغلې ده یعني هر څوك چي كسب او عمل وكړي د گناه.

**پوهه**:- چي كسب هغه معاملې ته وايي چي په هغه كي نفع وي، او په كولو كي د "سيئة" څو نفع او فائده نشته نو مفسرين وايي چي استعمال دكسب په سيئت كي تهكماً دی نحو قوله تعالى "فبشرهم بعذاب اليم .

**قوله**:- "واحاطت به" آه او را و گرځي گناه پرده يعني دی داسي سي لكه يو شي چي پر بل شي راوبېچل سي يعني گناه دده ټولوحواسو او اطرافو ته دده شامل وگرځي يعني قلب او ژبه يې له گناه خلاصه نه وي بلكه په ژبه اقرار د وحدانيت د خدای ﷻ نه لري او په زړه كي تصديق د وحدانيت هم نه لري، قال البيضاوي رحمه الله وهذا لايصدق ولايصح الافي شان الكافر، ولي چي غير د كافر څخه كه څه هم يو اقرار د خولې او تصديق د زړه لري پرهغه احاطه گناه نه دكړي ولي چي په ژبه او زړه كي گناه نشته، نو له هم دي سببه ابن عباس رضي الله عنه اوضحاك او ربيع او نورو مفسرينو د قرآن كريم ترجمه "احاطت به خطيئة" په كفر سره يعني هر نوع كفر چي وي لكن دايم الي وقت الموت هم سي كړي ده .

**پوهه**:- چي معتزله او خوارج وايي چي مرتكب د گناه كبيرې كه څه هم يوه گناه كبيره وي چي بلا توبه مرسي ابداً يې ځاى دوزخ بولي، په دغه آيت سره دليل وايي، لكن استدلال د دوی ښځي غلط دی ولي چي په مرتكب كي كبيره گناه بلكه د ډېرو كبائرو گنهو چي تصديق قلبي او اقرار باللسان يې باقي وي احاطت به خطيئته نه دی، نصيحتاً مسلمان لره ښايي بلكه لازمه ده چي يو گناه څندي صادره سي سمدستي دي توبه

او پښېماني وکړي ولي که پښېمانه او تائب نه سي نو بیا معاودة وهغې ګناه ته کوي او په هغه کي رفته رفته ډوبېږي او اخر الامر تر هغې ګناه يې غټې ته ميل کېږي، مثلا يو سړی د بېګانه ښځي څخه يا هلك څخه مچه واخلي يا اجزاء مستوره و ته هغه ښځه يا هلك لاس ور وړي او توبه نه پروکاږي نو شيطان يې بل وار بيا پر عين هغې ګناه باعثه کوي حتی رفته رفته د ښځي سره په زنا اخته سي او د هغه هلك سره په لواطت مبتلا سي چي نسبت ومخني ګنهونو ته دا دوې ګناه کبيره دي بالاتفاق اوله دې څخه کرار کرار په نورو غټو ګنهو مبتلا سي لکه شراب خوري ترك الصلواة وغيره وروسته شيطان دا ګنهونه وده ته دونه ښائسته کړي بالطبع مائل د هغو ته وګرځي، او په زړه کي يې دغه معاصي مستحسن معلومېږي او دده له عقيدې مخالف که څوك وعظ کوي دده و هغه واعظ ته درد راخي او د واعظ قال الله وقال الرسول ورته درواغ ښکاري، نو دې درجې ته چي ورسېږي نو کافر سو، قال الله عز وجل في موضع آخر، ثم كان عاقبة الذين اساؤا السوء ان كذبوا بايات الله صدق الله العظيم، اللهم نجنا من هذه المهلكة العظيمة .

او ولي به مسلمانان له خطره د زوال د ايمان نه بېرېږي او سره ددې چي يوسف نبي الله ابن نبي الله ابن نبي الله ابن خليل الله على نبينا عليه الصلواة والسلام داسي دعا کوي کما في سورت يوسف ﴿ فاطر السموات والارض انت ولي في الدنيا والاخرة توفني مسلما والحقني بالصالحين﴾

فرويش وائي:- الهي يا الهي يا الهي ندارم جز اميدت تکيه گاهي
زکن موجود کردي جمله عالم مرا از ذنب خود کن عذر خواهي؛
ندارم توشه مقبول درگاه بجزا شك ندامت آه آهي
ندارم توشه راه قيامت بجز شرمندگي ورو سياتي

بحق حرمت فرقان اعظم کرم کن بر من گم کرده راهي

شفیع اورده ام روي محمد ﷺ عبـد را مغفرت فرما آلهي

# وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ

**پوهنه**:- چي عـادت آلهـي پـه قرآن کريم پـه دې جـاري دی چي تـر ذکر د عذاب د کفارو چي وعيـد يې بولي ذکر د ثواب د مومنانو کوي، تـا چي مسلمانان ورحمت تـه د خدای جل شـانـه اميـدواره ووسي لکـه د عذاب څخه د خدای ﷻ بيربږي.

**فائده**:- د عطف څخه د "عملو الصالحات" دا وفهمېده چي اعمال د ايمان څخه خارج دی خلافا لاهل ظواهر الحديث والمعتزله، والخوارج.

**سوال**:- پـه ذکر کي د عذاب د کفارو خدای ﷻ کلمـه د فـا ذکر کړه يعني "فاولئك اصحاب النار آه" او پـه ذکر کي د ثواب د مومنانو يې کلمـه د فـا ذکر نـه کړه حکمت يې څه دي؟

**جواب**:- پـه دې عدم ذکر کي د کلمـه د فـا اشـاره ده وهغـه حديث قدسي تـه "سبقت رحمتي على غضبي وتفصيل الجواب" نحـاة وايـي چي کـه يـو سړي داسي وويـل "من دخل داري فاکرمـه" معنی يې داده هر څوك چي داخل الدار سي د هغـه اکرام کېږي لکن سره ددې چي اکرام دې ونسي او کي داسي وويل چي "من دخل الدار اکرمـه" معنی يې داده اکرمـه البتـه او فاضل عصام الدين ﷫ وايي چي چونکـه دخول د کفـارو دوږخ تـه سبب يې کفر دی نو ځکـه يـې هوري فـا سببيه راوړه اشار ة الي ذالـك بخلاف دخوال الجنـة ولـي چي اعمـال صـالحه يې سبب نـه دی ولـي چي اعمال

صالحه د دنیا د نعمتونو جواب نسي ویلای "فاصحاب الاعمال الصالحة کاجیر اخذ اجرته قبل العمل ودخول الجنة بمحض فضله تعالی وکرمه.

فائده: - شیخ مرشد کامل لره په کار ده چي خپل مریدان دي په لطف او قهر دواړو تربیت کوي، کما هو شانه عز وجل مع عباده کما مر، د یو شیخ کامل په واقعه کي داسي راغلي دي چي دده یو مرید و ډیر یې په لار کي د سلوك خواري کښې، نو شیخ ودې مرید ته وویل چي ستا تر دغو زحمتونو چي تې دلته برداشته وې یو وار زیارت او ملاقات د شیخ بایزید البسطاني رحمه الله بهتر دی! مرید ورته وویل چي څرنګه به دده ملاقات ماله خیر وي زما ترشغل دلته. او سره له دې چي ماته په ذکر او شغل کي د ورخي اویا (۷۰) واره تجلی الهي کېږي او بایزید خو یو مخلوق دی، خو آخر په بار بار ویلو سره د شیخ مرید په ملاقات د بایزید رحمه الله راضي سو، نو دواړه سره رهي سوه د بایزید رحمه الله د کور پرخوا کور ته چي ورغله پوښتنه یې د بایزید رحمه الله په کور کي وکړه د بایزید رحمه الله ښځي ورته وویل چي بایزید ځنګله ته تللی دی بوټي راوړي، نو شیخ او دده مرید ورغله د ځنګله پر غاړه کښېنستل چي بایزید رحمه الله به اوس د ځنګله بوټي په شا را ووزي، که څه ګوري بایزید رحمه الله پر یوه غټ زمري بدندي بوټي راباندي کړي دي او یو غټ مار یې په لاس کي دی او دا زمری ګاهي ګاهي په مار وهي، مرید چي دا عجیب او غریب بایزید رحمه الله ولیدی د ډېري یې زاره وچاوده او مړ سو، بایزید رحمه الله چي راغلی نو یې و شیخ ته وویل چي تاغلط کار کړی دی تا دا مرید همېشه په لطف سره تربیه کړی و او د قهر د تربیې لار دي نه وه ور ښولې نو ځکه ستا دغه مرید چي زه د قهر او غلبې په حالت کي ولیدم طاقت یې نه راوړی او مړ سو، او بایزید رحمه الله هغه شیخ ته وویل چي آینده داسي مه کوه مرید په

لطف او قهر دواړو سره تربيه كوه، انتهى الفقه قال الله جل سلطانه وعظمت قدره

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا ٱللَّهَ

او په ياد كړئ هغه وخت چي موږ واخسته يعني په تورات كي ټينګه وعده د بني اسرائيلو څخه چي تاسي عبادت مه كوئ بېله يوه خدايه ﷻ

پوه شه:- چي "لا تعبدون" آه خو اخبار دی بقرينه عدم سقوط نون الاعراب لكن په معنى د نهي دی على الانشاء. او ابي بن كعب ؓ صريح نهي وايي يعني "لا تعبدون".

پوه شه:- په نحو او معاني كي وايي چي اخبار په معنى د نهي ابلغ دی تر صريح نهي، ولي چي ګويا متكلم په خيال كي د سامع دا وركوي چي مخاطب سرعت امتثال د نهي وكړی او اوس اخبار دده د نهي څخه كبږي. او امام بغوي رحمه الله وايي چي اصل داسي و "ان لا تعبدوا نو چي ان حذف سو فعل مرفوع سو په اعاده د نون د ويدل عليه قراءته من قرء ان لاتعبدوا.

پوه شه:- چي نافع، ابن عامر، ابوعمر، عاصم او يعقوب رحمهم الله تعلى "لا تعبدون" په صيغه د خطاب وايي حكايتًا عما قيل لبني اسرائيل في التوراة او باقي قاريان يې لايعبدون په صيغه د غيبت وايي نظر الى لفظ اليهود اعني بني اسرائيل چي لفظ اسم ظاهر غائب دی.

وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَانًا وَذِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْيَتَٰمَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينِ

پوه شه:- چي حرف جر متعلق دی په محذوف پوري، نو كه مراعات د لفظ د "لا تعبدون" وسي چي اخبار دی، نو متعلق يې "تحسنون" اخبار په معنى د امر دی او كه دا معنا د "لاتعبدون" وسي چي اخبار په معني د

انشاء دی نو متعلق به يې "احسنو" په صيغه د امر وي نو معنی د ايت داده چې تاسي به احسان کوئ د مور او پلار سره يعني فرمان برداري د امر ددوئ به کوي چې مخالف د امر د خدای ﷻ نه وي او تاسي به احسان کوي د قريبانو که هغه قريب وي او که بعيدوي بالتعاون والاتفاق عليهم وغير ذالك .

**پوهه**:- چې "قربی" مصدر دی لکه "حسنی" او تاسي به احسان کوي د يتمانو يعني بې پلارو سره بالشفقة عليهم وعدم ايذائهم والانفاق عليهم وغير ذالک .

**پوهه**:- چې يتيم عام دی که د سړي قريب وي او که بيگانه وي او تاسي احسان کوي د مسکنانو سره بقضا حوائجهم الی غير ذالک ولو بحسن الجوار وعدم الايذاءلهم و عدم التکبر عليهم .

**فائده**:- خدای ﷻ د احسان د مور او پلار لوي تعظيم کړی دی ولې چې په ډېرو آياتو کې خدای ﷻ حق د مور او پلار د خپل حق سره يو ځای روا ړی دی .

**فائده**:- علماء وايي چې درې آيتونه د درو آيتو سره جفت راغلي دي چې نه قبلېږي هر يو بېله قرينه خپل، يو قوله تعالی ﴿ اطيعو الله واطيعو الرسول ﴾ او بل ﴿ان اشکرولي والديك﴾ او بل ﴿اقيمو الصلوة واتو الزکوة﴾ کذا في روح المعاني.

**فائده** :- احسان د مور او پلار دادی چې د شريعت سره برابر ژوند به ورسره کوي، او ودوئ ته به متواضع عاجزه وي او فرمان برداري ددوئ به کوي مالم يامرا بمعصية والا فلا طاعت للمخلوق في معصيت الخالق، او دعا د مغفرت به مور او پلار ته کوي خصوصا بعد موتها .

قال سعدي الشيرازي

سا لها بر تو بگزرد که گزر | نکنی سوی تربت پدرت
تو بجای پدر چه کردي خیر | تاهم چشم داری ازپسرت

فائده:- د يتيم په باره کي په صحيح حديث کي را غلي دي ﴿ماقعديتيم مع قوم على قصعتهم فلا يضرب قصعتهم الشيطان﴾ په يو حديث طويل کي را غلي دي ﴿ من ضم يتيماً من بين المسلمين الى طعامه وشرابه حتى يغنيه الله غفرت له ذنوبه الا ان يعمل عملا لا يغفر، يعني الكفر الى اخير الحديث، وفي الحديث الآخر انا وكافل اليتيم كهاتين في الجنة واشار بالسبابة والوسطى .

فائده:- په دي آيت کي بل احسان د مسکنانو بيان سو احسان يي هغه و چي ذکر سو آنفاً وفي الحديث النبوي الساعي على الارملة والمساكين كالمجاهد في سبيل الله سعدي شيرازي

اگر نخواهی که باشی پراگننده دل | پراگنده گانر از خاطر مهل
پریشان کن امروز کنجینه چست | که فردا کلید نه دارد دست تست

وقيل

آسایش دو گیتي تفسیر این دو حرف است
با دوستان تلطف با دشمنان مدارا.

# وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا

پوهنه:- چي "قولوا" عطف دی پر "واحسنو" المقدر عطف الانشا على الانشاء او يا په تقدير د قول عطف دی پر "واخذنا" يعني وقلنا لهم قولوا آه .

پوهنه:- چې لفظ د "حسناً" مصدر دی نو حمل یې پر قولاً مبالغةً دی نحو زیدٌ عدل.

فائده:- مفسران تول وایي چې قول حسن هر هغه کلام محمود ته شامل دی چې د قول حسن د قسم څخه رشتیا ویل دي په شان کې د علیه السلام او بیان دده "نعوته في التورات من غیر کتمان ولاتبدیل" او ابن عباس ؓ او سعد ابن جبیر وایي چې مراد له قول حسن څخه امر بالمعروف او نهي عن المنکر دی، او ثوري ؒ وایي چې د قول حسن لمن فراخه ده حتی چې قول لین په معاشرت اهل بیت او اغیارو ته هم شامل دی وکذا الشهادة بالحق.

وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِّنكُمْ وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ ﴿٨٣﴾

پوهنه:- چې په دې آیت کې التفات دی یعني نقل د کلام د غیبت څخه وخطاب ته او مخاطب هغه یهودیان دي چې په زمانه کې د نبي ﷺ وه، او دغه رنګه هغه یهود چې تر زمانې د نبي علیه السلام د مخه وه. لکن پر طریقه د تغلیب د حاضرینو پر غائبینو باندي ولې چې غائب خو بالذات مخاطب نه سي کیدای نو ترجمه د آیت داسې ده چې تاسي قایم او ثابت ساتئ لمونځ کوئي او ورکوئ ذکاتونه د اموالو خپل نو بیا وروسته تاسې اعراض وکړي د وفا بالمیثاق څخه یعني عمل مو په هغه میثاق سره ونه کړی مګر لږ کسانو ستاسې یعني چې په د مخه زمانو کې وه یعني هغه ډله د هغه کسانو وه چې پر عمل د تورات محکم په زمانه کې د موسی ؑ او یا په زمانه کې د محمد ﷺ په ایمان مشرف سول لکه عبد الله بن سلام او نور امثال دده، او تاسې اې یهودیانو داسې یو قوم

یاست چي اعراض د میثاق څخه ستاسي عادت دی قدیماً في زمن موسی ﷺ و في زمن محمد ﷺ.

**فائده**:- د صلوة او زکوة څخه په اسلافو کي د یهودو هغه صلوة او زکوة دی چي په تورات کي دوئ په امر سوي وه، او په حاضرینو کي د عصر نبوي ﷺ هغه صلوة او زکوة دي چي په دین محمدي کي پر مسلمانانو فرض وه چي دا دوه صلوة او زکات کماً اوکیفاً سره جلاجلا وه

**نوټ**:- چي روح البیان والا وایي چي جمله د "انتم معرضون" جمله تذیلیه ده، او جمله حالیه نه ده، ولي چي تولي او اعراض سره یوشی دي ولا بد في الجملة الحالية من التغاير بين معنى الحال وعامله

**سوال**- ښایي چي دا جمله به حال موکد وي، او په حال موکده کي خو تغایر نه غواړي ؟

**جواب**:- حال موکده خو په واو سره نه راځي په نیز د جماهیرو نحاتو ومع هذا، راغب وایي چي د تولي او اعراض په منځ کي فرق سته، ولي چي تولي ګاهي په سبب د ضرورت وي مع ثبوت عقدة القلب کاجراء کلمة الکفر علی اللسان مع ثبوت عقد القلب والاعراض هو الانصراف عن شئ بالقلب، وهذا تحقيق بديع خفاجي مع درويش غفرله

**وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ لَا تَسْفِكُونَ دِمَاءَكُمْ وَلَا تُخْرِجُونَ أَنْفُسَكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ وَأَنْتُمْ تَشْهَدُونَ ﴿٨٤﴾**

او در یاد کي ایها الیهود هغه وخت چي موږ واخسته محکمه وعده له تاسي څخه یعني په تورات کي.

پوهنه:- چي د پاره د ربط د "لاتسفکون" په ماقبل پوري دا توري غواړي "وقلنا لاتسفکون آه، چي تاسي به نه بیوي ویني خپل.

پوهنه:- چي د بیولو څخه د خپلو وینو خود کشي نه ده مراد بلکه مراد د یو او بل ویني تویول دي. مګر چونکه په منځ کي د یهودو اتصال نسباً او دیناً و نو د بل د ویني تویول یې دده د خپل ځان تویل وبلل. اوتاسي به نه باسي خپل خانونه د خپلو وطنو څخه.

پوهنه:- چي معنی ددې اخراج النفس پر طریقه د ماسبق داده چي تاسي به پر خپلو ورڼو ظلم نه کوي حتی دوئ مجبور سي ترك الوطن ته.

فائده:- د وینو د تویدو سره یې اخراج الدیار متصل راوړی ددې لپاره چي د وینو تویلو سره وطن پرېښول بالظلم والجبر ماتصل دی، او بیا تاسي اقرار وکړی په هغه عهد سره او تاسي پر ځانو شا هدان یاست چي موږ دغسي میثاق د خدای ﷻ سره کړی دی.

# ثُمَّ أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ وَتُخْرِجُونَ فَرِيقًا مِّنكُم مِّن دِيَارِهِمْ

وروسته تر میثاق تاسي اي حاضرینو د زمانه د علیه السلام هغه کسان یاست چي تاسي وژنئ خپل خانونه یعني هم نسباً او هم دیناً کمامر عنقریب، او تاسي باسئ یوه ډله د خپلو وطنو څخه بالظلم علیهم.

پوهنه:- چي کلمه د ثم لپاره د استبعاد د فعل راغي.

اعراب "انتم" مبتدا ده او "هولاء" یې خبر دی یعني تاسي تر میثاق وروسته دغه ناقضین یاست کقولک لآخر انت ذالک الرجل الذي فعل کذا" یعني تغایر دده صفت پر منزله د تغیر د ذات نازل کړی نو ګویا

"انتم او هٰؤلاء" الناقضون دوه شیه سوه، نو "انت" چي مبتدا وه خبر یه غوښتی پیدا سو، او جمله "تقتلون" یا حال ده او عامل یې معنی د اشاره ده کما قال النحات في قول امرئت هذا بعلي الشیخاً. یا دا جمله بیان ده د جملې "انتم هٰؤلاء" او احتمال لري چي "انتم" دي مبتداء وي او "هٰؤلاء" دې تاکید وي او خبر دې جمله د "تقتلون" وي. ویمکن چي "هٰؤلاء" دې په معنی د "الذین" وي او جمله د "تقتلون" الخ دي صله وي او تُوله دي خبر د "انتم" وي.

**فائده**:- جاء في قرائة تقتلون من باب التفعیل وهو للتکثیر کما في الشافیه

**تَظٰهَرُوْنَ عَلَیْهِمْ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ**

**او تاسي کومک سره کوئ پر دغي ډلي چي تاسي باسي د وطنو څخه په ګناه او ظلم سره.**

**پوهنه**:- چي "تظاهر" تعاون ته وایي او جمله د "تظاهرون" حال ده د فاعل "تخرجون" څخه او یا د مفعول څخه او یا د دواړو څخه، ولي چي په جمله کي د "تظاهروا" ضمیر د فاعل او مفعول دواړو سته "وکل جملة کانت کذالک تحتمل للاحتمالات الثلثة المذکورة کما هو المقرر في النحو.

**پوهنه**:- چي عاصم او حمزه او کسائي "تظاهرون" په تخفیف د "ظا" وایي، نو اصل یې "تتظاهرون" وو نو یې تا د باب د تفاعل حذف کړه، او نور قراء "تظاهرون" په تشدید د "ظا" وایي، نو اصل یې تتظاهرون" وو یوه "تاء" یې په "ظا" کي مدغم کړه وفي قرائة شاذة تتظاهرون باظهار التائین

# وَإِن يَأْتُوكُمْ أُسَٰرَىٰ تُفَٰدُوهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ

او که راسي تاسي ته بندیان یعني ستاسي د قوم څخه تاسي په اتفاق د هغو فدیه مالي ورکوئ، او شان دادی چي حرام کړه سوی وو یعني د خدای ﷻ د خوا څخه اخراج ددوئ د خپلو وطنو څخه یعني فدیه د بندي په بندي سره او یا په نقود سره.

**فائده**:- په قرائة کي د حمزه "اسری" راغلي دی وکلاهما جمع د اسیر ده، الاعراب کلمه هو للشان مبتداء ده، او کلمه د "اخراجهم" مبتداء ثاني ده، او "محرم علیکم" یې خبر مقدم دی، او ټوله جمله خبر د ضمیر شان ده، روح البیان.

**شان نزول**:- احادیث نبویه ﷺ او تواریخ اسلامیه وایي چي خدای ﷻ جل سلطانه په تورات کي دا فرض کړې ده چي تاسي به یو بل نه وژني او نه یو بل فرار کوي د خپل وطن څخه په جبر او ظلم سره، او که تاسي یو مریي او یا یوه مینځه د اسرائیلو د چا سره پیدا کړه هغه په اجتماعي توګه رانسئ او ازاد وئ به یې. او که چیري یو بندي د بني اسرائیلو د چا سره و هغه بندي ته فدیه ورکړي، او په مدینه منوره کي دوه قومه د عربو وه چي اوس او خزرج یې ورته ویل چي هغه مشرکان بت پرستان وه چي دوئ نه قیامت مني او نه جنت مني او نه دوزخ مني او نه حلال او حرام مني.

او په مدینه کي دوه قومه د یهودیانو وه چي بني قریضه او بني نضیر یې بلل، او د هغو دوو قومو د عربو له قدیمه څخه دښمني وه، تل

به خپل په منځ کښي سره جنګېده، او په سوو او زرو مړي يې له دواړو طرفو څخه سره وکړه، نو بني قريضه د اوس د قبيلې کومکيان او حليفان سوه، او بني النضير د خزرج د قبيلې معاونان سوه، نو هر وخت چي به د اوس او د خزرج سره جنګ سو نو هره ډله د يهدو به د خپل حليف سره په صف کي د قتال ودرېدل نو يوې ډلي د يهوديانو به د خپلو يهوديانو سره جنګ کاوه اووژل به يې په ننګ د خپل حليف، او چي هري ډلي د يهوديانو به د خپل حليف په معاونت کي پر هغه بله ډله د يهوديانو غلبه وکړه کورونه به يې ورخرابول او د خپلو کورو څخه يې فراره کول، او هم به يې بنديان د خپل حليف په لاس ورکول، اوسره ددې چي د دواړو ډلو سره د يهوديانو تورات هم موجود و چي په هغه کي ورته کارونه حرام ګڼل سوي وه، نو چي جنګ به کرار سو او يو بندي د قريضه يا د نضير به ددوئ د حليف اوس يا خزرج په لاس کي وو، نو به يې داوړو ډلو د يهودو په اتفاق د هغه بندي فديه مالي ورکوله، او دا بندي به يې خلاصاوه، نو عربو ويهودو ته ويله د بنديانو د خلاصون لپاره ولي چنده جمع کوئ ؟ دوئ به ورته ويل چي موږ په تورات کي په فديه د اساراوو امر سوي يو او پر موږ باندي په تورات کي يو د بله سره جنګ هم حرام ليکل سوی دی، نو عربو به ورته وويل چي جنګ هم په تورات کي حرام دی نو بيا ولي ورسره جنګېږئ؟ دوئ به ورته وويل چي جنګ موږ له دې سببه ورسره کوو چي موږ شرمېږو چي زموږ حلفاء ذليل سي نو خدای ﷻ ددوئ ذم په دې آيت کي وروايه .

**أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَٰبِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ**

آيا تاسي ايمان پر بعض احكامو د تورات لرئ چي فديه ده او

تاسي كفر كوئ په بعض احكامو د هغه كتاب تورات چي حرمت د قتال او جنګ دی او حرمت د اخراج دی، او سره ددې چي د كتب الهيه وو ټولو دا حكم دی چي كفر بالبعض يې كفر بالكل دی، او دا ټوله احكام په يوه ميثاق كي له تاسي څخه په تورات كي اخستل سوي وه،

العجيب:- دوئ د خپلو خبرو په دوران كي وويل چي موږ شرمېږو چي زموږ حلفاء ذليل سي آيا د خداى ﷻ څخه نو شرم په كار نه دی د مخلوقه څخه شرم پكار دی ؟ افسوس ددوئ پر عقولو فاسده و باندي والتقدير تفعلون ذالک فتؤمنون وانمالم يعطف على ماقبل ذالک من الجمل لان بذالک يفوت صدارت همزة الاستفهام، خداى ﷻ ددې فعل د يهوديانو جزاء داسي بيان كړې ده .

فَمَا جَزَآءُ مَنْ يَّفْعَلُ ذٰلِكَ مِنْكُمْ اِلَّا
خِزْيٌ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ
الْقِيٰمَةِ يُرَدُّوْنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الْعَذَابِ

نو نه ده جزاء د هغه چا چي دغسي فعل وكړي د تاسي څخه يعني كفر بالبعض سره د ايمان بالبعض سره مګر د ذلت او رسوايي او سپكا وی په دې دنيا كي .

پوهنه:- چي دا استثناء مفرغه ده يعني مستثنى منه يې محذوف دی والتقدير ليس جزاء من يفعل ذالك شيئ من الاشياء الاخزي" او دا جمله استثنائيه واقع په ځاى كي د خبر د كلمې د "ما" ده .

فائده:- دا جزاء خدای ﷻ د یهودو دواړو ډلو ته ورکړه د مسلمانانو پر لاس چي بني قریضه ټوله یې چي بالغ وه نر یې په قتل سره ورسول سوه، ښځي او کوچنیان یې په اسر او بند کي منځیانی او مریان سول او بني النضیر یې ازرعات او اریحاء ته فرار کړه سوه چي تفصیل به یې پخپل ځای کي راسي ان شاء الله تعالی، او په ورځ د قیامت به دوئ رد کړه سي وسخت عذاب ته یعني د جهنم چي د دنیا تر عذاب سخت تر دی، ولي چي یو اور دی او بل دائم دی ابد الاباد .

پوهنه:- چي رب العزت جلت قدرته وعظمته وحکمته لپاره د زجر عظیم او تهدید شدید د اهل کفر او اهل العصیان بترک الاوامر وارتکاب المنهیات او دغه لپاره د بشارت اهل ایمان او اهل الطاعت وایي .

وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ۝

او نه دی خدای ﷻ غافله او ناخبره د هغو عملو څخه چي تاسي یهود یې کوئ خصوصاً ماسبق من المنکرات والقبائح .

فائده:- آیت مبارک که څه هم په شان کي د یهودیانو د بدو عملو په باره کي نازل دی لکن حکم یې عام دی ولذا قلنا فیها تهدید عظیم وبشارة جلیلة .

درویش وایي:- چي بند ګان د خدای ﷻ پر څو قسمه دي .

(۱) کافران علی تعدد انواعهم، کالدهریة، والیهود، والنصاری، والمشرکین .

(۲) اهل بدعة دي، کالمعتزلة، والروافض، والکرامیة، والجهمیة وغیرهم من الفرق الزائغة .

(۳) اهل السنة والجماعة كثرهم الله تعالى.

(۴) چه په اهل سنتو کي عاصيان دي، يا اوامر الهيه نه پر ځای کوي او يا په منهياتو منهمك وي.

(۵) ابرار دي چي اوامر الهيه پر ځای کوي او د منهياتو څخه پرهېز هم کوي لکن عشق الهي نه لري چي سبب د سلوك د دوئ دوه ګرځي.

(۶) اهل عشق الهي دي چي په سلوك کي کوشان وي.

(۷) مجذوب سالك دی چي جذبه يې تر سلوك د مخه وي، لکن دا ډله د خطره سره ګاهي مخامخ سي او ادنا الحق ندا ځندي وسي.

(۸) سالك دی چي سلوك يې رفته رفته و مقام ته د جذبې ور سوي و هذا الطريق اسلم الطريق.

(۹) العارفين الكاملين العشاق الواصلين چي د هغو په باره کي خواجه عبدالله انصاري الهروي رحمه الله وايي چي:

حبذا قومي كه داده اند ترک دنيا گفته اند وا زهمه ازاده اند

روزها باروزها درگوشها بنشته اند با ز شبها در قيام بنده گي استاد اند

نفس خود در قهر كرده روح كرده برفتوح زاد تقوای بر گرفته بهر مرگ آمده اند

طرفة العينى غافل نه بوداز حضرت ولي سيلها بااين همه ازديدها بكشاده اند

يكزمان از نوحه همچون نوح فرغ نيستند هم چو يحيى گوا از بهر زار مي زاده اند

زاب تاب تب الى الله غسل كردند آن كسان روي خود برخاک پای اسجدوا بنهاده اند

ربنا گويند ازان لبيک عبدي بشنوند جمله سرمست الست ازجرعة اين باده اند

راحتي ديدند وذوق يافتند از انس جان روز شب در کنج خلوت برسر سجاده اند

پا بد نيا امدند از کلبه کتم عدم سوي حضرت جزنيازو ناله نفر ستاده اند

پير انصاري تو ميداني كه ايشان كيستند خرقه بي كرد از مره دلي ساده اند

**درویش عاصي وايي:** چي دا مضامين عاليه د متفرقو كتابو څخه د صوفيه و رح خلاصه ده، لكه مثنوي د مولانا جلال الدين الرومي رحمه الله او مكتوبات د امام رباني مجدد الف ثاني شيخ احمد سرهندي رحمه الله او مناجات او مقالات د حضرت خواجه عبد الله انصاري رحمه الله، په اخر كي وايم

احب الصالحين ولست منهم — لعل الله يرزقني صلاحاً
نه پيرى يم نه فقير يم — د گناهو په بار كي گير يم

لهم ارزقني حبك وحب حبيبك وحب من يحبك وحب عمل يقربني الي حبك.

**أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ ۖ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ ﴿٨٦﴾**

او دغه كسان د يهودو چي تاسي يې حالات واوريده، او اوصاف قبيح د دوئ ملاحظه شده سوله هغه كسان دي چي بدل يې كړى يعني وايې خستى، وقد عرفت ان الاشتراء في مثل هذا المقام مجاز عن الاستبدال، ژوند د دنيا يعني شهوات د دنيا په اخرت سره يعني نعيم د اخرت يې د لاس وركړه لكه مشتري چي ثمن وركوي، وذالك لان هؤلاء اليهود من بني النضر وبني قريضه انما كفروا ببعض الكتاب من النهي عن القتل والاجلاء انما كان المراعات حلفائهم من الاوس والخزرج لمايعود اليهم من جانب الحلفا من المنافع الدنيويه الفانيه وتركوا مراعات حكم كتابهم تورات، نو نه سپكول كيږي د دوئ څخه عذاب اي لا في الدنيا ولا في الآخرة اونه د دوئ كومك كول كيږي په شفاعت سره لانه لا شفاعة لكافر او نه په زور سره.

**فروېش وائي**:- چي دنيا او اخرت داسي دي لكه دوې بني نو رضا د دوو مايېنو په كامله رضا هيڅ امكان نه لري كما ورد مضمون ما قلنا في الحديث الصحيح النبوي، نو عاقل سړي لره پكار دي چي سالخورده سپين سرې ماينه دي طلاقه كړي، او خوانه ماينه و ځان ته پرېږدي تاچي ژوند د ده پر كراره سي او د هري ورخي له جنجال او غمه به خلاص سي

**فائده**:- د اسلام معزز دين د افراط او تفريط په مابين كي دى افراط يې دادى چي حلالات شيان وځان ته لكه حرام داسي كي لكه په حديث شريف كښي راغلي چي آنحضرت ﷺ يوه ورځ موعظت بلغية ايراد كړى چي وجلت منها القلوب و ذرفت عنها الاعين، نو بعض صحابه كرامو ﷺ وويل چي زه به آينده زاړه كالي د كراستي اغوندم، او لكه ليونى په صحرا كي به ګرځم او خونو ته نه ورځم او د هيڅ شي غوښي به نه خورم او د ماينې سره به مباشرت او صحبت نه كوم، فقال له عليه السلام اني اصلي و انام واصوم وافطر، و اغشى النساء وآوي الى البيوت و آكل اللحم فمن رغب عن سنتي فليس مني، فرجع الصحابة ﷺ عما عزم .

او تفريط يې دا دى چي فرائض او واجبات او سنن د دين نه پرځاى كوي او د حرامو او د مكروه افعالو څخه پرهېز نه كوي لكن اصل مدار ذالک التوسط بين الافتراط والتفريط على العشق في الطريق الحق .

وفي المثنوي

اصل صد يوسف جمال ذو الجلال ... اي كم از ترڼ ميشود فداي آن جمال

د زن څخه مراد زليخا ده .

اصل بيند ديده چون اكمل بود ... فرع بيند چونكه مراد احوال بود

مراد د اصل څخه جمال الهي دى، مراد له فرعي څخه جمال المخلوق دى لكه زلېخا چي پر جمال د يوسف ﷺ مينه شيدا وه. قا الله تعالى -

# وَلَقَدۡ اٰتَیۡنَا مُوۡسَی الۡکِتٰبَ وَقَفَّیۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِہٖ بِالرُّسُلِ ز

**پوهه:-** چي "لام" موطئـه د قسم دی اي بـا الله چي مونږ ورکړی وو موسی علیه السلام ته کتاب چي تورات دی يعني جملةً واحدةً في زمان واحد، او مونږ په وروسته کي د موسی راستولي وه نور رسولان، يعني چي د موسی علیه السلام د کتاب او دين متابعت يې کاوه چي نامورې يې دغه رسولان وه.

(۱)يوشع (۲) شمويل (۳) داوٗد(۴) سليمان (۵) شمعون (٦) شعيا (۷) ارميا (۸) عزيـر (۹) حزقيـل (۱۱) اليـاس (۱۲) اليسـع (۱۳) يـونس (۱۴) زكريـا (۱۵)يحيى وغير هم عليهم الصلواة والسلام كذا في روح البيان

**پوهه:-** چي د قضاء په معنی کي وروسته والی ماخوذ وو نو خکه مفسران رح وايي چي "من بعد" تاكيـد د "قضـاء" دی خفـاجي رحمه الله په حاشيه کي د بيضـاوي وايـي چي بعض علمـاء وايـي چـي څلور زره (۴۰۰۰) کسـه رسـولان وه او بعـض مفسـران وايـي اويـا زره (۷۰۰۰۰) رسولان وه كانو كلهم على دين موسى. نو په عيسى علیه السلام سره دده كتاب تورات او شريعت منسوخ سو.

**درویش وايي:-** چي په دې آيت کي يو اشكال خو دادی چي خدای ﷻ په دې آيت کي "رسل" ذكر كړی او رسول هغه نبي بولي چي صاحب د كتاب وي او يا صا حب د شريعت متجدد وي. او روح البيان چي د كومو انبياؤ نومان اخستي دي دغه ټولو لره خو نه كتـاب وو او نـه شريعت متجد و بلكه روح البيان د وينا سره سم كتاب د دغو انبياء كرامو تورات و او شريعت يې د موسى و نو څرنګه بـه دوی ټولـه رسولان وبلل سي. او بل دا اشكال دی چي روح البيان پـه دې ډلـه کي چي كتـاب يې تورات و

داود هم را وړی و، او سره ددې په بل ځای کې د قرآن کریم راغلي دي ﴿واتینا داود زبورا﴾ نو دی ﷺ خو صاحب کتاب و.

**والجواب عن الاول:-** چي مراد د رسول الله ﷺ څخه مذکوره معنی نه ده بلکه په معنی د نبي مطلق دی.

**والجواب عن الثاني:-** چي مراد د صاحب د روح البیان چي ناموړي انبیاء صاحب کتاب نه وه کتاب ناسخ د تورات دی او زبور داود خو ناسخ د تورات نه وو بلکه مشتمل پر نصائحو او مواعظو او امثالو و.

**شروبش وايي:-** چي تحقیق ددې مقام دا دی چي په نبي او رسول کي اختلاف دی بعض علماء وايي چي رسول تر نبي عام دی ولې جبرئیل ﷺ رسول دی له طرفه د خدای ﷻ او نبي نه دی، و فیه، چي زموږ خبره په رسول کي په معنی اصطلاحي وه جبرئیل ﷺ خو رسول په معنی لغوي دی فا فهم الفرق. او بعض علماء وايي چي رسول او نبي په یوه معنی دی وفیه، چي دا یو والی د معنی د نبي او رسول منافي د راتلونکي حدیث سره دی. او بعض علماء وايي چي نبي عام دی او رسول هغه نبي ته ویل کېږي چي کتاب متجدد لري. د دې مذهب تائید هغه حدیث نبوي کوي چي د علیه السلام څخه چا پوښتنه وکړه چي "کم الانبیاء" انبیاء څو دي؟ نبي ﷺ ورته وویل یو لک څلورویشت زره (۱۲۴۰۰۰) دي هغه سړي بیا پوښتنه خندي وکړه چي "کم الرسل" رسولان څو دي؟ نو علیه السلام ورته وویل چي درې سوه او دیارلس (۳۱۳) جماً غفیراً. لکن پر مذهب مذکور چي په رسول کي کتاب متجدد شرط بولي

**سوال:** واردېږي چي کتابونه څو یو سل او څلور دي او رسولان دري سوه دیارس (۳۱۳) دي نو څرنګه پر رسېږي ؟

**ځواب:** - مولوي خیالي ﷫ وایي چي ممکنه ده چي بعض دغه کتابونه به مکرر نازل سوي وي کما صح تکرار نزول فا تحة الکتاب مرة بمكة ومرة بالمدينة.

**درویش وایي:** - چي ددې خبرې صحت د احادیث مبارکه و څخه نه معلومېږي "اعني تکرار نزول الکتب الهیه" او بعض علماء وایي چي کتاب متجدد شرط نه دی بلکه شریعت متجدد شرط دی و لو بالوحي الغير المتلو.

**درویش وایي:** - چي دا جواب معقول دی په هر صورت نسخ د کتاب سابق په رسول شرط نه دی لهذا محدثين تولِه وايي چي تورات په انجیل د عیسی ﷺ نسخ سو علی هذا اتفق المفسرون رح ایضاً.

**پوښتنه:** - تجدید د شریعت د دمخه نبي څه معنی لري آیا دا نسخه نه ده ؟

**ځواب:** - معنی د تجدید الشریعة متقدمة داده چي یا هغه کتاب مجمل و او یا پر بعض اذهانو مشکل و. توضیح او تفصیل د مجدد له خوا وکړه سي، او دا هرګز نسخه نه ده ولي چي امام احمد السرهندي قدس سره السامي په لقب د مجدد الف ثاني د دین محمدي ﷺ هر څوک بولي او سره ددې مجدد ﷫ څو هیڅ څوک ناسخ د دین محمدي نه بولي

**درویش وایي:** - چي دا تحقيق المقام دي باید طالبان د تفسیر القرآن یعني داسي طالبان چي د قرآن پر ترجمه لفظي فقط اکتفاء نه کوي

په نظر کې او ذهن کې وساتي لعلهم لا يجدونه في التفاسير المطوله و من الله توفيق .

# وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ

او موږ ورکړ عیسیٰ ﷺ ته چې زوی د مریمې ؤ معجزات واضحات او موږ دی قوي کړی ؤ په پاک روح سره

**فائده**:- عیسی ﷺ په سریاني ژبه په معنې د یسوع دي او د یسوع معنا مبارکه ده .

**سوال**:- په نحو کې وايي چې لفظ د ابن چې په ما بین کې د علمینو راسي الف بې په رسم خط کې نه لیکل کیږي مثلاً زید بن عمر، او په دې ځای کې لفظ د ابن په منځ د عیسی او مریم چې دواړه علم دي اوالف په رسم خط قراني کې د ابن سره نوشته دی .

**جواب**:- اضافت و مور ته چونکه نادر وو نو په ځکه لفظ د ابن په الف نوشته کړې .

**فائده**:- واضح معجزې د عیسی ﷺ مړي په دعا د ده ژوندي کیدل وه مور زاده ړوند ده په دعا بینا کې دی او پس په دعا د ده جوړېدی او خلکو ته بې د دوئ د کور یعني غائب شیان وربنول اوپه خپله انجیل هم معجزه د ده وه، الی غیر ذالك .

**پوهنه**:- چې عادت الهي په دې سره جاري دی چې هر کار او صنعت چې په یوه زمانه کې ډېر اونهایت ترقي ته رسېدلی وي نو نبي تر

هغې زمانې خداي ﷻ د هغه صنعت قسم معجزه ورکوي، او خلک یې په هغه مترقي صنعت کې د نبي له خوا مغلوبه کرځوي، مثلاً په زمانه د موسی ﷺ د سحر او جادو لویه چرچه وه یعنې چې ساحریه په سحر سره پوشی د خپل حقیقت بیګانه په سترګو کې د دوی ورته معلومه وله، نو د موسی ﷺ معجزه په صورت د سحر د کار خداي ﷻ ورکړه یعنې لکړه د ده به مارګر ښدله حتی چې د لکړې په معجزه سره اوپا زره ساحران د فرعون مغلوبه سوه او ټولو ایمان راوړی کماسیأتي تفصیله في موضوعه انشاء الله تعالی.

او د عیسی ﷺ په زمانه کې طبابت نهایت مترقي وو نو خداي ﷻ د ته معجزه د طبابت د قسم ورکړه یعنې (ابراء والاکمه والابرص واحیاء الموتی) او ټوله حکما ورته مغلوبه سوله، لهذا جالیونس ته چې د هغې زمانې غټ حکیم اوطبیب وو چاویله چې د عیسي ﷺ په دعا سره مړي ژوندي کیږي، اکمه او ابرص جوړیږي نو جالیونس ورته وویل که دا کارنه کولای سي نو رشتیا نبي دی ولې چې دا کارونه د دائره څخه د طبابت خارج دي، او د علیه الصلواة والسلام په زمانه کې فخر د عربو پربل باندې په فصاحت اوبلاغت سره ډېر رواج وو، کمایشهد به حال المعلقات السبع في وقت الجاهلیة، نو علیه الصلواة السلام ته علاوه تر نورو معجزو کتاب کریم قرآن مبارک معجزه ورکړه چې کر الازمان والدهور باقي ده، او خداي ﷻ وه بلیغانو ته قحطان او عدنان بلکه ټولو عربو ته دا اعلان ﴿ان کنتم في ریب مما نزلنا على عبدنا فاتو بسورة من مثله، اودا اعلان یې په قرآن مبارک په تکرار سره په مختلفو عباراتو سره کړی دی، فلم يجدبه قديراً حتى اضطروا الى المقارعة بالسيوف التي هي اعسر من المقا بلة بالالسنة ان استطاعوا

فائده:- ا ضافت په روح القدس اضافت موصوف وه صفت ته د اي روح المقدسة يعني پاك روح او مراد د روح مقدسة روح دی د عیسی ﷺ، ویحتمل ان القدس بمعنی طهارة ثم جعل بمعنی الطاهر وهو ذاته تعالی، نو اضافت د روح چي خداي ﷻ ځان ته کړی دی تکریم د روح د عیسی نحو بیت الله و ناقة الله وقد قال الله تعالی في موضع ونفخنا فیه من روحنا، او یا مراد د روح القدس څخه جبرئیل ﷺ دی و د ته روح په دې سبب وایي چي دی راتگ په وحي سره کوي و انبیاء علیهم السلاموته چي په وحي سره حیوة القلوب دی او قدس یې په دې سبب بولي چي گناه هغه هیڅ وخت نه ده کړې .

فائده:- معنی د تائید د عیسی ﷺ په جبرئیل له دې سببه ده چي جبرئیل ملگری و دوخت څخه د ولادت تر لوي والي او تر وخته پورې د نبوت د عیسی ﷺ، نو شیطان و دته نه سوای نژدې کېدای، او بیا تر هغه وخت ورسره و تر څو چي یهودو د عیسی ﷺ د قتل اراده و کړه او جبرئیل دی ﷺ و اسمانو ته پورته کړی، او بعض مفسران وایي چي مراد د روح القدس څخه اسم اعظم دی په هغه مړي ژوندي کول او خرق العادت کا رونه بې په کوله او تفسیر د اضافت د روح وه خداي ﷻ ته او وصف بالطهارة ظاهر دی .

فائده:- د مریم معنی خادم ده چونکه ددې مور دا نذر کړې وه لپاره د بیت المقدس د خدمت نو په دې مناسبت یې مریم نوم پر کښېښود .

فائده:- ابن کثیر په ټوله قرآن کي لفظ د قدس په اسکان ده دال وایي ولایتغیر به المعنی، وفي الحدیث المتفق علیه عن ابي هریره ﷺ قال قال

رسول الله ﷺ مامن بني آدم مولود الايمسه الشيطان حين يولد فيستهل صارخاً من مس الشيطان غير مريم وابنها.

**فائده**:- په منځ کې د موسیٰ ؑ او د عیسیٰ ؑ بعض مفسران رح او اهل تاریخ وایي چې څلور زره نبیان وه او بعض وایي اویازره انبیاء وه والله اعلم

**أَفَكُلَّمَا جَاءَكُمْ رَسُولٌ بِمَا لَا تَهْوَىٰ أَنفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيقًا تَقْتُلُونَ**

**پوهنه**:- چې مخاطب په دې آیت یهود معاصر د نبي ﷺ دي لکن قتل د انبیاؤ لکه زکریا، یحیٰ علیه السلام د دوئ د اسلافو څخه صادر و، که څه هم استکبار وصف مشترك ددوئ او د اسلافو و(لان اليهود المعصرين رضوا بفعل اسلافهم ويرونهم في هذا القتل على الحق)

ترجمه: آیا هر وخت چې راتګ وکړي رسول په داسي امور سره چې خوښ يې نه بولي ستاسي نفسونه یعني ستاسي له خواهشاتو زائغه و سره برابر نه وي نو تاسي کبرکوي د هغو احکامو د قبولولو او ایمان راوړلو څخه نو د یوې ډلي تکذیب کوئ لکه عیسیٰ ومحمد علیهما السلام. او یوه ډله د نبیانو وژنئ لکه زکریا او یحیٰ علیهما السلام.

**فائده**:- دا قتل که څه هم په ماضي کي ددوئ د اسلافو څخه صادر سوی و لکن تعبیریې په مضارع یعني "تقتلون" سره وکړی لپاره د احضار ددغه حالت عجیبه و مخاطبینو ته او دا طرز تعبیر په قرآن مبارك کي ډېر ځایونه را غلی دی.

فائده:- همزه د استفهام لپاره د انکار دی یعني داسي باید تاسي نه وای کړي ویحتمل ان یکون لتعجیب الحاضرین من فعلهم القبیح یعني الاستکبار والقتل.

ټوټه:- چي اسلاف د یهودو سره د تکذیبه د عیسی علیه السلام په صدد او قصد کي د وژلو دده هم وه لکن په قتل کي بریالي نه سوه چي جبرائیل په امر د خدای ﷻ و اسمانو ته ختدي پورته کړی وقصة مذکور في البخاري وغیره وسیأتي في موضعها انشاء الله تعالی، او دغه یهود معاصرین د نبي علیه السلام سره د تکذیب د نبوت دده قصد د قتل دده یې هم درلودی، حتی چي په خیبر کي د پسه په غوښه کي زهر ورا چولي وه.

او دغه رنګه په مدینه منوره کي یې په علیه الصلواة والسلام باندي سحرکړی و، او دواړي واقعې په بخاري وغیره کي مذکوره دي، او اهل علم په تفصیل خبر دي وسیأتي تفصیلها في موضع مناسب انشاء الله تعالی.

وَقَالُوا قُلُوبُنَا غُلْفٌ ۚ بَل لَّعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾

او یهود معاصیرین وایي چي زموږ زړونه په خلقي پوښو کي دي، نو زموږ زړونه ستا په خبرو ای محمد ﷺ نه پوهېږي. وهذا التفسیر موافق ماجاء في موضع اخر ﴿قلوبنا في اکنة﴾ قاله مجاهد وقتادة رضي الله عنهما نو پر دې تقدیر غلف جمع د اغلف ده چي اصطلاحاً ناسنته کړي سړي ته وایي، نو خدای ﷻ ددوئ وه زړو ته استعارةً غلف وویل او ابن عباس رضي الله عنه لفظ بضم الغین واللام وایي، او جمع د غلاف یې بولي یعني زموږ زړونه ډک د

علومو څخه دي، نو ستا وښوونو ته موږ ضرورت نه لرو نو زموږ په تبليغ کي ته سعي بې فائده مه کوه كذا قال ابن عباس وعطار رح، او کلبي يې داسي ترجمه کوي چي يهود وايې چي زموږ زړونه له علم صحيح ډك دي او هر علم چي صحيح وي، زموږ زړونه يې قبلوي اي محمد ﷺ خبري خای نه پکښي لري نو دا معلومه سول چي ستا خبري صحيح نه دي والا لم تابى قلوبنا عن قلوبها نو پر دوارو تفسيرو خدای ﷻ پر دوئ رد و کړی چي نه زړونه ددوئ په خلقي پردوکی دی.

لقوله عليه الصلواة والسلام ما من مولود الايولد على الفطرة اي قبول الدين الحق، فابواه يهودانه وينصرانه ويمجسانه اي يعلمون المولودين المستعدين لقبول دين الاسلام اليهودية فيصير يهودياً .

او يا تعليم د نصرانيت، ورته کوي نو نصارا راسي او يا تعليم د مجوسيت ورته وکړي نو مجوسي سي، او هغه خدا داده اصلي فطرت يې دوئ ور بدل کړي، اودغه رنګه زړونه ددوئ ظروف د علم صحيح نه دي كما زعموا بلکه ظروف د باطل او كفر دي و لهذا قال الله تعالى رداً لدعواهم على التفسير المذكور بل لعنهم الله، بلکه خدای ﷻ دوئ لېري کړه له هر خيره څخه په سبب د كفر ددوئ يعني چي دوی استحباب د كفر وکړی او پر كفر يې دوام مختاره کړی نو خدای ﷻ هم دوئ د خپل رحمت عا مه څخه وشړل نوځکه لږو ددوئ څخه ايمان پر عليه السلام راوړی يعني ايمان نه راوړونکي مشرکين ددوئ ډېر دي، او ددوئ نسبت و هغو ته اقل قليل دی پر دې تفسير لفظ د قليلاً منصوب دی على الحاجة او کلمه د "ما" زائد لپاره د مبالغې، والمعنى "فيوءمنون" حال کو نهم قليلاً من مؤمنى المشركين، او بعض مفسران وايي چي قليلا منصوب دي او مفعول مطلق دي په حذف د موصوف اي ايمانا قليلا يوءمنون.

**پوهنه**:- چي واقدي رحمه الله يې تفسير داسې کړی اي لايؤمنون قليلاً ولاکثيراً فالقلة مجازاً عن العدم آه. لکن دا تفسير له واقعي حال څخه مخالف دی، ولي چي عبدالله بن سلام رضي الله عنه په اول قدوم د عليه السلام مديني منورې ته ايمان راوړی. کما في الحديث البخاري مفصلاً. او نورو ډېرو يهوديانو هم پر عليه السلام ايمان راوړی دی کما سيأتي.

**نوروپوهانو وايي**:- چي دا تفسير مناسب نه دی ولي چي عبدالله بن سلام رضي الله عنه او اضراب دده من اليهود اسلموا بمحمد عليه الصلوة والسلام و کذا نصاری د نجران ان کما الصحيح المتفق عليه، قال عز من قائل

وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتَٰبٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ وَكَانُوا۟ مِن قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَلَمَّا جَآءَهُم مَّا عَرَفُوا۟ كَفَرُوا۟ بِهِۦ ۚ فَلَعْنَةُ ٱللَّهِ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٨٩﴾

او هر وخت چي راغلی و دوئ ته کتاب يعني قرآن الکريم چـي هغه تصديق کونکی د هغه کتاب دی چي ددوئ سره و يعني تورات، يعني يا په اصولو کي د دين قرآن کريم د تورات سره برابر و، او يا په دې معنی چي قرآن کريم پر داسي چا يعني محمد ﷺ نـازل سـوی چـي د هغه نعوت او حليه د تـوارات سره برابر وه.

**پوهنه**:- چي جواب د "لما" محذوف دی چي جواب د "لما" ثاني دلالت پر کوي يعني "الذين کفروا" او حال د يهودو چي معاصرين وه دا او

چې دوئ به د مبعث د رسول الله ﷺ د مخه طلب د فتح او نصرت کاوه پر هغو کسانو چې کافران وه يعني د عربو مشرکان. او دوئ به داسې خواست کاوه په جنګ کې د مشرکانو "اللهم انصرنا عليهم بالنبي المبعوث في آخر الزمان الذي نجد صفته في التورات" او خدای ﷻ به هم دوئ ته پر مشرکانو مدد ورکاوه، او دوئ به خپلو د ښمنانو مشرکانو ته ويل چې نژدې ده زمانه د نبي آخر زمان چې هغه صاحب السيف دی، او موږ د هغه نبي په فوج کې ستاسي جنګ کوو او لکه عاديان او ثموديان داسې به مو وژنو، او بعض مفسران وايي چې کلمه د سين لپاره د طلب نه ده بلکه لپاره د مبالغې ده، او مراد دادی چې يهودو به وه عربو ته ويل چې يو نبي ستاسي له قومه څخه عنقريب راتلونکی دی چې د هغه صفت په تورات کې داسې او داسې دی، نو خدای ﷻ وايي چې څه وخت چې راغلی ودوئ ته هغه نبي منعوت في التورات يعني محمد ﷺ او دوئ هم وه پېژندی چې دا هغه نبي موعود او منعوت في التورات دی، نو دوئ کفر اختيار کړی په هغه نبي سره خوفاً على الرياسة والمال الماخوذ من سلفهم يعني د غريبانو څخه.

**پوهنه**:- چې اول دا کفر او انکار ملايانو د يهوديانو مختاره کړی نو لعنت د خدای ﷻ دي وي پر کافرانو.

**سوال**:- څه حکمت دي چې خدای ﷻ و نه ويل فلعنة الله عليهم.

**ځواب**:- چې په راوړو کې د لفظ .الکافرون. اشاره وه سبب ته د لعنت پر دوئ ده، يعني سبب د لعنت کفر د دوئ دی، او بل جواب دادی چې مراد له کافرينو څخه فقط دوئ نه دي يعني لام لپاره د عهد نه دی

چي د "علیهم" ویل صحیح سي بلکه الف او لام لپاره د جنس دی، یعني لعنت الله علی جنس الکافرین" او دوئ هم په کښي داخل سوه.

**پوښتنه**:- چي د قبل لفظ مبني برضمه دی، عوضاً عن المضاف الیه المحذوف والتقدیر قبل مجيء محمد ﷺ وهکذا في مواضع آخر من القرآن الکریم.

**پوښتنه**:- چي لعنت پر کافر ویل عبارت دی د لیري والي څخه د کافر د رحمت عامه څخه د خدای ﷻ او کرامت او د جنت څخه علی الاطلاق، او په حق کی مومن ګناه کار لیري والی د رحمت خاصه څخه د خدای ﷻ چي پر هغه چایې کاوه چي دا ګناه نه وای پکښې.

**مسئله**:- پر یوه معین مسلمان که څه هم ګناه کار وي لعنت نه دی راوا، او پر غیر معین ګناه کار که څه هم مسلمان وي لعنت راوا دی، کما ورد في الحدیث النبوی ﷺ "من احتکر فهو ملعون" یعني که چا ذخیره کړی هغه شی چي د رانیولی و یعني له غذائي شیانو څخه لپاره د هغه وخت چي د ګراني په وخت کي ئې خرڅ کړي نو هغه سړی مطرود دی له درجې څخه د ابرارو الامن رحمة الغفار، په روح البیان کي وایي چي اسباب د لعنت دري (۳) دي.

(۱) الکفر (۲) والبدعة (۳) والفسق، او په هر یوه کي دري مر تبې دي،

(۱) الاولی اللعن بالوصف الاعم کقولک لعنة الله علی الکافرین وهو جائز او یا لعنة الله علی المبتدعة او یا لعنة الله علی الفسقة وهو جائز.

(۲) الثاني الوصف بالفظ الاخص من الاول کقوله ﴿ لعنة الله علی الیهود والنصاری او لعنة الله علی القدریة والخوارج والروافض والجبریة، او لعنة الله علی الزناة والظلمة واکلة الربوا الی غیر ذالک وذالک کله جائز اتفاقاً.

(۳) والثالث: اللعن علی الشخص المعین فان کان یثبت کفره و موته علی الکفر شرعاً ان لم یکن فیه اذی علی المسلم کقولک لعنة علی فرعون وابی جهل مثلاً لانه ثبت نصاً ان هؤلاء ماتوا علی الکفر و ما کان فیه اذی المسلم کقول القائل عند حضور عکرمه ﷺ ابن ابی جهل لعنة الله علی ابو جهل لانه یتاذی به عکرمه فلایجوز.

او که يې کفر او موت پر کفر شرعاً نه و معلوم، کقول القائل لعنت الله علی زید مثلاً وان کان عاصیاً بالکبائر ففیه خطر عظیم لان الخاتمة مستورة وربمایسلم الکافر او یتوب العاصي فیموت مقربا الی الله فکیف یحکم بکونه ملعوناً. ولي په حدیث کي راغلي دي چي وحشي چي اکا د نبي ﷺ چي حمزه ﷺ يې نوم و په غزوه احد کي په شهادت ورساوه او هغه وحشي په فتح کي د مکې مکرمې اسلام راوړی په حضور کي د علیه الصلواة والسلام يې اسلام قبول کړی. او د خدای ﷻ له خوا زيری د جنت باندي وسو، او هغه وحشي په مقابل کي د قتل د حمزه ﷺ یو لوي د خدای د ښمن مسلمة کذاب چي دعوه د نبوت يې درلوده په قتل ورساوه، او هغه کسان چي پر یزید قاتل د حسین ﷺ لعنت روا نه بولي دغه دلیل وايي قتل د حسین که څه هم ډېر غټ جنایت او ګناه وه لکن دا امکان لري چي یزید دي دذې ګناه څخه توبه کښلې وي، والله التواب الرحیم فکیف یجوز لعنة، او بعض علماء لعنت پر یزید روا بولي دوئ وايي چي یزید په وخت د امر په قتل د حسن ﷺ کافر سوی و، ومات علی ذالك، او د یزید یو شعر هم پر کفر دده دلالت کوي.

فان حرمت یوما علی دین احمد ●●●●● فخذها علی دین المسیح ابن مریم

پوهنه:- چي ضمیر د "حرمت" راجع و خمر ته دی یعني یزید دا بیت په وخت کي د شرابو د څښلو ووایه، وقال علامة التفتازاني في شرح

العقائد . الحق ان رضی یزید بقتل حسن ، او خوشحالي دده په قتل د
حسین او سپکاوي دده په اهل بیت د رسول الله ﷺ متوا تر المعنی دی
که څه هم تفاصیل اخبار احاد دی، نو تفتازاني  په اخر کي وايي
فنحن لانتوقف في شانه بل في ایمانه فلعنة الله علیه وعلی انصاره و
اعوانه انتهی، او قاضي ثناءالله  په تفسیر مظهري سپاره "ماابرئ"
سورت ابراهیم کي داسي وايي چي ابن عباس  یو ورځ د امیر
المومنین عمر  څخه ددې ایت په باره کي پوښتنه وکړه ﴿الذین بدلوا
نعمت الله کفراً﴾ یعني چي آیت د چا په باره کي نازل سوی دی قال عمر
 ﴿هم الافجران من قریش بنو المغیرة وبنو امیة﴾ ده  وویل چي د بنو
مغیره وو سرکښه کافران په بدرکي ختم سوه، واما بنو امیه فتمتعوا الی
حین، یعني بني امیه به تر وخته پوري تمتع په دنیا کي ژوند وکړي،
وهذه روایت ابن مردویة عن ابن عباس  و کذا ذکر البغوي قول عمر
وذکر ابن جریر وابن المنذر وابن ابن حا تم والطبراني في الاوسط والحاکم
وصححه ان علي بن ابي طالب  ذکر مثل قول عمر . والحاصل چي
بنو امیه تر ډېر وخته پر کفر پاته وه او د علیه السلام په عداوت او جنګ
اخته وه، حتی چي ابو سفیان ایمان راوړی او دده زوئ معاویه هم ایمان
راوړی او عمر بن العاص وغیره هم د قوم څخه د بنو امیه وه په ایمان
مشرف سول، قال المظهري فهم کفروا یزید بن معاویه و من معه، ولي
په عداوت کي د آل رسول الله ﷺ اخته سوه او حسین  یې ظلماً شهید
کړی او یزید کفر به دین نبوي سره مختاره کړی حتی په قتل کي د
حسین  یزید داسي وویل "این اشیاخي ینظرون انتقامی بآل محمد ﷺ،
چېري دي زما د قوم سپین ږیري چي وګوري چي ما څرنګه کسات
واخستي له آل محمد او بني هاشمو څخه، او یزید په یو بل شعرکي وايي

ولست من جندب ان لم انتقم  من بني احمد ماكان فعل

او د بنو امیه خانـدان چي پر سر د حکومت و پر منبرو به یې آل محمد ﷺ ته بنکنځل کول، ونقل النووي رحمه الله في شرح المسلم ان بنو اميه لما ذكروا علي رضي الله عنه على المنابر قالوا سود الله وجهه، وهذا هو السر في ان علماء الامت المحمدية بعد بنو اميه لما ذكروا عليا رضي الله عنه قالوا كرم الله وجهه مكان الترضية لغيره من اصحاب رسول الله ﷺ.

**فائده**:- دا ګمان مه کوئ چي ابو سفيان رضي الله عنه يا معاويه رضي الله عنه او غيرهم من بني اميه كانوا معاندين للنبي ﷺ اولاً له ﷺ بل هذه العداوة قدجرى من زمان يزيد و من بعده، قال المظهري رحمه الله فمنعوا بهذه الضلالة الف شهر ثم ختم الله هذا الضلالة من دين الاسلام.

**مروښکلي وايي**:- چي دا و حال د يزيد و اتباعه په قول د علامه تفتازاني رحمه الله او په قول د مظهري رحمه الله و روح البيان والله اعلم بحقيقة الحال واليه المرجع والمال، قال الله عزوجل.

**بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بَغْيًا اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ فَبَآءُوْ بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ ۭ وَ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۹۰﴾**

قوله بئس ماشتروابه انفسهم:

**پوهه**:- چي "بئس" فعل ذم دی او فاعل په دې کښي ضمير مستتر دی او کلمه د "ما" نکره ده تميز د فاعل د "بئس" ده او "اشتروا" صفت

دی د "ما" او شراء په معنی د بیع ده و المضاف مقدر دی چې حفوظ انفسهم في الآخرة من الجنة و نعمها نوددي حفوظ بیعه سوه یعنې ددوي د لاسه ووتل او کفر او ریاسة الدنیا و حظوظ الدنیا یې لکه ثمن ددوئ لاس ته ورغلی "قوله ان یکفروا بما انزل الله، دا مخصوص بالذم د "بئس" دی قوله "بغیا، مفعول له دی د "یکفروا" نه د "اشتروا" ولې چې په منځ کې د فعل او مفعول له فصل په بیګانه سره نه دی روا، او بعض مفسران ح وایي چې "اشتروا" پر خپله معنا دی یعنې دوئ رانیولې خپل ځانونه یعنې خلاص کړي یې دي د ذلت څخه ددې دنیا ولې چې خپل ریاست برقرار ساتلی دی.

**فائده**:- اصل معنی د "بغي" طلب دی او فساد کمایقال بغي فلان کذا اذا طلبه وبغي الجرح اذا فسد" نوځکه ظالم ته باغي وایي ولې چې مفسد دی، او حاسد ته هم باغي وایي ولې چې دی ظلم کوي پر محسود باندې اوزوال دده د نعمت غواړي والمعنی ههنا انهم یکفرون حسداً وطلباً لما لیس لهم من الاستیلاء علی الارض او فساد في الارض، قوله ان ینزل الله، مراد ځنې قرآن کریم دی او "ان ینزل الله " په بغیاً پورې تعلق لري په تقدیر د لام اي لان ینزل الله، قوله "من فضله " یعنې په محض فضل سره یعنې نبوت او نزول الکتاب کسبي شی نه دی بلکه موهبي شی دی، قوله "علی من یشا" و هو محمد ﷺ دی قوله "فبآء" اي رجعوا په یوه غضب سره په سبب د کفر په محمد ﷺ برسېره پر بل غضب په سبب د کفر په عیسی علیه السلام او په انجیل سره وعدم العمل باالتورات وقولهم عزیر ابن الله والا عتدا في تعظیم السبت وعبادة العجل وان کان بعض تلک القبائح صدرت عن اسلا فهم وقدرضوبها، قوله ﴿ وللکافرین عذاب مهین﴾ یعنې عمومي کافرانو لره چې د هغو په مصب کې یهودو لره هم عذاب

دی د اهانت او اذلال له قسمه بخلاف عذاب عصاة المؤمنین، ولې چې
هغه لپاره د پاکولو ددوئ د خیري د ګنهو دی، مثلاً لرګي چې سرې اور
په بلوي لپاره د اهانت د لرګو دی، او پر سرو زرو چې اور څوك بلوي
لپاره د پاکی، د غش او خیري څخه.

**حکایت**:- راوي وايي چې چونکه د مولانا جلال الدین الرومي رحمه الله
څخه شیخ تبریزي رحمه الله چې مولنا رحمه الله ته په لږ ملاقات کې په روحاني
توګه بعض کشفیات او اسرار ورښوولي وه د مولنا څخه ورك سو نو
مولانا یې په طلب کې سرګردان ښار پر ښار ګرځېدی یوه ورځ په یو ښار
کې مولنا رحمه الله د دوکان سه د سرو زرو خر څونکي صلاح الدین زرکوب
تبریزي رحمه الله شیخ صلاح الدین ور رغ کړه چې دلته راسه مولنا چې
دوکان ته ورغلی شیخ صلاح الدین زرکوب ورته وویل چې څه کوې چې
بې صبره حیران ګرځي مولنا رحمه الله ورته وویل چې د اسمان څخه چې لمر
ورك سي یعني شمس تبریزي نو خود به اسمان سرګردانه پسې ګرزي
تاچي له تاریکی څخه د فراق الشمس خلاص سي، شیخ صلاح الدین
رحمه الله ورته وویل زه ستا شمس یم، چونکه مولنا شمس تبریزي رحمه الله د
ملنګی په لباس کې لیدلی وو او شیخ صلاح الدین رحمه الله د جاه وجلال په
لباس کې وو نو مولنا ورته وویل چې زه به څه تا وپېژنم چې ته زما شمس
یې نو شیخ صلاح الدین بعض هغه مقامات چې شمس تبریزي مولنا
وهغو مقاماتو ته رسولی و بیان کړه، نو مولنا وپوهېدی چې رشتیا دا
شمس تبریزي دی لکن د مخه یې خپل ځان په بطانه یعني لابذي جامه
کې را ښکاره کړی و او اوس یې په ظهاره کې یعني د پابندي صورت را
ښکاره کړی فاشتغل مولنا رحمه الله عنده بتحصیل الکمالات فوصل مولنا الی
ماوصل کذا في روح البیان.

**فروبش وایي**:- چي د بې حسد شخص سره حسد کول د محسود کمالات نور زیاتېږي او د حاسد زړه نور خوړل کېږي قال المولوي المعنوي رحمه الله،

چون کنی بربی حسد مکروحسد
زا نـ حسد دل را سیاهی میرسد

خاک شو مردانـ حق را زیر پا
خاک برسر کنـ حسد را همچو ما

وقدجربت ذالك تجربة عظيمة، وهكذا كان حال الانبيا والاوليا كما قال رسول الله ﷺ اللهم اهد قوم فانهم لا يعلمون

**وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ قَالُوا نُؤْمِنُ بِمَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا وَيَكْفُرُونَ بِمَا وَرَاءَهُ وَهُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِمَا مَعَهُمْ**

او چي وه به ویل سول یعني د اصحاب کرامو ﷺ له خوا خخه ویهودو ته د مدینې او شاوخوا یهودو ته پر ډول د تبلیغ او نصیحت چي تاسي ایمان راوړئ په هغه کتابو سره چي خدای ﷻ نازل کړي دي، یعني پر کتبو الٰهیه وو خصوصاً الانجیل والقران دوئ به ناصح ته ویل چي زموږ ایمان پر هغه کتاب دی چي موږ ته نازل سوی دی یعني تورات فقط

**پوه سه**:- مضارع لپاره د استمرار ده یعني موږ همېشه پر ایمان د خپل کتاب تورات یوفقط، اودوي همېشه کفر کوی په ماسوا د "ما انزل الیهم.

**پوه سه**:- چي "یکفرون" قول د خدای جل سلطانه دی، او حال دادی چي ماوراء التورات حق دی او مصدق د مامعهم من التورات دی.

**پوهنه**:- چي جمله "یکفرون" حال د ضمیر څخه چي په "قالوا" کي دی، او ضمیر د "هو" راجع و ما ورا ته دی او مراد ځني قرآن دی.

**فائده**:- "مصدقاً" حال موکده دی لپاره د رد د هغه قول ددوئ چي "نؤمن بماانزل علینا" ولي چي کفر په مصدق د تورات چي قرآن کریم دی کفر دی په تورات سره نو دوئ څرنګه دعوې د ایمان باالتورات کوي.

**قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْۢبِيَآءَ اللّٰهِ مِنْ قَبْلُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴿۹۱﴾**

**ته ووایه ویهود ته یعني لپاره د رد ددې قول د دوئ نؤمن بما انزل آه نو تاسي ولي وژنئ انبیا د خدای ﷻ که تاسي ایمان پرتورات لري ولي په تورات کي خو قتل د نبي حرام ګڼل سوي دي.**

**فائده**:- اصل د "لم لِمَا" وو یعني لام د تعلیل دی پر ما استفهامیه داخل سوی دی لپاره د فرق په منځ کي د ماخبریه او ما استفهامیه نحو فیم، وعم، وبم.

**پوهنه**:- چي " تقتلون" دلته لپاره د احضار د حالت عجیبه ماضیه دی نو په اصل کي " قتلتم" و له دې سببه چي قتل د انبیاء عليهم السلام په ماضي ددوئ د اسلافو څخه واقع سوی و.

**سوال**:- چي قتل ددوئ د اسلافو څخه صادر سوی و نو حاضرینو ته د عصر نبوي ﷺ یې ولي نسبت وکړی کما یدل علیه صیغة الخطاب؟

**ځواب**:- چونکه حاضرین په فعل د اسلافو خپل راضي وه، او قتل د هغو د انبیاء علیهم السلام حق بااله نو ځکه نسبت د قتل یې و حاضرینو ته وکړی کما یقال بنو فلان قتلوا مع ان القاتل واحد منهم.

**مسئله**:- ابو الليث السمرقندي رحمه الله په خپل تفسير كي وايي په دې آيت دليل دى پردې، من رضى بمعصية شخص فكانه فاعل لها .

**فائده**:- كلمه د "فا" په "فلم آه" كي جزاء د شرط محذوف ده اي ان صح ماقلتم من الايمان بالتورات فلم آه.

**فائده**:- د "ان كنتم مومنين" جواب محذوف دى بدل عليه ماقبله .

# وَلَقَدْ جَآءَكُم مُّوسَىٰ بِالْبَيِّنَٰتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَنتُمْ ظَٰلِمُونَ ﴿٩٢﴾

**پوهنه**: چي لام موطئه د قسم دى او مقصود الهي په دې آيت كي دادى چي كفر د يهودو تر زمانې پورې د هغو انبياوٴ چي دوئ مره كړه نه دى خنديدلى بلكه په زمانه كي د موسىٰ عليه السلام تر هغه قتل اشد كفر اسلافو د يهودو كړى دى چي هغه اتخاذ العجل الهاً و معبوداً دى .

**فائده**:- بعض مفسران رح وايي چي مراد د "آيات بينات" څخه هغه دلائل واضحه دي چي پر استحقاق د خداى جل جلاله په معبوديت سره دلالت كوي، وهي اعم من المعجزات وغيرها من الدالائل العقليه الموجودة في الانفس والآفات " لكن قاضي ناصر الدين البيضاوي رحمه الله وايي چي مراد دآيات بيناتو څخه هغه نهه (۹) معجزې دي چي په هغه آيت كي ذكر سوي دي

﴿ولقد أتينا موسىٰ تسع آيات بيّنات﴾ چه هغه په مجمله توګه دادي، طوفان يعني ډير باران، والقمل، والضفادع، والدم، والعصاء، واليد

البیضاء، وفلق البحر، ونتق الجبل والجـراد، چې د قرآن کریم په متفرقو آیاتو کې ذکر سوي دي چې پخپلو ځایو کې به راسي ان شاء الله یعني بیان به یې په تفسیر کې راسي

**فائده:-** بوله قراء القرآن د لفظ د انبیاء ﷺ په "یا" سره وایي بواځي نافع رحمه الله دی چې په ټوله قرآن کریم کې یې په همزه سره وایي یعني انبئاءالله.

**ترجمه:-** او قسم په خدای ﷻ چې ستاسي اسلافو ته راتـګ کړی و موسی ﷺ په معجزاتو و اصحاتو سره، بیا وروسته تاسي ګلګی د سامري و ګرځاوه یعني معبود، وروسته تر موسی ﷺ یعني چې دی کوه طور ته ولاړی او بایس له مجنی بالمعجزات ځخه.

"وانـتم ظـالمون" جمله حالیه ده یعني په عبادة العجل سره ولي چې عبادت چې مستحق یې خدای ﷻ دی په ګلګي کې مو کښیښنود کما هو معنی الظلم، او یا دا جمله معترضه ده یعني انتم قوم عادتکم الظلم.

قاضي بیضاوي رحمه الله وایي چې سوق ددې ایت لپاره د رد د هغې دعوې د دوی دی یعني نؤمن بما انزل علینا او لپاره د تنبیه پردې چې طریقه د موجوده یهودو د علیه السلام سره هغه طریقه د اسلافو ددوی سره د موسی ﷺ او اقناط کلي دی د علیه السلام او اصحابو کرامو د ایمان ځخه د موجوده یهودو

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ وَاسْمَعُوا قَالُوا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا

او یاد کړئ هغه وخت چې موږ واخستله محکمه وعده ستاسي ځخه یعني ستاسي د اسلافو ځخه په عصر کې د موسی، قصه داده چې تورات په یوه پلا پر موسی نازل سو نو یهودانو د هغه وخت چې اوامر متعدده وو د تورات او منهیاتو متد کاثره وو د تورات وکتل او وایه وربدل، نو

موسی ﷺ جواب ورکړی چي دا ټوله اوامر او منهیات زموږ له طاقته نه دي پوره، نو خدای ﷻ جبرائیل ته وویل چي یو غر له غرو څخه پر راپورته کړه او ددوئ پر سر یو قامت لوړ په ونیسه او موسی دي دوئ ته ووایي چي د تورات احکام قبلوئ او که نه غر به جبرئیل رائله کړي نو دوئ پر سجدي پرېوتل او سجده يې پر بارخوګانو کوله یعني یوه سترګه بې په غره کي وه چي رائله نسي خو هغه سجده تر اوسه هم يهود پر بارخو سجده کوي، نو څکه خدای ﷻ "ورفعنا" یعني جبرئیل زما په امر پورته کړی سربېره پر سرو طور ستاسو یو غر د غرو څخه د هغه ځای "خذوا" واخلئ هغه احکام چي په تورات کي موږ تاسي ته در استولي دي په قوت سره یعني په ډېر کوشش سره.

**پوښتنه**:- چي "خذوا" آه حال دی په تقدیر د قوله یعني قائلین لکم خذوا او واورئ احکام د تورات یعني په سماع قبولي او عمل سره، نو دوئ وویل چي موږ واورېدې خبري یعني ظاهراً لاقلباً وطاعة، وعصینا او موږ د تورات د احکامو انکار په زړه کي ساتلی لرو یعني که د غره ډېره نه وایي سمعنا به يې هم نه وای ویلې.

**سوال**:- "وعصینا" خو عطف دی پر "سمعنا" باندي نو خو تقدیر د کلام داسي کېږي "قالوا عصینا" نو ددوئ په خوله موسی ﷺ دا جواب ورکوي نو بیا غر څرنګه خندي پورته سو واجاب عنه المظهري ﷫ چي اهل معاني وایي چي عصینا دوئ په خوله نه دی ویلی، چونکه تر "سمعنا" وروسته او د غره د عذاب له پورته کېدو وروسته دوئ بیرته په "عصینا" لاس پوري کړی نو "عصینا" يې لکه مقول د قول ددوئ وګرځاوه

**فائده**:- نو دا چي د یهودیانو د اسلافو حال و څرنګه به سړی د موجودوینو څخه د عصر نبوي ﷺ امید د ایمان پر نبي ﷺ وکړي، فردوسي ﷫ وایي،

زبد گوهران بد نه باشد عجب سیاهی نباشد بریدن زشب
زبد اصل چشم بهی داشتن نبود خاك در دیده انبا شتن

**فائده**:- زموږ د امت محمدي ﷺ د اسلافو سره دا د خدای ﷻ احسان وچي په درویشت کاله زمانه د نبوت کي د علیه السلام په احکامو الهیه اسلامیه په ډېر تدریج سره ودوئ ته بیان کړه نو هیڅ ځای د انکار د اسلافو ﷺ څخه زموږ وجود ته نه راغلی الحمد الله.

**سوال**:- د ورستنی زماني خلك او مؤمنان څوپه یوه وار په احکامو د قرآن مبارك مکلف سوله ؟

**ځواب**:- د ورستنیو مسلمانانو مور او پلار مؤمنان وه او هغو به خپل عیالونه تر بلوغ د مخه په کرار کرار په عباداتو بدنیه او په عقائدو حقه و پوه کړه او د عمل په میدان کي په کرار کرار وارد کړه مثلا د اوو (۷) کالو په سن کي پر لمانځه نه کولو منت اوخوشك ورته کوله او د لسوا (۱۰) کلو په سن کي پر لمانځه نه کولو باندي وهله وهکذا روژه وغیره، نو دوئ چي به سرحد ته د بلوغ رسېدله د ټولو عقائدو حقه و سره به شناخته سوه او اعمال بدنیه به یې هم د عمل په میدان پیاده کړه او منهیات ددین لکه لواطت، زنا وغیره هم وپېژندله نو په یوه پلا دوئ هم مکلف نه سوه.

**سوال**:- یهودیان د غره د پرې استلو به سبب قبول ته مجبوره کول اکراه في الدین نه ده وقد ورد لا اکراه في الدین ؟

**جواب**:- حال د یهودانو چي په زمانه کي د موسی ﷺ تحت الجبل محاصره و حال د منافقانو د عصر نبوي ﷺ و بعینه چي هغوهم تحت براق السیف په خوف کي وه، نو یې ظاهر ایمان راوړی او قلبا کافران وه لکه چي ایمان د منا فقینو و، نو آنحضرت ﷺ و مانه، او ددوئ د زړه حال یې خدای ﷻ ته وسپاره، دغه رنګه موسی ﷺ د محاصرینو تحت الجبل سمعنا یې و مانه، او پټ حال د "عصینا" یې و خدای ﷻ ته مفوض کړی.

واما قوله تعالی لا اکراه في الدین، په ابتداء کي د اسلام وچي علیه السلام صرف او صرف په تبلیغ قولي سره مامور و،او د سیف د استعمال اجازه ورته نه وه څو چي اسلام قوي سو، او علیه السلام ته امر د ﴿واقتلوا المشرکین کافة﴾ راغی او دا آیت ﴿ واقتلوا المشرکین حیث وجدتموهم﴾ نو دا آیت ﴿ لااکراه في الدین﴾ منسوخ سو او علیه السلام مامور بالجهاد سو او د هر کافران یې پر قتل د نفس او پر عبدیت د اهل او عیال او پر نهب الاموال باندي کرهاً پر ایمان راستله، کما ثبت في الاحادیث النبویة وعلی هذا اکثر العلماء رح، او بعض علماء وایي چي "لااکراه في الدین" منسوخ نه دی بلکه مراد د "اکراه" څخه اجبار دی یعني چي خدای ﷻ بیله اختیاره د کافر په زړه کي ایمان ور واچوی او داسي خدای ﷻ نه کوي "والا لم یبق فرق بین ابي بکر صدیق ﷺ وبین ابی جهل لعنت الله علیه کما لایخفی" هذا ما عندي في حل هذا المقام والله اعلم بحقیقة الحال.

# وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ

او څښل سوی و په زړه کي د يهودو يعني د موسی ﷺ د زماني ګلګی يعني محبت د هغه چي ساميري ورته جوړ کړی و په سبب د کفر ددوئي ولي د هغې زماني يهود د خپل حماقت څخه مجسمه وه يعني چي خدای ﷻ جسم او صورت لري او دوئ ته سامري جوړکړی ګلګی دوئ داسي عجيب جسم نه وو ليدلی، نوځکه هغه دوئ خدای وباله او سجدې بې ورته کولې.

**سؤال**:- محبت د عجل خو يو معنی ده يعني د څښلو شي نه دی؟

**جواب**:- اشربوا" کنايه ده له تداخل څخه يعني لکه مشروب حقيقي چي په ټولو اعماقو کي د شارب ننوزي او يارنګ د ثوب مصبوغ په ټولو اطرافو کي ننوزي، دغه رنګه محبت د ګلګي د دوئ د زړه په ټولو اطرافو کي راسخ او محکمه کرخېدلی و.

**فائده**:- که د عجل څخه صورت د ګلګی مراد سي نوحذف ته مضاف يعني حبه ته ضرورت نسته کما يفهم من عبارة البيضاوي.

**فائده**:- "قلوبهم" محل دی د اشراب، بيضاوي، روح المعاني روايت کړی دی چي موسی ﷺ چي د سرو زرو جواهراتو څخه جوړ سوی ګلګی وسو، او باره يې ودرياب ته واچوی يهود به ورغله د محبت د عجل بې د هغه درياب اوبه څښلې وهذه غاية في الحماقه.

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو. د دعا په هيله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

# قُلْ بِئْسَمَا يَأْمُرُكُم بِهِۦٓ إِيمَٰنُكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٩٣﴾

او ته اي محمد ﷺ ودوئ ته ووايه چي بد دی هغه شی چي امرکوي تاسي په هغه شي سره يعني چي قبائح ستاسي دي، چي په دې ما قبل درو آيتو كي ذكر سول، ايمان ستاسي په تورات سره لكه تاسي چي دعوه كوئ په دې قول سره ﴿بل نؤمن بما انزل علينا﴾ آه كه چېري تاسي ياست مؤمنين بالتورات .

**فائده**:- صورت ددې آيت د منطقو پر رو قياس استثنائي دی چي استثناء د نقيض د تالي نتيجه يې نقيض ده مقدم راځي، كما تقول ان كان زيد ناهقا كان حمارا لكنه ليس بحمار فليس بناهق و كما في قوله تعالی، لوكان فيهما آلهة الا الله لفسدتا، يعني لكن فساد د سموات او مځكي خو نه دی واقع نو تعدد د آلهة ووهم نسته.

وتقرير ذالک ههنا، ان كنتم مؤمنين بالتورات فبئس ما يامركم به ايمانكم لها وهی النصائح المذكوری لان المؤمن لايتعاطی الا ما يقتفيه ايمانه لكن الايمان لا يامر بتلک القبائح المذكورة فلستم مؤمنين بالتورات فافهم .

**پوهنه**:- چي يهودانو به باطلي دعوې كولې ګاهي بې ويله، لن تمسناالنار الا اياماً معدودات، وقد مر بيان ذالک من قبل ، اوګاهي به ويله لن يدخل الجنة الا من كان هوداً، او ګاهې به ويله نحن ابناء الله واحبائه نو خدای ﷻ په دې ايت كي ددوئ تكذيب وكړی .

قُلْ إِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْآخِرَةُ عِنْدَ اللَّهِ خَالِصَةً مِنْ دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿۹۴﴾

ووایه اي محمد ﷺ ویهودو ته که چېري وي تاسي لره دار اخرت یعني نعیم الجنة وي .

پوهنه:- چي "الدار الاخرت" اسم دکان دی او لکم یه خبر دي په نیز د خدای ﷻ ظرف د کان دی او خالص ته سي لره خالصة منصوب دی حال دی د دار الاخرة څخه، بېله له نورو خلکو.

پوهنه: چي که د نورو خلکو څخه مراد ټوله خلق وي یعني که نصاری وي او که مسلمانان وي نو الف و لام لپاره د استغراق یا جنس دی او که مراد یوازي مسلمان وي نوالف ولام لپاره د عهد دی، نو که داغسي وي نو تاسي تمنا او خواست د مرګ وکړي د خدای ﷻ څخه ولي چي جنت خو دار السرور دی او ځای د دوستانو د خدای ﷻ دی او دنیا خو ځای د غمو او مصائبو او رنځ او د تکلیف وغیره دی او چونکه رسېدل وجنت ته بېله مرګه نه کېږي نو باید تاسي خواست د مرګ کوئ لپاره د دي چي تاسي ژر تر ژره دار السرور ته ورسېږي، بیهقي او ابن مبارک رح د ابن عمر ﷺ څخه روایت کوي ﴿ قال قال رسول الله ﷺ الموت تحفة المؤمن وعن الحسين ﷺ بن علي مرفوعا الموت ريحانة المؤمن وقال حبان بن الاسود رحمه الله الموت حسر يوصل الحبيب الى الحبيب .

**پوښتنه**:- چي تمنا يوازي د خولې وينا نه ده يعني ليتني امتُ بل اصلاً، د زړه شی دی او لسان د زړه پر تمنا دال دی.

**سوال**:- د مومنانو خو پردې اتفاق دی چي جنت د مومنانو ځای دی يعني بې له مومن بل څوك جنت ته نسي ورتلای په دې معني نه چي يوازي مومنان د امت محمدي ﷺ بلكه په دې معنا چي له آدم عليه السلام څخه رانيولې بيا تر اخيره پوري د زمانې مومنان مراد دي، او سره ددې چي هغه مومن د مرګ تمنا نه كوي بلكه موږ نبي ﷺ د تمنى څخه د مرګ په دې الفاظو منع كړي هم يو. ﴿لا يتمنى احدكم الموت لضر نزل به ولكن ليقل اللهم احييني ماكانت الحياة خيرا لي وتوفني اذا كانت الوفات خيراً لي﴾ نو څرنګه يهودو ته دا ويل كيږي چي كه تاسي مومنان ياست نو تمنى د مرګ وكړئ او موږ په خپله تمنى د مرګ نه كوو.

**ځواب**:- مومنان خو ځان ته دونده لوړه مرتبه نه ايږدي چي موږ ګنهونه هر څو وكړو خدای ﷻ موږ ته عذاب نه راكوي لكه يهوديانو چي ځان ته دغسي لويه مرتبه ايښوولې لكه څرنګه چي نژدې ذكر سول بلكه مسلمان د مرګ څخه بېربيږي يعني چي په سبب د ګنهو خدای ﷻ دوږخ را نه كړي لكن سره د هغه و رحم عظيم او مغفرت ته د خدای ﷻ اميدواره دي، نو د مسلمانانو او د يهوديانو تر منځ ډېر فرق دی كما لا يخفى، قال القائل، رحمه الله

لولا نباتي وسيئاتي    لذبتُ شوقا للممات

سهيل بن عبد الله التستري رحمه الله وايي چي دمرګ تمنى نه كوي مګر درې قسمه كسان

(۱) هغه څوك چي جاهل وي چي وروسته تر مرګ څه حالات سته.

(۲) هغه سړی چي د تقدير الهي څخه تښتي يعني چي تر زامنو مثلاً د مخه مړ سم.

(۳) هغه څوك چي د شوق د ملاقات د درب العزت المحبوب الحقيقي تمنی د مرګ کوي.

په تاريخ کی د مولیناجلال الدين الرومي صاحب المثنوي رحمه الله داسي راغلي دي چي د ده د وفات وخت چي نژندي سو ملك الموت ځان ورښکاره کړی او په دروازه کي و دريدی مولنا ورغ پروکړي،

پیش ترا پیش تر آجان من نيك در حضرت سلطان من

**حکايت**:- يو پاچا پوښتنه د ابو هازم رحمه الله څخه وکړه چي ورتګ و خدای ﷻ ته به څنګ وي ؟

ابو هازم رحمه الله ورته وويل چي هغه څوك چي په ژوندکي د خدای ﷻ فرمانبرداري کوي هغه به خدای ﷻ ته داسي ورځي لکه يو مسافر چي قريبان يي ډېر ورته تري وي كورته ورځي، او عاصي او بد عمله سړی به داسي خدای ﷻ ته ورځي لکه يو مريی چي د باداره تښتېدلی وي، او بادار يې هم ورته په درد وي.

**فائده**:- قاضي ثناءالله رحمه الله وايي چي د دې آيت و احاديثو څخه داسي معلو ميږي چي چونکه قبر اول منزل د منازلو څخه د اخرت دی كما رواه الترميذي وابن ماجه عن عثمان مرفوعاً نو په قبر کي سمدستي روح او ريحان د جنت راځي كما ثبت في الحديث الصحح النبوي ﷺ ﴿قال القبر روضة من رياضة الجنة او حفرة من حفرات النيران﴾ ولي که ثواب په قبر کي نه وای نو د تمنی د موت څه فائده وه و لي چي پس له مرګه خو قبر دی آخرت خو وروسته دی، وبهذا يثبت عذاب القبر باشارة

الآیت المتلوة و بعبارة الحدیث المذکور و هو مذهب اهل السنة و الجماعة، خلافاً للمعتزله والشیعة، انتهی بزیاذة کثیرة، والحوالة الی التفسیر المذکور للجهلة والحسدة الذین یقولون ان القتل بدون، حواله سرقه ده ولایرون هؤلاء الجهلة لفرط حسد هم ان النقل بدون الحوالة شائة کثیرة في التفاسیر والفقه والعقائد. بیت

چشم بد اندیش که برکنده باد عیب نماید هنرش درنظر

**پوهنه**:- چي په حدیث کي چي روایت یې ابن عباس ﷺ له رسول الله ﷺ څخه کړی دی راغلي دي چي که چېري یهودو تمنی د موت کړې وای نو به مړ واي هر یهودي خپل په نارو سره، او نه به وایي پاته پر تولـه مځکه یو یهودي.

**فائده**:- د رافع څخه روایت دی چي یوه ورځ یو یهودي زموږ سره د بحث په دوران کي و ویل یې چي ستاسي په قرآن کي راغلي دي "فتمنو الموت، دایم زه یهودي یم تمنا د مرګ کوم نو ولي نه مرم کما قال، نبیکم اشارة الی الحدیث المذکور آنفاً، نو ابن عمر ﷺ چي ددغه یهودي خبره واورېدل کورته ولاړی او توره یې را واخستل او یهودي پوه سو او وتښتېدی، نو ابن عمر ﷺ وویل اما لو ادرکته لضربت عنقه، دده جاهل دا خیال و چي د آیت او حدیث د ټولو زمانو د یهودیانو لپاره دی، لکن داغسي نه ده بلکه داده هغو یهودو لپاره و چي له علیه السلام څخه یې عناد کاوه او د نبوت څخه د ده منکروه بعد ماعرفوه کماعرفو ابنائهم

**فائد مهمة**:- پوه سه چي قاضي ثناؤ الله یو فصل علیحده په تفسر مظهري کي تحقیق د تمنی د موت راوړی دی چي حاصل یې دادی.

**سوال**:- آیا رواه ده تمنی د مرګ او یا خواست د مرګ روادی؟

**فوائد**:- که سوال د مرګ په سبب د يو ضرب نازل و پر سائل باندي په مال کي او ياپه بدل کي او يا په اهل او عيال کي خو سوال د مرګ ندی روا، لحديث انس ﷺ الذي قد مر ههنا مفصلاً، هغه حديث متفق عليه د بخاري او مسلم دی. او په بل متفق عليه حديث کي داسي راغلي دي چي يو له تاسي څخه چي مړسي عمل يې قطع کېږي او عمر و سړي ته نه زياتوي مګر خير يعني فائده. ولې که ښکو کاره وي نو شايد د عمر په طول کي به نور حَسَنَات وکړي، او که ګناه کاره وي شايد په آينده عمر کي به توبه وکاږي، او له امامانو څخه د دين نهي د تمنی د موت له دغو کسانو څخه مروي دی، امام احمد بن حنبل، البزار، البيهقي او جابر بن عبد الله رحمهم الله او د مروزي څخه چي روايت يې قاسم مولی معاويه ﷺ کړی دی او د ابن عباس ﷺ او ابو يعلی او حاکم صاحب المستدرك او طبراني رح چي روايت يې د ام الفضل څخه کړی دی کلهم عن رسول الله ﷺ.

**فائده**:- تمنی د مرګ په ژبه سره او سوال د مرګ کول د دغو امامانو رحمهم الله په نيز ناروا دی، او هر تمنی د موت په زړه سره چونکه زړه د سړي په اختيار کي نه دی فلا تکليف بالنهي عنه. او که چېري تمنی د موت او سوال کول د مرګ په سبب د بيري د فتنې في الدين و فلا باس به، چنانچه په حديث کي چي مالك او بزاريې روايت کړی دی د ثوبان ﷺ څخه چي آنحضرت ﷺ به داسي دعا کوله. ﴿واذا اردت بالناس فتنة فاقبضني اليک غير مفتون﴾ او روايت کړی مالك ﷺ د امير المومنين عمر ﷺ څخه چي د په خپل دعا کي به داسي ويله اي الله زما قوة ضعيف سو او سن مي لوړ سو او رعيت مي په ټوله نړۍ کي سره خواره سوه فاقبضني اليک غير مضيع، راوي وايي چي دا دعا چي عمر ﷺ وکړه دغه

مباشرت نه سوه تېره چې حضرت عمر ﷺ په شهادت ورسېدی، او طبراني د عمر بن العاص ﷺ څخه روايت کړي دي چې عليه السلام وويل لايتمنى احدكم الموت الا ان لايثق بعمله "او كه تاسي وليدل په اسلام كي شپږ خويه نو تمنى د موت كوئ او كه روح ستا په لاس كي وي اله يي كړي.

(۱) ضائع والى دويني د مسلمان يعني ناحقه مسلمان وژل

(۲) امير والى د كوچنيانو يعني د نوي ځوانانو

(۳) ډېر والى د حكومت د پوليسو.

(۴) امارت د بې عقلانو انسانانو.

(۵) خرڅېدل د حكم يعني رشوتونه پر حكم الهي باندي اخستل.

(۶) نوي ځوانان چي قرآن مبارك به د رباب او د آلاتو د لهو او موسيقى پر وزم وايي.

او تمنى د موت د بعض سلف صالحين څخه راغلي ده په سبب د خوف د فتنو في الدين، رواه ابن سعد عن خالد بن سعدان او ابن عساكر وابو نعيم عنه وعن مكحول وابن ابي الدنيا عن ابي الدرداء وابن ابي الدنيا وابن شيبة والبيهقي عن ابي هريرة والطبراني و ابن عساكر عن العرباض بن ساريه وهؤلاء السادات الكرام كلهم ﷺ انما تمنوا الموت لخوف الفتنة في الدين.

**درويش وايي:-** چي تمنى د موت به په اوسني زمانه كي يعني ۱۴۲۵ھ كي څنگه نه وي روا! چي د ټولي اسلامي نړۍ په گوټ گوټ كي او په كور كور كي د فتنو باران شروع دى. او نه امارات سته په ټوله اسلامي نړۍ كي، او علاوه تر هغه په ټولو اسلامي ملكو كي د نصارى د قوانينو طرز حكومتونه كېږي او فحش او فحاشي او شراب خوري او نور منهيات د دين جاري دي او نصارى وو صرف براى نام يبو بت د

مسلمانانو د صدارتت پر چوکی کښېنولی دی، او حقیقتاً د حکومت واکي د نصاری وو په لاسو کي دي، د صدارت د چوکی بت هغه اختیار او قدرت نه لري او په عین حال کي خلک یعني برای نام مسلمانان په والرو خرڅوي که یې څوك نه مني د افغانستان پوره حالات دي وڅېړي او د پاکستان حالاتو ته دي هم نظر ولري او د عراق حالات دي هم له نظره نه باسي. الی غیر ذالک من الدول الاسلامیة الا ماشذ وندر،

البته طالبان د حقیقت دین اسلامي هم په هرځای کي موجود دي، اللهم اید الاسلام والمسلمین في جمیع الارض وارزقهم الغلبة والنصر علی اعداء الدین من الکفار والملحدین و معاوینهم في الضلال المبین برحمتک یا ارحم الراحمین،

حمیدالله غزنوي ﷫ وایي

چون بینم دین احمد در غریبی  دلم سوزم ز چشم خون جاری

او دا فتنه هم دا اوس عوامو ته او بعض علماء سوء ته یې هم تجاوز کړی دی، دوئ وایي چي زما عیش او نوش دي برابر وي اسلام که څه ابتر وي ، قال الله او قال الرسول خو ویل کېږي لکن لایجاوز حناجرهم، حتی چي بعضي امامان د مساجدو په عقوق د استاذانو لپاره د رضا د مقتدیانو مبتلا دي مقتدي ته د ډېري غوره مالي، څخه په وخت کي د سلام لاس پر سینه نسي.

چون کفر از کعبه برخیزد کجا ماند مسلمان

او بعض پېډالان چي د یوه مسجد او یا امام څخه د هغه مسجد قدیم یې په ناحقه خوا بده سي که څه هم د مسجد قدیم امام یې استاذ هم وي و څنګ ته د مسجد قدیم مسجد ضرار بناء کړي او

تفریق بین المسلمین پیدا کړي او یو عاق شده امام په هغه مسجد ضرار کي مقرر کړي

نو چي مسجد ضرار وي او ملا یې عاق وي د مقتدیانو بې څه حال وي خو عوام کالانعام سر نه خلاصوي

او ابن عساکر رحمه الله د ذوالنون مصري څخه روایت کوي چي یو بنده د محبت او شوق واعلی مقاماتو او اعلی الدرجاتو ته ورسېږي نو دي مرګ په تعجیل غواړي شوقاً الی ربه وحباً للقا ئه، قلت وهو المقصود من الیهود حیث قال لهم الله ﷻ ان کانت لکم الدار الاخرة عندالله خالصةً من دون الناس فتمنوا الموت، یعني شوقاً الی لقاء ربکم ان کنتم صادقین، وروي ابن سعد البخاري عن عائشة رضي الله عنها دا وایي چي ما د مخه د رسول الله ﷺ اورېدلي وه چي هغه نبي نه مري تر هغو چي د بقاء في الدنیا او د سفر د آخرت اختیار ورنه کړي یعني د الله ﷻ لخوا څخه نو څه وخت چي مرض د علیه السلام شدت ته ورسېدی نو علیه السلام داسي و فرمایل، مع الذین انعم الله علیهم من النبیین والصدیقین والشهداء والصالحین یعني انا معهم وحسن اولئک رفیقا، نو عائشه رضي الله عنها وایي چي زما ګمان سو چي علیه الصلواة والسلام ته اختیار ورکړل سو او د رفقاء مذکوره سره یې مرافقت اختیار کړي، او نسائي له عائشي رضي الله عنها څخه روایت کړی دی چي علیه السلام تعنی په وخت د ناجوړی، زما په غېږ کي پروت و او ما دده لاس پر ده تېراوه او دعاء د شفاء به مي کوله په دغو کلماتو اذهب الباس رب الناس، نو چي علیه السلام پر هوش راغلی داسي وویل او زما څخه یې لاس کش کړی بل انا اسئل الله الرفیق الاعلی

وروي الطبراني چي ملك الموت ابراهيم ﷺ ته راغلی چي روح يې قبض كړي، نو ابراهيم ﷺ عزرائيل ﷺ ته وويل "هل رئيت خليلاً يقبض روح خليله، آياتا ليدلی دی چي دوست د دوست روح قبض كوي نو ملك الموت بيرته خندي ولاړی او خدای ﷻ ته يې د ابراهيم ﷺ خبر ورکړي نو خدای ﷻ ورته وويل چي ابراهيم ته ووايه چي هل رئيت خليلا يكره لقا خليله. آيا تا ليدلی دی چي يو دوست دي د بل دوست ملاقات نه خوښوي؟ نو عزرائيل ﷺ چي دا خبره او پيغام الهي ابراهيم ﷺ ته ورسا وه قال ابراهيم ﷺ اقبض روحي الساعة، وايضا يوسف ﷺ، طلب د موت په دغو الفاظو سره وكړی توفني مسلماً والحقني باالصالحين

او بن عساكر په خپل تاريخ كي د حضرت علي كرم الله وجهه دا قول نقل كړی دی "لا ابالي اسقط على الموت او اسقط الموت علي، او طبراني ﷫ په تاريخ كبير كي دا قول د عمار بن ياسر ﷺ څخه رانقل كړی دی چي په جنګ كي د صفين يې داسي ويل الآن الاقي الاحبة محمداً ﷺ وحزبه، او ابن سعيد له حسن څخه نقل كړی دی چي حذيفه بن ايمان ﷺ په وخت كي د زكندن داسي وويل چي راغلی دوست يعني مرګ په وخت كي د ستړګي د رپ لا افلح من ندم .

**سوال**:- امام احمد د ابي امامة ﷺ څخه داسي روايت كريدی چي موږ يعني صحابه رضوان الله عليهم اجمعين يوه ورځ وعليه اسلام ته كښېناستو نو د مبارك ﷺ موږ ته داسي له تاثيره ډك نصيحت و كړی چي زموږ زړونه يې ډېر نرم كړه نو په دې موعظت

کـي سـعد بـن وقـاص پـه ژړا سـو او ډېـر يـې وژړل او دا يـې وويـل يالیـت مُـت، نـو نبـي ﷺ و د تـه داسـي وفرمايـل يـا سـعد اعنـدي تتمنـی المـوت" او دا جملـه يـې درې واره تکـرار کـړه نـو سـوال پيـدا کېږي.

**سوال**:- حديث خـو پـردې دلالـت کـوي چـې تمنـی د مـرګ بېلـه کـوم ضـرر پـه مـال او جسـم او عيـال او نحـو ذالـك هـم نـه ده روا ولـي چـې د سـعد اراده د دغـو اسـبابو پـر بنـا نـه وه بلکـه د خـوف د خدای ﷻ وه ؟

**جواب**: هـو! ژړا د سـعد ﵁ خـو د بېـري څخـه د عـذاب د خدای ﷻ وه لکـن چونکـه مـرګ خـو څـوك د عـذاب څخـه د خدای نـه خـلاص وي، نـو تمنـی د مـرګ بېفائـده وه نوځکـه آنحضـرت ﷺ نهـي خنـدي وکـړې بلکـه د عـذاب څخـه د خدای ﷻ اسـتغفار او سـعي پـه اعمـال صـالحه وو پرهېـز د ګنهـو څخـه پـه کـار دی، والتحقيـق چـې تمنـی د مـوت د بېـري څخـه د معصـيت د زياتېـدو او يـا لـه بېـري د تقصـير فـي الطاعـة خـو روا ده بېلـه شـکه، او تمنـی د مـوت پـه سـبب د شـوق ولقائـه د محبـوب حقيقـي ﷻ د سـلف رح څخـه پـه وخـت کـي د زکنـدن واقـع سـوي دي کمـا وقـع عـن رسـول الله ﷺ وعـن خليـل الـرحمن ﵇ وعـن عمـار وحذيفـه وغيرهـم پـه سـبب ددې وه چـې دوئ تـه چـي څـه وخـت مـرګ حاضـر سـو، او نـور يـې د ازيـاد د اعمـال صـالحه وو اميـد او طمـع قطـع سـول، نـو ځکـه د دوئ شـوق ولقـاء ذوالجـلال تـه زيـات سـو، او هغـه وينـاوي چـې مفصـلي تېـري سـوې د دوئ د مبارکو خولو څخه په تمنی کي د موت صادري سوي دي.

وفي هاشم الدفتر الاول من المكتوبات. للامام الرباني مجدد الف ثاني داسي راغلي دي چي د آنحضرت ﷺ د حيات په وخت کي يوه باديه نشينه سړي داسي بيتونه وويل او د عليه السلام چونکه ډير خوښ سوه نو هغه صحرائي يې په تکرار د هغو بيتو امر کړی خواږه محبوب بيتونه دادي

كل صبح و كل اشراقي — تبكي عيني بدمع شتاقي
قدلسعة حية الهوا كبدي — فلا طبيب لها و لاراقي
الا الحبيب الذي شغفت به — فعنده رقيتي و ترياقي

**درويش وايي**:- چي ددې بيتو څخه خوشبو د عشق حقيقي د رب جل وعلا شانه ته د عاشقانو رسېږي ولهذا امر ﷺ بتكرار، د عشق يو د تعجب ډك مقام دی چي د قلم په څوکه نه بيانېږي، او وجداني شی دی چي ببله حصوله د ژبي په کلماتوت سره يې درك د ماهيت نه کېږي.

قال الشاعر

وماحب الديارشغص قلبي — لكن حب من سكن الديارا

**وَلَنْ يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿٩٥﴾**

او دوئ يهود به تمني د مرګ هيڅ کله ونه کړي په سبب د هغو ګنهو چي د دوئ د لاسو څخه د مخه صادره سوي دي مراد د لاسو څخه د دوئ ځانونه دي وهذا مجاز شائع في العربية، چي هغه ګنهونه کفر په عليه السلام او کفر په قرآن دی، او تحريف د تورات دی الى غير ذالك مما مر الآيات السابقه، او خدای ﷻ بنه خبر دی په ظالمانو سره په خپلو بندګانو کي.

**پـوهـنـه**: چې په دې ایت کې تهدید و یهود ته دی او اظهار ددې دی چې دوئ په دې خبرو کې ظالمان دي.

**فائده**: په ایت کې "ولـن تمنوه الخ" اخبار الغیب او معجزه د قرآن ده، ولی د یهوو شان هم داغسې وچې تمنا د مرګ یې نه کوله.

**سوال**:- دوئ به تمنی کړې وه لکن تاریخ به نوي رانقل کړې؟

**جواب**:- چونکه دا تمنی ددوئ یو امر مهم و، ولې چې مدار د نبوت د علیه السلام پر دغه تمنی دی ولې که دا تمنی له دوئ څخه صادره سوې وای نو خبره د نبوت د علیه السلام له خطره سره مخامخ کېدل او پر تقدیر د عدم وقوع صدق د نبوت او صدق د قرآن پاك یقیني ګرځبدی، نو داسې مهمه خبره څرنګه د تاریخ له پاڼو څخه پاتېدله یعنې که دوئ تمنی د مرګ کړې وای تاریخونه د یهودو به ډك وای.

**سوال**:- تمنی خو فعل د زړه دی، نو څرنګه به معلومه سي چې دوئ تمنی نه ده کړې؟

**جواب**:- تمنی خو فعل قلبي نه ده چې پټ پاته سي بلکه تمنی قول د ژبې دی وهو ان یقول لیتني امت وعلی تقدیر التسلیم، که ددوئ په زړه کې تمنی د مرګ وای ددوئ به په خوله اظهار کړی وای چې زموږ په زړو کې تمنی د مرګ سته، وقالوا تمنینا بقولوبنا ولـم ینقل مـن احـد منهم ذالک فعلم ان تمنی القلب ایضا لم یقع منهم.

**فائده**:- د مفسرانو اختلاف په دې کې دی چې دا ایت مخصوص په یهود سره د عصر نبوي ﷺ دی او که د ټولو زمانو و یهودو ته عام دی د

حدیث څخه د ابن عمر ﷺ چي د مخه بیان سو صراحةً دا معلو مېږي چي دا ایت مخصوص په یهودو سره د عصر نبوي دی.

**فائده**:- درویش وویل وهذا مجاز شائع فـي العربیـة آه ددې مجاز تحقیق دادی چونکه ید او لاس یوه آلـه ده چي مخصوص پـه انسـان پوري ده او دلیـل د قـدرت دده ده، چـي عـام صنـائع انسـاني د لاسـو څخـه صادرېږي، او ډېر منافع د انسان هم د لاسو د لاري وي، نو ځکه لفظ ید کاهي کنایـه د نفسـه څخـه د انسـان ګرځي کما في هذا الآیة. او ګـاهي کنایه د قـدرت څخـه راځـي کمـا ورد فـي الحدیث النبوي ﷺ «یـدا الله ملأی الحدیث» وورد في القرآن بیدک الخیر" وایضاً بیـده ملکـوت ملکـوت کل شي الایة، ففي امثان هذه المواضع الید بمعنی القدرة یعنـي کنایـة عنها وقد مر ان لمثل هذ الکنایة في کلام العرب کثرة وشهرة لـم ینکرهـا معاند والقرآن.

**درویش وایي**:- چي سبب ددې کنایه په قرآن او حدیث کي او عدم الحمل علي الحقیقـة دادی انه تعالی منزه عن الجسمیة والاعضاء من الیـد والرجل والوجه وغیرها ومن لـوازم الجسمیة کالجهـة والمکـان والحرکـة وغیرها عند اهل السنة والجماعة

## وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ عَلَىٰ حَيَوٰةٍ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا

او هر آینه به ته پیدا کوې دوئ یعني یهودیان حـریص تـر خلکـو پـر ژوند او تر مشرکانو.

**فائده**:- وجدان ګاهي په حس سره وي نحو "وجدتُ زیـداً یمشـي اي ابصرته، نو متعدي وه یوه مفعول ته وي. او ګاهي په معنی د معرفت وي

نحو عرفت الله، نو هم متعدي ویوه مفعول ته کېږي، او ګاهي په معنی د علم وي نو پردې تقدیر متعدي وه دوه مفعوله ته ګرځي، په دې ایت کې وجدان علمي دی لذکر المفعولین له وهما هم واحرص دی.

**فائده**:- "حیواة" چې یې نکره راوړی ولې چې یو فرد دی چې مراد یې حیات الدنیا دی، او بعض مفسران وایي چې تنوین لپاره د تحقیر دی یعني الحیوة الخسیس وهي حیوة الدنیا ایضاً، او بیضاوي وایي چې تنکیر لپاره د تعظیم دی اي الحیاة المتطاولة، او په بعض قرائاتو کې معرفه راغلی دی وهو محتمل ما یحتمله النکرة، فتکفر.

**پوښتنه**:- اسم تفضیل خو په یوه استعمال کې په اضافت او په "من" دواړو سره نه مستعملېږي، او په دې ایت کې احرص الناس په اضافت سره دی او په معطوف کې په "من" سره دی یعني "ومن الذین اشرکوا، قاضي وایي رحمه الله ددې پوښتني په جواب کې داسې وایي هذا العطف محمول علی المعنی کانه قال احرص من الناس ومن الذین اشرکوا.

**سوال**:- مشرکین خو په ناس کې داخل وه نو د تخصیص د ذکر فائده یې څه ده؟

**ځواب**:- فائده د تخصیص یې داده چې مشرکانو خو ژوند د اخرت نه منی، نو خود به دوئ پر حیواة الدنیا ډېر حریص وه، او یا غرض تو بیخ د یهودو دی یعني تاسې خو حیواة الاخرت مني نو پر مشرکینو احرص علی حیواة الدنیا ولې یاست.

**پوښتنه**:- څه سبب دی چې یهود پر مشرکانو احرص دي د دنیا پر ژوند؟

**ځواب**:- مشرکان چونکه آخرت نه مني نود دوزخ عذاب خو هم نه مني، او یهود خو اخرت او عذاب النار مني او خپل اعمال سيئه چې اسباب د دخول النار دي في يوم القيامة دا هم ورته معلوم دي، نو ځکه دوئ ته د دنيا ژوند که څه هم د ډېرو کړاوو سره مخامخ وي جنت معلو مېږي.

**فائده**:- لام په لتجدنهم کې لپاره د قسم دی چې په نحو کې لام موطئه د قسم بولي او نون ثقیله لپاره د تاکید د قسم دی

**يَوَدُّ اَحَدُهُمْ لَوْيُعَمَّرُ اَلْفَ سَنَةٍ**

او خوښ لري يو له يهوديانو يعني هر يو ددوئ نو اضافة استغراقي دی، او جمله د يو ده آه. استينافيه ده لپاره د بيان د زيادت د حرص د دوئ يعني که ده ته عمر ورکړه شي زر کاله.

**پوښتنه**:- يود، خو فعل متعدي دی نو مفعول يې څه شی دی؟

**ځواب**:- مفعول يې "لو يعمر" دی او کلمه د "لو" په معنی د "ان" مصدري ده، او بعض مفسران رحمهم الله وايي چې مفعول د "يود" محذوف دی والتقدير "يود احدهم" طول حياته، او "لو يعمر" حال دی د لفظ د "احدهم" په تقدير د قول اي قائلا لو آه

**سـوال**:- پر تقدیر د قول خو هغه احد داسي وايي "لو اعمر آه" یعني په متکلم صیغه نو "یعمر" یې غائب صیغه څرنګه ذکر سوله؟

**ځـواب**:- هو حق خو متکلم صیغه وه لکن په مناسبت د "یود" غائب یې راوړی، روي چي یهود به یو بل ته وخت کي ملاقات داسي ویله عش الف سنه .

**درویش وایـي**:- چي د راز عمر په طاعت کي د خدای ﷻ نعمت دی د خدای او د راز عمر په معصیت کي د خدای سخط دی د خدای ﷻ، پیر انصاري رحمه الله در اخیر رساله خود چنان مینویشتند .

گر تو خواهي در دو عالم زندگي، بندگي کن بندگي کند بندگي یعني زندگي خوش خرم

کار کن تا مرد یابي برمزید که ترا از بهر این کار افرید

شاعر دیگر

چه خوش گفته ومروارید وجواهر را در شعر خود شخته

یاد داري روز زادن تو خلق خندان بودند وتو گریان

آنچنان زي که روز مردن تو خلق گریان باشند وتو خندان

**وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهِ مِنَ الْعَذَابِ أَنْ يُعَمَّرَ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿٩٦﴾**

**پوهـنه**:- چي کلمه د ما نافیه ده، او ضمیر د "هو" راجع دی و "احدهم" ته او کلمة "ان" مصدریه ده اي تعمیره، او ان یعمر فاعل د مزحزح دی والمعنی، نه دی دا أحد چي زر کاله عمر یې

خوښ وو لېږي کونکی دده لـه عذاب څخه د دوزخ تعمیر طویل دده، او خدای ﷻ دانـا او خبر دی په هغه شیانو چي دوي يې عمل کوي من الکفر والمعاصي.

**سوال**:- عمر طویل په اندازه د طول خو دویٔ د عذاب څخه د دوزخ لیري کوی یعني ترڅو چي دا عمر طویل نه وي تېر سوی دویٔ خو دوزخ ته نه ورځي فکیف حکم بعدم التبعید؟

**جواب**:- چونکه زر کاله عمر بلکه ټوله عمر د دنیا نسبت وطول ته د آخرت لکه يو ساعت د ورځي دی نو دا تبعید کانه لیس بتبعید ولي چي اصلاً تبعید خو هغه دی چي په ایمان او عمل صالح سره حاصل سي او دا طول عمر د يهو ديانو، لایزیدهم الاالعذاب فکانه لیس تبعید.

**فائده**:- بمزحزح اګرچه خبر د ماحجازیه دی او په محل کي د نصب دی، والمزحزحة التبعید.

**فائده**: اصل د "سنت" سنوة و، ناقص واوي محذوف اللام دی بقرینة ان جمعه سنوات، او بعض اهل لغة وايي چي اصل يه سنهة دی محذوف اللام لا نه قد سمع في جمعه سنهات ایضا کجبهة وجبهات.

حاصل د آیت دادی چي طول عمرسره د عمل صالح نعمت الهي دی کما ورد في الحدیث النبوي ﷺ طوبی لمن طال عمره وحسن عمله، او طول عمر سره له اعمال سیئه وو سخت الهي دی

**فائده**:- ټوله امت بلکه ټوله حکما پردې متفق دی چي موت لره سن معلوم نسته او نه اجل معلوم او نه مرض معلوم سته په

دي کـي حکمت الهـي دادی چې بایـد مسـلمان پـه هـر وخـت کـې د مـرګ لپـاره امـاده بـاش وي، او د مـرګ څخـه غفلـت نـه دی پکـار، یوشاعر وایي

بانګ طبلت نمی کند بیدار   تو مگر مرده نه در خوابی

تو چراغی نهاده در ره باد   خانه در سمر سیلا بی

روح البیـان د شـارح الخطـب او هغـه د وهـب بـن مبینـه څخـه دا یـوه عجیـب قصـه رانقـل کـړې ده چې دانیـال ﷺ پـه یـو لـوی دښـت کـې روان و چـې دِغ پـر وسـو قـف یـا دانیـال! عجیـب بـه ووینـې دانیـال ﷺ شـا وخـوا وکتـل څـوک نـه وه نـو بیرتـه رهـي سـو، دوهمـه نعـره بیـا پـر وسـوه دانیـال وایـي چـې نـو زه ودرېدم یـو خونـه مـې ولیدلـه اواز د قـف د خـوني لخـوا څخـه و، نـو زه ورغلـم او د هغـې خـوني دروازه قلـف وه او زمـا پـه ورتـګ قلـف خـلاص سـو کـه څـه ګـورم د ننـه پـه خونـه کـي یـو پلـنګ پـروت دی چـې ملغلـري او جواهرات پوري خړیدل، نو د پلنګه څخه اواز وسو اصعد یـا دانیـال تـر عجیبـا نـوزه پلـنګ تـه وربوتـه سـوم د پلـنګ تختـه د سـرو زرو وه او مشـك وغیـره پـر پاشـلي وه پـر پلـنګ بانـدي یـو خـوان مـړ پـروت و سـرې چـې ویـل بیـده دی، او پـرده زیـورات دونـه ډیـر وه چـې بیـان یـې نـه کېـږي، او د چپـه لاس پـه ګوتـه یـې ګوتمـی د سـرو زرو موجـوده وه او پـر سـر یـې تـاج د سـرو زرو و، او پـر کمـر بنـد یـې یـو داسـې شـنه تـوره وه سـرې چـې ویلـه د بلګـو څخـه د درختـې یـې جـوړه کـړې ده نـو د پلـنګ لخـوا اواز وسـو چـې دا تـوره درواخلـه هـر څـه چـې پـر نوشـته وي هغـه ووایـه، دانیـال ﷺ وایـي چـې پـر تـوره دغـه تـوري نوشـته وه" وهـذا السیـف لصمصـام بـن عـوج بـن عنـق بـن ارم" او مـایو زر اوه

سوه (۱۷۰۰) کالــه عمــر تیــر کــړی دی، او د دوولــس زره (۱۲۰۰۰) بــاکرو ښځــو بکــارت مــا زائــل کــړی دی، او څلویښت زره (۴۰۰۰۰) ښاره مي جوړ کړي دي ما تولــه عمــر پــه ظلم او جبر او بېعقلی سره تیر کـړی دی او زمـا د خزانـو کیلی څلـور سـوه (۴۰۰) غـاترو وړې، او ماتـه خراج د ټولي دنیـا راتلی، او پـه ګـرده دنیـا کـي مـي مقابل او منازع نـه و، نـو مـي دعـوه د خـدایي وکړه اخر الامـر د لـوږي څخـه پـه دې دښت کي مړ سوم.

**ترویښځ وایي**: چي ګمان کېږي دا تـاریخ پـر تـوره د هغـه پس مانـدګانو نوشته کـړی وي انتهی، والله اعلـم بحقیقــة الحــال وصدق هذه القصة.

قال السعدي الشيرازي رحمه الله

چون همه نیک و بد بباید مرد | خنک آن کس که گوئي نیکي برد
برگ عیشي بگور خویش فرست | کس نیارد پس به پیش فرست
عمر برف است آفتاب تموز | اندکي مانده وخواجه غره هنوز

**فائده**:- پـه حدیث نبوي ﷺ کـي راغلي دي چي څه وخت چي نبـي ﷺ مـدینې منـورې تـه هجـرت وکـړی، نـو عبـدالله بـن صوریا د ملایـانو څخـه د یهـودو وو، او پـه فـدک کـي اوسیدی و علیـه السلام تـه راغلی، او و یـې ویـل چـي زه سـتا څخـه څـو پـوښتني کـوم سـتا د نبوت د امتحان لپاره؟

(۱) ستـا خـوب څرنګـه دی چـي مـوږ تـه د نبـي آخـر الزمـان د خـوب خبر راکړه سوی دی، قـال تـنام عینـاي وقلبـي یقظـان یعنـي سـترګي مي بیدېږي، او زړه مي ویښ وي بیا ابن صوریا ورته وویل.

(۲) چي راتــه ووايــه عيــال د نــر لــه نطفـي څخـه جوړېږي او كـه د ښځـي د نطفـي څخـه؟ عليـه السـلام ورتـه وويـل چـي اډوكـي، پلـې او رګونـه يـې د نـر د نطفـي څخـه جوړېږي، او وينـي ، غـوښـي ، نوكـان او ويښتيــان يـې د ښځـي د نطفـي څخـه پيـدا كېـږي، ابـن صـوريا ورته وويل "صدقت" اوبيا ابن صوريا ورته وويل.

(۳) راتـه ووايــه چـي ولـي عيـال ګـاهي وپـلار او اكاګـانو تـه يـې رنـګ سـوى وي، چـي د مـور او مامـا ګـانو هـيڅ نخښـه پكښـي نـه وي او ګـاهي بـاالعكس؟ عليـه الصـلواة والسـلام ورتـه وويلـه چـي د هـر يـوه د مـور او پلار نطفه چي غالبـه سي عيـال و هغـه تـه پـه رنـګ كـي كېږي، ابن صوريا ورته وويل "صدقت.

(۴) بيـا ابـن صـوريا ورتـه وويـل چـي راوښيـه چـي كـوم طعـام و چـي اسـرائيل يعنـي يعقـوب ﷺ پـر ځـان حـرام ګرځـولى و؟ نـو نبي ﷺ ورتـه وويـل چـي يعقـوب ﷺ يـو وخـت سـخت مـريض سـو نـو يـې پر ځـان نـذر كـړه كـه زه خـداى ﷻ جـوړ كـړم نـو پـر مـا حرامـي دي هغـه ښـې غـوښي زمـا پـه خيـال او هغـه ښـه د ښـوو شـيانو و ماتـه يعنـي داوښ غوښي اوشيدي.

(۵) بيـا ابـن صـوريا ورتـه وويـل چيـي اول خـوراك د اهـل الجنـت بـه د څـه شـي څخـه وي؟ نوعليـه السـلام ورتـه وويـل د اينـي زړه څخـه د ماهي ابن صوريا ورته وويل" صدقت".

(۶) ابـن صـوريا ورتـه وويلـه چـي زمـا اخـري سـوال كـه دي راحـل كـړى زه پرتـا ايمـان راوړم خـداى ﷻ لـه خـوا تاتـه كومـه ملكـه وحي راوړي؟ عليـه السـلام ورتـه وويـل چـي جبرئيـل ﷺ .ابـن صـوريا وويـل چـي جبرئيـل ﷺ خـو زمـوږ د يهـودو دښمـن دی، او ملكـه د

عذاب ده او ملکه د جنګو ده زموږ محبوبه ملك میکائیل دی چې ملکه د رحمت او بارانو ده او د بشارت ده، نو عمر ﷛ ابن صوریا ته وویل "ماعداوة جبرئیل لکم" ابن صوریا ورته وویل چې جبرئیل ﷺ خو ځو واره د دښمنۍ کارونه کړي دي، او تر ټولو سخت ترین عداوت یې هغه و چې خدای ﷻ و موسی ﷺ ته وحي وکړې چې بیت المقدس به بخت نصر بابلي خراب کړي، او هغه وخت یې هم وروښود چې په فلاني وخت کې به خرابوي، نو څه وخت چې هغه تاریخ رانژدې سو نو موږ یو ډېر قوي سړی د بني اسرائیلو بابل ته واستاوه په طلب کي د بخت نصر چې پیدا او مړ یې کړي، نو هغه اسرائیلي هغه بخت پیدا کی یو خوانکی مسکین سړی و چې هغه قوت او تابعان یې نه درلوده، نو اسرائیلي بخت نصر ونیوی او ګوښه یې کړی چې مړ یې کړي، نو بخت نصر بابلي جبرئیل ﷺ ځنې خلاص کړی، او زموږ اسرائیلي ته یې وویل که دا خوان مسکین بخت نصر هغه بخت نصر وي چې پر تاسي به مسلطېږي او بیت المقدس به خرابه وي نو ته د هغه وژلو ته هیڅ لار نه لري او که دا خوان هغه نه وي نو خو مرګ یې ناحقه دی، او زموږ اسرائیلي هم د جبرئیل ﷺ خبره ومنله او بخت نصر یې خوشې کړی هغه پس له خوشي کېدو قوة پیدا کړی او ډېر تابعان یې پیدا کړه او ډېر ځایونه یې قبضه کړه اخر الامر یې پر موږ مخ د جنګ راواړوی چنانچه په زرو بني اسرائیل یې په قتل ورسول او بیت المقدس یې ټوټې ټوټې او خراب کړی، او بل جز یې د عداوت دا دی د جبرئیل ﷺ، ابن صوریا وعمر ﷛ ته دا قصه کوي، چې خدای ﷻ جبرئیل ﷺ ته

وویله چې نبوت په بني اسرائیلو کې مقرر کړه ده زمونږ د عداوت له سببه وحې و محمد ﷺ ته ورورې فلهذا اتخذناه عدواً او میکائیل ﷺ هم د جبرئیل ﷺ سره عداوت لري .

نو عمر ﷺ وابن صوریا ته وویله چې دا جبرائیل ﷺ او میکائیل ﷺ څه منزله لري د خدای ﷻ سره؟ ابن صوریا ورته وویله چې دواړي ملکي مقربي د خدای ﷻ دي، نو عمر ﷺ وه ابن صوریا ته وویل که ستا خبره صحیح وي چې دوئ دوې ملکي مقربي د خدای ﷻ دي، نو ددې دوو ملکو تر منځ هغه عداوت نشته نو دغه آیت نازل سو .

قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللَّهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٩٧﴾

ته ورته ووایه اي محمدﷺ چې هغه څوک دښمن وي د جبرئیل ﷺ نو جبرئیل ﷺ نازل کړی دی قرآن ستا پرزړه په اجازت د خدای ﷻ په داسې حال چې دا قرآن تصدیق کونکی دی هغه کتاب لره چې د مخه تردې یعني تورات مثلاً او دا قرآن کریم هدایت دی او زیری دی د مؤمنانو لپاره.

**پوښتنه**: من موصوله مبتداء ده په معني د شرط او جواب په ظاهراً فانه نزله دی نو په شرط او جزاء کې خود لازمه چې شرط دی سبب د جزاء وي او دا معلومه خبره ده چې عداوت د جبرئیل

ﷺ خو سبب ددې نه دی چې دا قرآن نازل کړي علی قلبك آه والجواب علی ما في البیضاوي والحاصل چې اصل جواب فانه نزله نه دی بلکه دا قائم مقام الجواب دی

واصل الجواب دادی چې دغه یهودي مبغض تناو د انصاف له غاړې وکښې، او یا دغه یهودي کافر سو بما معه من الکتاب یعني لان الکفر بالمصدق للتورات کفر بالتوراة. نو دوئ چې عداوة د ملك منزل باالقران سره کوي عین عداوت دی د خپل کتاب سره ولې ددوي د کتاب وحي خو هم دغې ملکي جبرئیل راوړي دي، او یا جواب د "من کان آه" محذوف دی یعني من کان عدوا آه فهو عدوا لي وانا عدوله کما یدل علیه الکلام الآتي وقیل غیر ذالک من الاجوبة.

**سوال**:- ضمیر د "فانه" خو قرآن ته راجع دی، او قرآن د مخه نه دی ذکر سوی نو اضمار قبل ذکر المرجع نه لازمیږي؟

**جواب**:- ټولو مفسرینو رح په یوه خوله دا جواب ورکړی دی چې قرآن د جهت د غایت شهرت ګویا مذکور في العبارة دی اولا القرآن لکونه مرکوز في قلوب المؤمنین کانه مذکور.

**فائده**:- خدای ﷻ دلته د علیك پر ځای لکه په نورو آیاتو کې د قرآن مبارك چې راغلي دي دلته علی قلبك ویل لپاره د تنبیه پر دې او تصریح په دې سره چې قابل اول د قرآن زړه دی لانه محل الفهم والعلم.

**فائده**:- هدی وبشری" عطف پر مصدقاً دی لکه هغه چي حال دی دا دوهم حال دی له ضمیر څخه د نزله چي قرآن ته راجع و لکن حمل یې پر ذو الحال مبالغةً دی مثل زید عدل .

مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلَّهِ وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ وَرُسُلِهِۦ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَىٰلَ فَإِنَّ ٱللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَٰفِرِينَ ﴿٩٨﴾

او هغه څوک چي دښمن وي د خدای ﷻ او د ملکو د خدای ﷻ او رسولانو د خدای او د جبرئیل او میکائیل نو په تحقیق خدای ﷻ دښمن دی د کافرانو یعني ددغو عداوتو تر مابین تلازم په کفر کي دی .

**پوښتنه**:- چي ذکر د جبرئیل او میکائیل سره د دخوله د دوئ په جمله کي د ملکو لپاره د فضل ددوئ دی پر نورو ملکو، نو ګویا دوئ بل جنس دی، او بل دادی چي خبره په دې دو ملکو کي وه، او بل لپاره د تنبیه پر دې چي په عداوت کي د خدای ﷻ د یوې او تولو ملکو فرق نسته .

**پوښتنه**:- چي خدای ﷻ په ځای کي د "فان الله عدوا لهم" بارجاع الضمیر الی من نظراً الی معناه ولي من په معنا کي د جمع دی داسي وویل "فان الله عدوا للکافرین" یعني اسم ظاهر یې راوړی لپاره د دلالت پر دې چي عداوت د خدای ﷻ ددوئ سره په سبب د کفر ددوئ دی .

**پوښتنه**:- کلام سابق خو په جبرئیل او میکائیل کې و په دې ایت کې خدای ﷻ خپل عداوت او د عمومي ملکو عداوت او د رسولانو عداوت هم ذکر کړی دی دغه حکمت لپاره؟

**ځواب**:- لپاره د اعلام په دې سره چې دا تولو عداوتونه یو بل لره مستلزم دي - درویش

تفسیر مظهري وايي چې ابن حاتم په سند د سعید او عکرمه د ابن عباس ﷺ څخه داسې روایت کړی دی چې ابن صوريا وعلیه السلام ته داسې وویل ما جئتنا بشيئ نعرفه، تا موږ ته یو داسې شی نه دی راوړی چې موږ په ویوهېږو یعني ستا نبوت په وپېژنو نو دا آیت نازل سو.

وَلَقَدْ أَنزَلْنَا إِلَيْكَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ وَمَا يَكْفُرُ بِهَا إِلَّا الْفَاسِقُونَ ﴿٩٩﴾

**پسوونه**:- چې لام موطئه دقسم دی او "قد" لپاره د تحقیق دی یعني والله په تحقیق سره موږ وتاته نازل کړي دي آیات قرآنیه چې واضحات الدلالة دي ستا پر نبوت ولي چې د قرآن آیتونه موافق د هغه نخښو سره د تورات دي چې د نبي آخر الزمان په باره کې بیان کړي دي، او بل دا چې آیات قرآنیه په خپل ذات کې معجزه ده لقوله تعالی.

﴿ ان کنتم في ریب مما نزلنا على عبدنا فاتوا بسورة من مثله الایة﴾ او بل خای وايي ﴿ قل لو اجتمعت الانس والجن على ان یاتوا بمثل هذا القرآن لا یاتون بمثله﴾ الایة، او کفر نه کوي په ایاتو د قرآن مګر هغه قوم چې فاسقان وي .

پښتو معنه:- چي فسق چي په یوه ګناه استعمال سي مراد څندي اعظم د انواع د هغې ګناه دی نو دلته خو فسق په کفر کي مستعمل سو، نو مراد څندي هغه کافران دي چي په کفر کي انتهائي درجې ته رسېدلي وي.

فروپښش وایمې:- چي په لحاظ د شان نزول دا مناسب دی چي الف لام د "الفاسقون" لپاره د عهد دی یعني مراد څندي یهودیان دي لکن یحتمل الجنس والیهود داخلون فیه.

پښتو معنه:- چي قرآن مبارك نور الهی دی چي جوړ او ناجوړ معلومه وي نو مثال د قران داسي دی لکه چي په یوه تاریکه خونه کي عیب ناکه خلق او بې عیبه خلق دواړ موجود وي او یو سړی هغې خوني ته یو ډېر روښانه څراغ راوړي نو هغه کسان چي عیب جن وي کوشش کوي چي هغه څراغ مړ کړي تا چي ددوئ عیب ونورو کسانو ته چي په داخل البیت کي ددوئ سره دي یعني معلوم نه سي، نو دغه یهودیان د عصر نبوي ﷺ چي په ډېرو عیبو د کفر معیوب وه او هغه عیبونه ددوئ چي دوئ ډېر پټ ساتلي وه قرآن څراغ الهي په ډاګه او رسوا کړه او دنیا یې ددوئ د کفر په عیبو خبره کړه نو دوئي څکه د څراغ الهي په وژلو کي په انواعو د مکر او حیلو کوشش کاوه چي دا نور الهي د مابین څخه یوسو لکن دا خیال است ومحال است وجنون، قال الله تعالی ﴿یریدون لیطفئو نورالله بافواهم الایة﴾ وقال عز وجل والله متم نوره ولو کره الکفرون وقد کان اراد الله عزوجل ولم یبق في ایدی الیهود وسائر اعداء القران الاالفضاحة والخجالة الی یوم القیامة وفي الیوم المذکور یضفحون علی روس الخلائق من اولهم الی اخرهم والحمد لله.

# أَوَكُلَّمَا عٰهَدُوْا عَهْدًا نَّبَذَهٗ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ

**پوښتنه**:- چي همزه لپاره د انکار دی په معنی ددې چي بايد داسي دوئ نه واى کړي يعني نقض عهديې نه واى کړی او کلمه د واو لپاره د عطف ده پر محذوف تقديره اکفروا بالآيات وکلما عاهدوا الخ. فالانکار على الکفر بالآيات ونقض العهد کليهما. او په قرائت شاذه کي په سکون د واو هم راغلي، نو يې معنى داسي ده الا الذين فسقوا وکلما عاهدوا الخ

**فائده**:- "فريق" ولي وويل سو لان بعضها لم ينقض العهد لکن چونکه توهم ددې به چا کاوه چي "نابذون" د عهد به لږ کسان وه قال الله تعالى "بل اکثرهم لايومنون"

**ترجمه** آيا هر وخت چي وعده وکړي يهوديان د خداى ﷻ او ياد رسول ﷺ سره د خداى ﷻ نو يوه ډله ددوئ هغه وعده وغورځوي يعني ماته يې کړي بلکه اکثر ددوئ ايمان نه راوړي ناقضين د عهد الله يې ډير کسان دي.

وَلَمَّا جَاءَهُمْ رَسُولٌ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُصَدِّقٌ لِمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيقٌ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ كِتَابَ اللَّهِ وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ كَأَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٠١﴾

او هر وخت چې دوی ته به راغلی يو رسول په جانبه د خدای ﷻ يعني عيسی او موسی او محمد عليهم السلام چې هغه رسول تصديق کونکی ؤ د هغه کتاب چې ددوی سره به موجود ؤ يعني التورات، نو به غوځاوه يوې ډلې د هغو کسانو چې دوی ته کتاب ورکړل سوی ؤ يعني اليهود کتاب د خدای ﷻ يعني التورات د شا له خوا.

**پوه سه:** چې تر شا غورځول کنايه ده له عدم عمل څخه د بما في التورات، ولې که دوی عمل په تورات کولای نو پر دغو دواړو نبيانو به يې ايمان راوړی وای ولې چې په تورات کي دوی ته وصيت کړل سوی ؤ چې پر نبي چې مؤيد بالمعجزات وي تاسي ته راسي تاسي به ايمان پر راوړئ. نو د يهودانو ايمان نه راوړل پر عيسی او محمد عليهما السلام باندې ګويا غورځول دي د تورات د شا وخواته والجامع عدم الالتفات د دواړو يعني تورات والمرمي وراء الظهر.

او دوی د ډېر عناد څخه ځانونه داسي واچول چې موږ په دې نه پوهېږو چې دا کتاب الله دی.

**پوه سه:** چې جمله د "کانهم لا يعلمون" حال دی د "الذين اوتوا الکتاب" څخه ای متشبهين بمن لا يعلم انه کتاب الله يعني المشرکين.

فائده:- د اصل اليهود څلور فرقه دي يوه ډله هغه دي چي عمل يې په تورات کاوه چي هغه مومنين د اهل کتابو دي لکه عبدالله بن سلام ﷺ او دغه ډله ډېره کوچنۍ ډله وه چي په هغه آيت کي اشاره ورته وسوه "بل اکثرهم لايومنون" او بله ډله يې مجاهر کافران د يهودو وه چي تمرداً وعناداً وفسوقاً يې کفر کاوه وفي الفريق کثرة چي په دې آيت کي چي نبذ فريق اشاره ورته وسوه او بله ډله يې هغه کسان ددوئ وه چي ظاهراً يې عمل کاوه لکن خفيةً يې عمل نه کاوه ﴿ وهم المتجاهلون﴾

فائده:- د جاهل في الواقع او د تکلفي متجاهل حکم سره يو دی په کفر کي نو په مسلمانانو کي هغه عالم چي په خپل علم عمل نه کوي حکم د جاهل لري بلکه اسوء حالاً دی تر جاهل ولي چي جاهل قد يعذر، ولذا قال النبي عليه الصلواة والسلام واعظ اللسان ضائع کلامه والمراد باالعالم الغير العامل بعلمه وواعظ القلب نافذ سهامه، والمراد به العالم العامل بعلمه .

فائده:- علماء وايي چي پښېماني څلور قسمه ده، يوه پښېماني دورځي ده لکه يو سړی چي سهار کور ناری ونه کړي او يو خواته ولاړ سي او هوري وږی سي، او بله پښېماني د کال ده لکه يو سړی چي په وخت کي د کښت کښت ونه کړي نو دی پر دې عمل ټوله کال پښېمانه وي، او بله پښېماني د ټوله عمر ده لکه يو سړی چي بد عمله او بې شرمه ښځه په نکاح کړي، او بله پښېماني ابدي ده چي سړی پر کفر باندي مړ سي.

فائده:- يو طبيب چي د طبو په کتابو ښه پو هېږي او دی په خپله مريض وي نو ده ته صرف مطالعه د طبو د کتابو هيڅ فائده نه کوي تر څو چي دی خپل علاج د کتابو څخه ونه کړي، دغه رنګه يو عالم چي په

علم عمل نه کوي، نو په ظاهره قال الله قال الرسول به وده نه چندان فائده ونه کړي.

**مهمه فائده**:- پوه سه! چي زده کړه چي په عربي يې علم بولي او په پښتو يې پوهنه هم بولي هغه شی د هغه ممنوع او مهجور او مکروه نه دی الا هغه علمونه چي دوحي اسماني او د علم قرآني او د سنت نبوي ﷺ څخه مخالف وي لکه علم طبعي د حکمتو چي په هغه کي اثبات د هيولي او صورت کوي، او پرهغه قدم د عالم بناء کوي، او نفي د حشر جسماني کوي، او ثواب د عذاب جسماني په ورځ د قيامت هيڅ نه مني الى غير ذالک من خرافات ذالک العلم فلا ريب في منع تعليمه وتعلمه الا انيکون ذالک لمقابلة تلک الخرافات بالادلة العقلية والنقلية وتصفية اذهان المؤمنين من تلک الادناس الخبيثة فيکون ح ء کتعليم الادوية السمية في الطب يعني لدفع ضررها، او بل لکه علم الهي د حکمتو چي د هغو مبنى پر دې ده چي خدای ﷻ فاعل بالايجاب دی يعني ببله اختيار او ارادې او په دغه علم کي ملائکه مجردات د جسميت څخه بولي او اثبات د عقولو عشرة ووکوي، او خدای عظمت قدرته يوازي او يوازي خالق د عقل اول بولي وبس، الى غير ذالک من المسائل لذالک العلم التي تنافي الشريعة الغراء بل عن الکتب الالهيه باسرها، و اما الهندسة والحساب من الحکمة فليس في مسائلها شيٌ يخالف الشريعة المطهرة بل فيهما نفع في الامور الدينية والدنيوية کما لا يخفى على من زاول مسائل ذينک العلمين الاصلية، واما علم الکلام للمتاخرين فهو ايضاً من قبيل العلم الالهي للحکما، او بل د ممنوعه عملو څخه علم هيئت دی چي اوس يې طالبان د رياضي په نامه سره يادوي ولي دا علم بناء دی پر قدم د اسمانو او د ستورو او پر عدم قبول د خرق او التيام پر اسمانو ويخالف صريحاً



Scanned by CamScanner

لقوله تعالی ﴿يوم نطوى السماء كطي السجل الآية﴾ او دغه رنګه دوئ وايي چي اسمانونه يو په بل پوري متصل دي المنافي لصريح الاحاديث النبوية الصحيحة، وايضاً بناء على اصولهم يصير المعراج الجسماني لرسول الله ﷺ ممتنعاً كما لا يخفى، او بل د علمو مهجوره څخه علم النجوم دی چي د او ضاعو څخه د قرب او بعد د ستورو دليل پر حوادثو آتيه د دنيا وايي لکه قحط سالي جنګونه او نور ددې قسمه حوادثو، په يوه حکايت کي راغلي دي چي يو سړي نصرالدين الطوسي چي يو معروف حکيم دی دېو ولي الله وه زيارت بوتلی نو هغه سړي چي همرا د طوسي و د طوسي معرفت يې وه ولي الله ته په دغه الفاظو سره وکړی هذا عالم الدنيا نصر الدين الطوسي، ولي الله ورته وويل چي دی څه کمال لري ملګري د طوسي ورته وويل چي دی عديل او مقابل په علم النجوم کي په ټوله دنيا کي نه لري ولي الله ورته وويل چي سپين خر تر ده اعلم باالنجوم دی.

طوسي ته پر دې اهانت انګېزه خبري ډېر درد ورغلی او ملګري سړي ته يې وويل چي درځه چي خو هغه ورته وويل چي اوس مازديګر دی کورته نه سو رسېدلای شپه به دلته د شيخ سره وکړو لکن طوسي چي د غضب څخه لبريزه و، ودې ته تېنګ سو چي خو به شپه به پر لاري وکړو خير د شيخ څخه يې په مات زړه رخصت واخستی او رهي سو خو مابنام يوې ژرندي ته ورسېدله، او فيصله يې وکړه چي شپه به په دې ژرنده کي تېروو اسيابان (ژرنده ګرى) د ژرندي خپل خواړه ورسره شريک کړه، نو چونکه د پسرلي بنه هوا وه طوسي او ملګري دا فيصله وکړه چي تر ژرندي دباندې بيده سي لکن اسيابان ورته وويل چي نن د باران لويه خطره سته دننه پربوځئ چي د سخت باران له کبله به مو کالي لانده سي طوسي ورته وويل چي ته څه خبر يې چي نن شپه باران کېږي! اسيابان ورته وويل چي دغه زما سپين خر چي د باران موسم وي درې واره لکی اسمان ته پورته کړي نو د باران خطره نسته او که يې درې واره

لکي د مڅکي وخواته وښوروله باران کېږي، ټن خره د مڅکي خواته لکۍ ښوروليٰ ده نو طوسي حیران سو او دننه پرېوتله مابښام سخت باران شروع سو نو د طوسي هغه د غضب اور سوړ سو او د ولي الله خبره يې کرامت انګېره وبلله ،

واما عد بعض الفقهاء المنطق ايضاً من العلوم المهجورة الممنوعة فليس يصح لان المنطق هو الكليات الخمس الجنس والفصل والنوع والخاصة والعرض العام وليس فيها شيء يخالف الشريعة المطهرة ثم يتركب منها القول الشارح من الحد التام والناقص والرسم التام والناقص وهذا التعاريف كثيرة شهيرة في كتب الفقه والاصول مثلاً يعرفون الغسل والمسح والوجه واليد ويعرفون الخاص والعام والمجمل ايضاً لا يخالف الشريعة الغرا ومن المطلق مبحث القضايا كالموجبة الكلية مثل ان الله بكل شئ عليم، والسالبة الكلية نحو قوله تعالى ليس من الامر شئ وهكذا الموجبة الجزئية والسالبة الجزئية وهذا ايضاً لا يصادم الشريعة بل الآيات القرآنية ومسائل الفقهاء والاصول لاتخرج عن هذه القضايا ثم يتركب من تلك القضايا القياس والحجة وليس في اقسامها مخالفة الشريعة، الاترى ان قوله تعالى ﴿لوكان فيهما آلهة الا الله لفسدتا﴾ حيث ورد على نهج القياس الشرطي الاستثنائي، فاستثنى فيه نقيض التالي ينتج نقيض المقدم، وهكذا الاقيسة الآ خر وجميع اصول الفقه والفقه والعقائد الدينية لاتكون خارجة عن انواع القياسات المذكورة في المنطق ففي اي مبحث من اصل المنطق مخالفة للشريعة، نعم بعض شارحي كتب المنطق مثل السيد الزاهد وتلميذه القاضي محمد مبارك خلطوا في شروحهم بعض مسائل الطبعي مثل قدم العالم ومسئلة وحدة الوجود وعينية صفات الباري تعالى وغير ذالك فلذالك صار علم المنطق متفوراً عند المتشرعة وليس هذا من النقص في اصل المنطق بل النقص فيماخلط الشارحون في بعض الشروح اظهاراً لفضلهم

**څرونیش واېږي:**- چي زده کړه د اکسابو دنیویـه لکه نجاري، بنایي، رنګ مالي، موچړ سازي، بایسکل سازي، الی غیر تلك الاسباب المروجة چي هغه ټوله مباح دي بلکه په بعض حالاتو کي مستحب بلکه واجب ګرځي لکه دعیال د نفقې لپاره، او دغه رنګه توپك جوړول یا کلاشنکوف جوړول وغیرها من الاسلحة حتی الطیارات وغیرها، مباح والی خو یې پرېږده بلکه زدکړه یې واجب کفایي ده لقوله تعالی ﴿ واعدولهم مااستطعتم الآیـة﴾ او په بخاري او مسلم او نورو کتابو کي د احادیثو مبارکو راغلي چي رسول الله ﷺ صحابه کرام ﷺ باعثه کول پر زده کړي د تیر اندازۍ او اسپ دوانۍ نو مسلمانانو باید چي په نیت د جهاد د کفارو سره صناعات مذکوره زده کړئ، او په صحیح حدیث کي راغلي دي چي د یوه غشي په سبب یعني په مذکوره نیت سره دري کسه خدای ﷻ جنت ته داخل وي، (۱) جوړونکی (۲) رانیونکی (۳) ویشتونکی .

**څرونیش واېږي:**- چي داو تحقیق د زده کړي او پوهني. وقد بقی بعد خبانا في زوایا هذا المقام والله الموفق لاصابة الاقلام في بیان حقیقة کل مقام.

## وَاتَّبَعُوا

یعني الیهود، یعني یهودیانو متابعت او عمل شروع کړی په ځای کي د متابعت د کتاب الله چي تورات و .

**پوه ښه:**- چي بعض مفسران رح "واتبعوا" عطف بولي پر "نبذ فریق" باندي نو معنی یې داسي کوي ( اي نبذوا کتاب الله واتبعوا کتب السحر: وهذا العطف عندي لیس بصحیح) ولي چي نبذ خو جزا ده "لما جائهم آه" نو معنی د آیت داسي ګرځي،، (ولما جائهم رسول من عند الله نبذ فریق

آه) واتبعوا" نو باید دا متابعت دکتب السحر مقیدپه راتگ سره د رسول الله ﷺ وي او سره ددې چي دا متابعت د کتب السحر دوئ تر مجیئ د رسول د مخه لاشروع کړی وه نو صحیح اعراب دادی چي "واتبعوا" عطف دی پر مجموع شرطیه، کما في قوله تعالی اذا جاء اجلهم لا یستاخرون ساعة ولا یستقدمون چي "لا یستقدمون" عطف دی پر مجموع شرط او جزاء او پر یوازي جزاء چي "لایستاخرون" دی عطف نه دی ولي پس له مجیئ الاجل خو استقدام ممکن نه دی کمالا یخفی علی اولی النهی

## مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ

د هغو کتابو چي تلاوت یې کوی شیطانانو

**پوښتنه**:- چي " تتلوا" که مشتق سي د تلاوت څخه چي معنی یې قرائت دی نو معنی د آیت داده چي قرائت یې کاوه، او که مشتق سي د تلو څخه چي معنا یې متعابعت دی نو معنا یې داده چي متابعت یې کاوه او عمل به یې په کاوه شیطانانو .

**فائده**:- مراد د شیطانانو څخه سر کښه او ګمراهان دي که دجن له قسمه او که د انس له نوعي وي، لقوله تعالی من الجنة والناس .

**پوښتنه**: تتلوا" خو مضارع ده او دا تلاوت د شیطانانو خو په ماضي زمانه کي و ؟

**ځواب**:- تفسیر مظهري رحمه الله وایي چي عرب د ماضي صیغه په ځای کي د مستقبل وبالعکس استعمالوي مجازاً آه .

**درویش وایي**:- چي ددې استعمال مجازي دوه ارخیزه پخلی هیڅ مفسر نه دی کړی، نو اول دا وه چي مضارع دلته حکایت دحال ماضیه

دی یعني ماضي حال یې حاضر فرض کړی لکن عرب دا حکایت د حال ماضي یعني حاضر فرضول یې په هغه ځای کي کوي چي حالت ماضیه یو امر عجیب وي لکه په ما نحن فیه متابعت د هغو کسانو چي ځانونه مومنان بولي یعني الیهود د کتابو د سحر په بدل کي د کتاب الله چي تورات دی یو امر عجیب دی .

# عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ

**دریم وایې:-** چي اسان اعراب دادی چي "علی" په معني د "في" دی، او مضاف محذوف دی اي "في زمان ملک سلیمان" اوعلی" متعلق په "تتلوا" پوري دی .

**دریم وایې:-** متبحرین دمفسرانو رحمهم الله په بیان کي ددې مقام لکه قاضي بیضاوي او صاحب د روح البیان او مظهري حنبی رواه الحاکم عن ابن عباس ﷺ ایضاً والمفسر البغوي رحمهم الله، لکن مدار د ټولو روایاتو پر سدي دی دوئ وایې چي شیطانان به اسمانو ته پورته کېدل او د ملکو و خبرو ته به یې غوږ نیوی او ملکو چي به په ورو ستنیو راتلونکو خبرو کي چي وروسته په مځکه کي راځي بحث کاوه یعني کالقحط والقتال" وغیر ذالك نو شیطانانو به هغه خبري وکاهنانو ته کولې او کاهنانو به د هري اسماني خبري سره اویا دروغه نور ګډ کړه او خلکو یعني یهودیانو به هغه خبري وا وریدې نو کاهنانو ته بې خبري د هغو حوادثو وکړې او کاهنانو خبري لیکلی او په بني اسرائیلو کي دا خبره شائع سوه چي جن په غیب خبر دی، نو سلیمان ﷺ دغه کتابونه دبني اسرائیلو څخه راټوله کړه او په یو صندوق کي یې واچول او تر خپلي چوکۍ یا کرسۍ لاندې یې ښخ کړه او سلیمان ﷺ امر وکړی چي که چا

ویله چي شیطانان یا پیرانان په غیب خبر دي زه یې سر په توره پرې کوم لکن په مقتضی "دکل نفس ذائقة الموت" او په قول د هغه شاعر چي وایي

همه ملک ودولت پذیرد زوال | بجز ملک فرماندهي لایزال

نو سلیمان ﷺ چي وفات سو نو پس لـه مرګه د سلیمان ﷺ که څه هم علماء دوقت په موضوع د فن د سلیمان کتب الکهانة تحت الکرسي خبر وه لکن په مرور د زمانو شیطان په صورت د انسان راغلی او یو څو نفرو د بني اسرئیلو ته یې وویل چي زه تاسي ته یوه خزانه نه دروښیم چي تاسي به همیشـه د هغـه خزانې څخـه ابداً خورك کوي؟ نو تاسي تر کرسی د سلیمان ﷺ لاندي ځای وشني او هلته یو صندوق دی هغه را وکاږئ او په هغه کي کتابونـه سته نو شیطان د لیري هغه ځای ور وښوی او دی ګوښه ورته ودرېدی او بني اسرائیلو ورته وویل چي ته رانژدې سه خو ده ورته وویـل چي تاسي خپل کارکوي زه ولاړیـم او شیطان چـي نژدې نه ورتلی لـه دې سببه چي ده تـه معلومـه وه چـي کرسی تـه د سلیمان ﷺ که جن یا شیطان رانژدې سي سوځي نو څرنګه چي کتابونـه یهودو را وکښه نو شیطان ودوئ ته وویل چي سلیمان چي انس او جن مسخر کړي وه په دغو کتابو یې مسخر کړي وه بیا شیطان والوتی، نو په بني اسرائیلو کي دا خبره شائع سوه چي سلیمان نبي نه و؛ بلکه ساحر و؛ او دا خبره په دوئ کي شائع وه څو چي قرآن مبارك نازل سو او د سلیمان د نبوت په بیان کي او نفي د ساحرتوب یې د سلیمان څخه وکړه لکه په دې آیتوکي چي به راسي۔

**څرګندګونې :-** چي دا قصه که ټوله صحیح هم وي دغه په مدفونو کتابونو کي یوه یوه اسماني خبره وه او نور د کاهنانو دروغونه وه، نو ددې کتابو د سحر سره څه کار و؛ او د هغه کاهنانو د ډېري زماني د مخه

دروغونه بني اسرائیلو ته په څه کار ورتله چي دوئ به يې درس او تدريس شروع کړی او په دغو کتابو کي سره ددې چي هغه اثر د سحر نه و ځکه بې د ساحر حکم پر سلیمان ﷺ وکړی په دې کتابو کي خو هيڅ اثر د سحر نه و نو ددې قصي راوړل په شان نزول کي ددې موجوده آيتو بې معنی خبره ده بلکه صحیح شان نزول دادی چي کلبي رحمه الله وايي چي شيطانانو واقعي د سحر کتابونه ليکلي وه او په آخر کي يې دا خبره هم ليکلي وه هذا ماعلم اصف بن برخيا سليمان الملک التسخير الجن والانس به وبقاء ملکه عليهم، او شيطانانو د سليمان په غياب کي د سلميان ﷺ د لمانځه تر ځای لاندي ښخ کړي وه ولا يشعر بها سليمان الی وقت موته فلما مات سليمان دلت الشياطين بني اسرائيل علی استخراج تلک الکتب من تحت مصلاه، او شيطانان چي په رنګ د سړو وبني اسرائيلو ته حاضر سوي وه بني اسرائيلو ته يې وويل چي سليمان ﷺ پر تاسي او جناتو باندي حکومت کاوه هغه يې په دغه سحر او جادو سره کاوه، په هم دې سبب په بني اسرائيلو کي دا خبر شائع سوه چي سليمان ساحر و او هم په دې سبب چي هغه کتابونه چي د سحر واقعي بني اسرائيلو يې په تعليم او تعلم لاس پوري کړی نو هم ددې کبله په ټوله نړۍ کي بني اسرائيلو په سحر کړي کي لوړ مهارت پيدا کړی حتی الی زمن رسول الله ﷺ حتی سحروا به ﷺ کما في البخاري مفصلا في شان نزول المعوذتين، نو په هغه زمانه کي چي دا کتابونه ښکاره سوله علماؤ او صلحاؤ د بني اسرائيلو به دا ويله معاذ الله ان تکون هذا الکتب من سليمان ﷺ، او بېوقوفانو د بني اسرائيلو به ويل چي. هذا من سليمان ﷺ وبهذا السحر کان يملک علی الجن والانس ، نو ځکه تر وخته د نزول د قرآن کريم سليمان ﷺ په نامه د ساحر بد نام و.

**شروبشي وايي**:- چي دا شان نزول ډېر د قرآن کريم د تفسير سره لائق دی والعلم عند الله .

# وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ

او کفر نه دی کړی سليمان ﷺ، لکن شيطانانو کفر وکړی، ور وه يې ښو وی خلکو ته سحر .

**پوښتنه**:- خبر خو په سحر کي و، يعني يهوديان خو سليمان ﷺ ساحر بولي نو ددې په رد کي خو "وماسحر سليمان" مناسب و، نو د خدای ﷻ څه حکمت دی چي "و ما کفر سليمان" يې وفرمايله ؟

**ځواب**:- په تعبير کي په کفر سره خدای ﷻ تنبيه پر دې وکړه چي عمل د سحر خو کفر دی او انبياء عليهم السلام خو د ټولو ګنهونو څخه معصوم دي خصوصاً د کفر څخه چي اعظم د معاصيو دی .

**فائده**:- سحر علم دی په داسي الفاظو او اعمالو سره چي سړی په هغو سره شيطانانو ته نږدې کېږي او شيطانان د هغه سړي عامل ساحر مسخر سي او لـه هغه سره مرستي او کومکونه کوي، او دغه الفاظ او اعمال د سحر په اراده د خدای ﷻ د خلکو په نفسو کي او د خلکو په بدنو کي رقم رقم امراض پيدا کوي حتی تر مرګه او ليونتوبه پوري، او دغه ساحران د خلکو په سترګو کي يو شی له خپل حقيقته جلا معلوموي لکه سحر د فرعون چي خدای ﷻ وايي ، .(القو حبالهم وعصيتم يخيل) يعني موسی ﷺ وخلکو ته (انها تسعی)

فائده:- دا تول تاثیرات په خلق د خدای ﷻ ابتلاء منه للناس.

فائده:- که څوك ماخستن تر خوب لـه مخه یو وار الحمدلله شریفه سره د اعوذبالله شریفي او د بسم الله شریفي او یو وار آیة الکرسي سره د اعوذبالله او د بسم الله او درې واره قل هو الله هر وار سره د اعوذ بالله او بسم الله او یو وار قل اعوذ برب الفلق سورت او قل اعوذ برب الناس سورت سره د اعوذ بالله او بسم الله ووایې هر شپه نو د سحر او جادو د تاثیر څخه به بېغمه پاته سي بقدرته تعالی.

فائده:- هغه خبري چي بعضي جاهلانو کړې دي چي ساحر کولای سي لـه انسانه واقعي خر یا سپی جوړ کړي ډېر غلطه خبره ده، او د ساحر شریك ګنړل دي د خدای جلت قدرته سره یعني لکه خدای ﷻ چي بعض یهودیان په زمانه کي د داوُد ؑ بیزوګاني اوسرکوزان واقعي وګرځول.

امام بغوي ؒ وایې چي د سحر وجود حق دی په نیز د اهل السنة والجماعة یعني په حدیث د بخاري ؒ او نورو محدثانو ثابته ده چي لبید بن اعصم یهودي په علیه الصلواة والسلام سحر کړی وحتی یخیل الیه انه فعل شیا ولم یفعله، یعني په باره کي د موجباتو د غسل حتی چي دوې ملکي ؑ یې په خوب ولیدلې چي یوه ملکه وهغې بلې ملکي ته وایې چي په دې سړي یعني علیه الصلواة والسلام څه سوي دي هغې بلي ملکي ورته وویله چي مطبوب یعني سحر په سوی دی هغې بلي ورته وویل "من طبه" چا سحر په کړی دی هغې ورته وویل چي لبید بن اعصم الیهودي الی اخر الحدیث" قال البغوي والعمل به کفر، او شیخ ابو منصور ؒ وایي چي سحر مطلقاً کفر ګنړل خطا دی بلکه د حقیقت سحر حال معلومول په کار دی یعني که د سحر په اقوالو او الفاظو کي کلمات د

کفر قطعاً موجود وي لکه سُب یعني بکنځل وخدای ﷻ ته یا آنحضرت ﷺ ته او یا صحابه کرامو ﷺ ته، نو سحر خو کفر دی بالاجماع، او یا په اعمالو کي عمل د کفر قطعي پیدا ؤ لکه القاء قرآن مبارك په قاذوراتو کي، نو هغه سحر هم کفر دی اجماعاً قال الشیخ رحمه الله و الا فلا یعني که د کفر الفاظ یا اعمال نه وي پکښي نو کفر نه دی، او د مدارك څخه هم تائید د مذهب د شیخ کېږي یعني چي هر سحر کفر نه دی.

حیث قال صاحب المدارك رحمه الله ان السحر الذي هو کفر یقتل فیه الذکور دون الاناث عند الحنیفیه رحمه الله کما في المرتد، ومالیس فیه کفر وفیه اهلاك النفس ففیه حکم قطاع الطریق یقتل فیه الذکور والاناث ویقبل توبة الساحر و ان کان سحره کفراً اذا تاب، او څوك چي وایي چي د ساحر کافر توبه نه قبلېږي هغه غلطه خبره ده ولي ساحران د فرعون چي کافران هم وه چي توبه یې وکښل توبه یې قبوله سوه کما شهد به القرآن العزیز. لکن تفسیر مظهري وایې چي په دې آیت مبارك کي خدای ﷻ تعبیر د سحر په کفر سره وکړی یعني "وماکفر سلیمان" او وروسته یې بیا داسي وویل "لکن الشیاطین کفروا یعلمون الناس السحر" وکذا قال الله تعالی في موضع اخر ولقد علموا اي الیهود لمن اشتراه، اي السحر ماله في الاخرة من خلاق الآیة) د اتوله آیتونه د لالت کوي پر دې چي الفاظ د سحر او اعمال د سحر عموماً کفر دی، او مناقض د شرطو سره د ایمان دی، او د مظهري رحمه الله دخبري تاکید دا هُم کوي چي شیطان نه راضي کېږي مګر په کفر سره نو تقرب د شیطان او دده مسخر کېدل د انسان سره هر کومك ممکن نه دی بېله کفره د ساحر، اعاذنا الله منه، قال المظهري، و ماقال ابو منصور وصاحب المدارك وروي عن الشافعي رحمهم الله ایضاً فمبني علی الاحتمال العقلي، یعني چي عقلاً دا ممکنه

ده چي په الفاظو او اعمالو کي د ساحر دي داسي الفاظ او اعمال نه وي چي موجب د کفر دي وي انتهی قول المظهري.

**نوروبش وايي:-** چي مراد د شافعي او امام ابو منصور و صاحب المدارك رح خو دا دی چي ساحر مطلقاً او باليقين کافر نه دی نو که د مظهري رحمه الله مراد دا وي چي ساحر کافر مطلق او باليقين دی خو هغه دد خبره فمبني على الاحتمال آه مناقض ده د حکم يقني، لانهم قالوا اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال، او که مراد د مظهري رحمه الله حکم ظني وي په کفر سره د ساحر له هغه څخه خو ائمه مذکورين رح هم نه دي مخالف لما عرفت من مراد الائمه المذکورين رح واما الآيات التي استدل بها المظهري رحمه الله ففيها احتمال التاويل يعني تغليظا على حرمة السحر و الله اعلم.

**پوه سه:-** چي که څوك يو سړی مړ کړي او قتل يې ورته روا نه وي او يا نعمت بدني يا مالي څندي سلب کړي که څه هم په دعاء سيفي سره وي چي هغه مشهوره دعاء، او که څه هم په تلاوت سره د اسماء جلاليه د خدای ﷻ که څه هم دا خو کفر نه دی لکن کونکی ددې کار فاسق دی حکم يې حکم د قطاع الطريق دی هذا ما اورده المظهري رحمه الله.

**نوروبش وايي:-** چي دا مسئله على الاطلاق نه ده ولي چي هغه سړی چي څوك يې سلب د نعمت بدني يا مالي غواړي په دعاء سيفي او يا په تلاوت سره د اسماء جلاليه د خدای ﷻ که په خپله د قطاع الطريق څخه وي او يا معلن بالفسق والفجور وي او اسلام او مسلمانانو ته ضرر رسونکی سړی وي نو هغه ته ولي بنېرا د سلب النعمة البدنيه يا ماليه نه

ده روا، لان رفع الشر الكثير بالشر القليل جائز اتفاقاً، او هغه آيت مبارك چي مظهري رحمه الله ددي مطلب لپاره دليل گرځولی دی يعني قوله تعالی ﴿الذين يؤذون المؤمنين والمؤمنات بغير ما اكتسبوا فقد احتملوا بهتاناً و اثماً مبيناً﴾ هغه په باره کي د مشرکينو او د منافقينو دی چي دوئ به عداوة للمسلمين داسي کول نه په باره کي د دفع د مشرکينو د مفسدانو چي مؤمنانو ته به يې رسول بلکه د داسي شر کثير دفع خو مباح څه کوې بلکه لازمه ده باي ذريعة کان والله اعلم .

**مسئله**:- معتزله وايي چي سحر صرف تخييل دی او حقيقت واقعي نه لري، دوئ وايې چي که انسان ته که کومك د شيطان لـه خوا په ظهور د خوارق العادة او اخبار غيب ممکن سي او واقعيت ولري نو د معجزي د نبي ﷺ او د کرامة د ولي الله او د سحر تر منځ به اشتباه راسي، قاضي بيضاوي رحمه الله وايې چي فرق يې دادی چي ساحر بـه حتماً خبيث النفس بدکاره وي ولي چي پـه تعاون کي د شيطان د يو څا سره مناسبت لـه شيطان سره په خبث النفس کي ضروري دی، بخلاف النبي و الـولي فانـه ليس لهما مشابهةٌ ما د شيطان سره نسته وبهذا تميز الساحر عن النبي والولي .

**څرونکي وايي**:- چي د معتزله وو عجيب مسلك او مذهب دی آيا دوئ احاديث مني او که څرنگه ؟ که يې مني خو په بخاري او مسلم او په نورو کتابو کي د احاديثو صحيحه و سحر د لبيد بن اعصم اليهودي پر ذات پاك د آنحضرت ﷺ او د هغه سحر موقت تاثير پر ذات د آنحضرت ﷺ و درجي ته د شهرت رسېدلی دی کما مر عنقريب.

# وَمَآ أُنزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ

پوهنه:- چي اکثر مفسران رح پر دې خبره متفق دي چي "وما انزل آه" عطف دی پر لفظ د "السحر" او دوئ وايي مراد د "سحر" او "ما انزل آه" څخه يو شی دی او فرق په منځ کي د معطوف او معطوف عليه صرف په اعتبار د مفهوم دی او ذات او مصداق د دواړو يو دی. او بعض مفسران وايي چي مراد د ما "انزل" څخه د سحر يو سخت قسم او نوع مراد دی، او هغه خبره چي بعضي مفسرانو رح ويلې ده چي کلمه د "ما" نافيه ده، او "ماانزل" عطف دی پر "ما کفر سليمان" باندي او تکذيب دی د يهودو په را تلونکي قصه کي، نو ددې مفسر پر مذهب هغه وروسته "هاروت و ماروت" بدل دي دشياطين څخه بدل البعض عن الکل دی، او په مابين کي جمله معترضه ده، نو تقدير د کلام داسي دی "ولکن الشياطين کفروا" هاروت وماروت دوه شيطانان دي جني يا انسي.

سوال:- پر دې تقدير چي هاروت وماروت شيطانان سي نو هغه نصحيت د دوئ وخلکو ته چي په وروسته آيت کي به راسي "ومايعلمان من احد الآية" څرنګه به صحيح سي ولي شيطانان خو خلکو ته د کفر او ضلال بلنه ورکوي، نو هاروت او ماروت څرنګه خلګوته وايي "فلا تکفر".

ځواب:- دا بلنه د دوئ پر وجه د نصيحت نه ده بلکه د سري رغبت او شدة وکفر ته معلومه وي، او ددې آيت مثل د هغه قول د خدای ﷻ دی چي حکايت د شيطان څخه کوي "کمثل الشيطان اذ قال للانسان اکفر فلما کفر قال اني بريئ منک الآية، هذا ما في البيضاوي وحواشيه.

**فرويښ وايي**:- چي په دې آيت کي يعني په باب کي د تفسير د بيضاوي رحمه الله د مفسرينو حضراتو رحمهم الله عظيم اختلاف دی، او قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چي هاروت وماروت اصلي اسماني ملکي وې چي خدای ﷻ مځکې ته را استولي وې لپاره د تعليم د سحر ابتلاء للناس، او لپاره د فرق په مابين کې د سحر او معجزې د نبي ﷺ او بيضاوي رحمه الله وايي چي تعليم او زده کړه د سحر مطلقاً ممنوع نه ده بلکه عمل په هغه ممنوع دی او کفر دی دليل يې دادی چي دا تعليم د سحر خو د ملکو د خوا واقع سو اوسره ددې چي ملائکه خو معصوم دي د ګناه څخه وفيه نظر، ولې چي دغه دوې ملکي چي د خدای ﷻ دخوا ماموري وې ابتلاء من الله ﷻ للناس، نو بيا خو دا تعليم د دوئ ګناه نه بلل کيږي چي ددوئ د عصمت سره دې منافي وي، او علامه مظهري رحمه الله وايي چي علوم ضارة و ايمان ته تعليم او تعلم يې حرام دی لکه السحر او الهيات د فلاسفه وو الا اذا کان بنية صالحة آه، مثلاً سحر څوک په دې نيت زده کوي چي زه مقابله د ساحر مدعي النبوة په وکړم او يا الهيات د فلاسفه وو، ددې لپاره زده کوي چي رد پر وکړم او جواب د دوئ و دلائلو ته ورکړم.

**فرويښ وايي**:- چي چونکه عموماً الفاظ د سحر او اعمال د سحر مبني پر تقرب وشيطانانو ته دي، او تقرب د شيطان ببله کفره ممکن نه دی کمامر نو په سحر کي به نيت صالحه څرنګه ګنجايش ولري، او دغه رنګه په اوسنی زمانه کي الهيات د فلاسفه وو طالبان او ملايان په ډېره مزه او خوند وايي لکه دوئ چي معتقد د دغو مسائلو زائغه د الهياتو د فلاسفه وو وي، نو په اوسنی زمانه کي په زده کړې کي د علومو فاسده د ګمان د نيت صالحه نه معلومېږي الاعلى وجه الندرة وغاية الشذوذ.

**فائده**:- په اوسنی زمانه کي د ملايانو او طالبانو په اصطلاح يوه وره دوره بولي چي په هغه کي جلالين، مشکواة، بيضاوي او څلور هدايه ګاني او نور هم بعض کتابونه ويل کيږي، او يوه لويه دوره بولي چي په هغه کي صحاح سته وغيره ويل کيږي بعض ملايان دا دواړي دوري په يوه کال کي کوي، او که دغه ملا مکلف سي چي ته به الهيات د فلاسفه وولـه هر کتاب څخه دوې دوري درسوې شايد په دوه کاله کي بې هم درس نه کړي .

**يوه قصه**:- چي بغوي رحمه الله د ابن عباس او د کلبي او قتاده رضي الله عنه او نور هم په باره کي د هاروت او ماروت داسي قصه رانقل کړې ده چي ملائکه وو د اسمانو وليدل چي د مځکي څخه قسم قسم ګنهونه حتى الشرك والزنى وقتل النفس بغير حق وشرب الخمر وغيرها من المعاصي الكبائر اسمانو ته راپورته کيږي ده بني آدم لـه خوا ، نو يې پر خلق د آدم عليه السلام وذريته وخلافتهم في الارض د تنقيد خوله خلاص کړه، نو خداى جل جلاله ودوئ ته وويل چي كه زه تاسي واستوم مځکي ته او په تاسي کي پيدا کړم هغه قوت چي په بني آدم کي سته كالقوة الغضبية والشهوانية وغيرها تاسي به هم دغسي ګنهونه کوئ لکه بني آدم چي يې کوي، نو ملکو ورته وويل سبحان الله مالنا ان نعصيك، نو خداى جل جلاله ورته وويل چي تاسي انتخاب کړئ دوې ملکي برجسته ملکي، هغه وو چي دوئ هاروت او ماروت، او په بعض رواياتو کي راغلي دي چي دريمه ملکه يې هم انتخاب کړه چي نوم يې عزائيل و، نو خداى جل جلاله په دوئ کي قوى شهوانيه وغيرها خلق کړی او مځکي ته يې د قضا بين الناس را واستولې او ورته وه يې ويل چي تاسي به قضاء بين الناس په حق او عدل سره کوئ او شرك به نه کوئ او قتل بغير الحق به هم نه کوئ او زنى به

هم نه کوی او شراب به هم نه چښي، نو عزائیل چي مځکي ته راغلی او شهوت د زناء ور پیدا سو، نو د خدای ﷻ ځخه یې عذر خواهي وکړه چي زه دا قضاوت د مځکي نه سم کولای ما بیرته اسمانونه پرېږده او شهوت را ځخه قطع کړه. خدای ﷻ یې عذر او استعفی ومنله هغه اسمانو ته ولاړه، او څلوېښت (۴۰) کاله پر سجده پرېوته او د حیاء ځخه یې لوړ نه سوای کتلای، او هاروت او ماروت د قضاء لپاره په مځکه کي پاته سوه. نو چي مابنام به سو د قضاء ځخه به فارغ سوه، نو اسم اعظم شریف به یې ووایه او اسمانو ته به ولاړه نو یوه میاشت لا نه وه تېره سوې چي هاروت او ماروت په فتنه اخته سوه، هغه فتنه داوه چي یوه ورځ د قضاوت لپاره یوه ښځه چي نوم یې زهره وه او ډېره ښائسته وه او ملکه د اهل فارس د قبیلې ځخه وه، او د هغې او د مېړه تر منځ په یوه موضوع کي نزاع وه د قضاوت لپاره هاروت او ماروت ته راغله، نو هاروت او ماروت چي زهره ولیدله په زړه کي شوق د زناء پیدا سو او زهر یې خپل خلوت ګاه ته بوتله نو د زناء تقاضی یې خندي وکړه هغې یعني زهره خپله زناء مشروطه وګرځوله په څو شرطو سره .

(۱) اول شرط دا چي دا بت پرسته وه چي بت ته به دوئ هم سجده کوي (۲) دوهم ددې مېړه به وژني، (۳) دریم به شراب چښي (۴) څلورم هغه شی چي دوئ اسمانو ته پورته کوي هغه به ورښیي، نو دوئ دا شرطونه تول ومنله او هغې هم زناء ورسره وکړه، نو زهره چي د اسم اعظم په ویلو سره اسمان ته ولاړه هورې خدای ﷻ مسخ کړه او ځلېدونکی ستوری یې خندي جوړ کړی، دا اوس هم د زهره په نامه ستوری په اسمان کي ستته، او هاروت او ماروت چي مابنام اسم اعظم ووایه وزرو یې طاقت د الوتو نه درلو دی په سبب د وسخ د زناء وغیره، نو په هغه زمانه کي چي نبي د

یعني ادریس ﷺ دا موضوع چي هرکله ورته معلومه سوه نو د خدای ﷻ
څخه یې سوال وکړی چي د هاروت او ماروت تاته شفاعت کوم خدای ﷻ
ورته وویل چي عذاب خو حتماً ورکوم لکن دویٔ ته اختیار ورکړه چي
عذاب د دنیا قبلوي او که د آخرت عذاب غواړي، نو ملکو د دنیا عذاب
مختاره کړی، ولي چي دنیا فاني ده او عذاب د دنیا هم قطع کیږي، نو
ددې قصې ناقلان وایې چي دویٔ په څاه کي د بابل په عذاب دي او په
وېښتیانو ځړېږي او داڅا هم د اوره ډک دی. او ددې ناقلان د ابن راهویة
او ابن مردویه رح څخه روایت کړی چي علي ﷺ وویل چي علیه الصلوٰة
والسلام وویل چي "لعن الله الزهره فانها هي التي فتنت الملکین" قاضي ثناء
الله رحمه الله په تفسیر مظهري کي وروسته تر نقل ددې قصې داسي وایې
وهذه القصة من اخبار الآحاد بل من الروایات الضعیفة الشاذة ولا دلالـة
علیها في القران بشي" او په بعض کلماتو کي ددې قصې هغه شی سته
چي عقل او نقل دواړه ابا څنډي کوي، او هغه خبره وه چي دا اوس تېره
سوه چي زهره چي اسم اعظم زده کړی هغه و اسمانو ته پورته سوله او
هاروت او ماروت چي د زهره استاذان وه هغه نسواي پورته کیدلای.
اوس سره ددې چي په مذکوره ګنهو کي خو زهره، هاروت او ماروت سره
شریکان وه او په کفر کي هم هاروت تر زهره کم و. ولي چي ملکي خو په
حال کي د سُکر د شرابو وې قال المظهري رحمه الله قال محمد بن یوسف
الصالحي رحمه الله في سبیل الرشاد قال الشیخ کمال الدین رحمه الله ان آئمة
النقل لم یصححوا هذه القفه وما اثبتوا روایتها عن علي ولا عن عباس ﷺ ،
او مظهري وایې چي دغه خبرونه نه صحیح او نه ضعیف د نبي علیه
السلام څخه راغلي دي، او شیخ کمال الدین رحمه الله وایي وهذ الاخبار عن
کعب الیهودي وافترائهم .

**فروپښو وايي**:- ددې قصې له صحته تولـه محدثين مخالف دي او لويه ډله د مفسرينو رح هم ځندي مخالف دي، او متكلمين اتفاقاً دا قصه دروغ بولي بلكه محال يې بولي چې څرنګه امكان لري زهره زانيه ښځه دي مسخ سي، او دونه غټ ستوری دي ځندي جوړ سي چې تر تولـه كري د مځكي دي غټ وي، او بله خبره داده چې مسخه خو و رزيل او بيكاره صورت تـه تـر صورت اول وايـې، نوكـه زهـره كـافره رنډۍ ښځـه زهره اسماني ستوری ځندي جوړ سي دا خو اعلى صورت ته رد سوه، دا ولي نسخه بولي؟ او حافظ ابن حجر رحمه الله ددې قصې د ضعف ځخه منكر دی چې دا قصـه امـام احمـد رحمه الله پـه خپـل مسـند كـي راوړې ده، او ابـن حبـان رحمه الله پـه خپـل صـحيح كـي هـم راوړې ده، ده زياتـه كـړې ده چې دې حديث لره ددې قصې طرق او اسانيد كثيره سته چې يكاد الواقف عليها يقطع بصحتها لكثرتها، لكن په شروحو كي د بيضاوي وايې چې د ابن حجر رحمه الله د كلام حاصل خو دادی چې ددې قصې راويان ډېر او فلاني او فلاني د حديثو كتابو راوړي دي دا ټوله منو، لكن منتهى ددې قصې د راوايانو خو پر حكايت د يهودو تمامېږي فتلك القصة من اكـاذيبهم وان كان رواة تلك القصة الى اليهود كثيرون .

**فروپښو وايي**:- چې صاحب د روح البيان په شدت او بلاغت سره ددې قصې د صحت او واقعيت دعوه كړې ده، او دویٌ وايي يقول الفقير جامع هذا المجالس الشريفة قد تصفحت كتب اربـاب الخبر والبيان واصحاب الشهود والعيان فوجدت عامتها مشحونة بذكر ماجرى من قصتها اي هاروت وماروت وكيف يجوز الاتفاق من الجم الغفير على ما مداره رواية اليهود انتهى

**درويش وايي:-** چي ما عربي عبارت د روح البيان والا ر انقل کړی دی، که څه هم تفسیر د درویش خو په پښتو ژبه موعود و تاچي حاسدان نه وايي چي تا پر روح البيان والا د رواغ ويلي دي، نو درويش وايي چي زه د روح البيان دا خبر منم چي جم غفير دا قصه راوړې ده لکن د روح البيان والا دونه ويل چي دغه غفير جماعت يې حکم په صحت سره کړی دی او که څرنګه .

**سوال:-** چا چي دا قصه په کتاب او يا تفسير کي ذکر کړه خو دغه حکم په صحت ددغې قصې دی ؟

**جواب:-** نفس ذکر د شي حکم په صحت د هغه نه دی ولي چي بيضاوي رحمه الله ددې قصې رد تـه اجمـالاً اشـاره کړې ده، او شـارحينو د بيضاوي دا قصه بالتفصيل ذکر کړې ده. او وروسته يې د امتناع ددې قصې دعوه کړې ده، او دغه رنګه مظهري رحمه الله بعينها دا قصه راوړې ده او وروسته يې په ډېر شدت او سختو الفاظو سره رد کړې ده، او هغه روايات چي روح البيان والا د قصې د صحت لپاره ذکر کړي دي د هغو ټولو رواياتو تفسير مظهري په شدت سره رد کړی دی، درويش د علماؤ څخه دا خواهش کوي چي دوئ دي بيضاوي او تفسير مظهري او روح البيان او روح المعاني او نور تفاسير په غور مطالعه کړي هر ډول چي يې خوښه وه فيصله دي وکړي .

**درويش وايي:-** چي د عاصي ميلان بايد زما د بيان څخه علماء وفهموي والله اعلم بالصواب .

**درويش وايي:-** چي قاضي بيضاوي وروسته تر انکار د قصې مذکورې داسي وايي، ولعله من رموز الاوائل وحله لا يخفى على ذوي البصائر

یعنې معنی حقیقي ددې قصې خو مراد نه ده کما مر بلکه دا قصه به شاید د اشاراتو څخه د متقدمینو یعنې د صوفیه کرامو رح وي او ددې اشاراتو حل یعنې بیان به پوشیده او پټ نه وي پر در لودونکو د بصیرتو. فاضل لاهوري رحمه الله په حاشیه کې د بیضاوي وایې والا صح ذالک لما ثبت من عصمة الملائکة بل من باب التمثیل آه، ددې تمثیل حال بعض محققین رحمه الله داسې کوي چې د هاروت او ماروت څخه تمثیلاً مراد نفس او بدن دي، او د زهره څخه مراد روح دی، اول خو نفس او بدن روح باعث پر ګنهو کړې وه وروسته روح په ځان پوه سوه او د طاعت او عبادت او توبې لار یې غوره کړه او عروج تر اسمانه یې نصیب سو یعنې قرب الهي آه هذا مافي الحاشیه البیضاوي، او د تفسیر مظهري یې بیا بل ډول دقیق تصوفي حل کړی دی چې ددې تفسیر د ویونکو تر عقلو لوړ دی.

## بِبَابِلَ هَارُوتَ وَمَارُوتَ

پوهنه:- چې بابل ظرف دی نو "با" په معنی د "في" ده، او یا حال دی د ملکینو څخه یعنې "کائنین ببابل" د ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چې بابل مځکې ته د کوفې وایې، او بعض وایې چې بابل د عراق په مځکه کې دی. او عدم انصراف یې په سبب د علیمت او عجمیت دی، امام قرطبي په خپل تفسیر کې وایې چې نوح علیه السلام چې پر جودي غره یې کښتۍ قرار ونیوی نو ده هوړې یوه قریه جوړه کړه چې نوم یې ثمانین پر کښېښو، نو یوه ورځ چې خلګ را ویښ سوه تبلبلت السنتهم ثمانین لغة احدها العربیه، یعنې د خلګو ژبې پر اتیا (۸۰) لغته وې چې یوه یې عربي وه، او یو د بل په ژبه نه پوهېدله، او هاروت او ماروت نوم دی د دوو ملکو او غیر منصرف دی په سبب د علمیت او عجمیت، او د اعراب د

لاړي عطف بیان دی ملکین، وقال البیضاوي رحمه الله چې مشهوره داده چې بابل د یو ښار نوم دی په اطرافو کې د کوفې

**وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ حَتَّىٰ يَقُولَا إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ**

او نښونه نه کوي هاروت او ماروت یعنې د سحر هیڅ چاته، کلمه من زائدة لاستغراق النفي، حتی چې دوئ وطالب ته زده کړې د سحر وایې یعنې از روې نصیحت چې هاروت او ماروت ملکې وې، موږ فتنه یو یعنې امتحان یو د خدای ﷻ لخوا څخه نو ته مه کافر کېږې یعنې په زده کړه سره د سحر.

بعض اهل تفاسیر وایې چې دوئ اوه (۷) واره دا نصیحت ورته وکړي، سدي رحمه الله او عطاء رحمه الله وایې که چېري طالب د تعلم د سحر د ملکو نصیحت نه واورېدی او اصرار یې په وکړی چې زه حتماً سحر زده کوم، نو ددې سړي څخه یو نور ووزې او و اسمان ته پورته سي او دا هم ایمان او معرفت الهي و،چې دده څخه ولاړی، او نازل سي یو تور شی لکه دود او د هغه په غوږ او پزه او خوله ننوزي او دا هم دی غضب د خدای ﷻ او کفر چې په دې سړي کې داخل سو.

**فَيَتَعَلَّمُونَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُونَ بِهِ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهِ**

نو طالبان د زده کړي د سحر زده کوي د هاروت او ماروت څخه هغه شی سحر او جادو چې دوي په سبب د هغه سحر جلاوالی راولي په مابین کې د سړي او د ماینې، یعنې د مېړه او ماینې دومره بغض او عداوت پیداسي چې اخر مفضي و طلاق ته وکرځي.

**پوښتنه**:- چي جمله د "فيتعلمون" عطف ده پر مقدر باندي تقدير د "فيأبون فيتعلمون" او ضمير د جمع په "يتعلمون" كي راجع دى و مدلول ته "من احد" چي استغراق دئ كمامر.

**فائده**:- خداى ﷻ ضرر د يو قسم د سحر ذكر كړى چي هغه تفريق دى بين المرء والزوجة ولي دا قسم سحر په خلكو كي غالب دى ورنه ساحران پر ډېر كارو په قدرت د خداى ﷻ قادر دي.

**فائده**:- عادت الهي په دې سره جاري دى چي مسببات وروسته تر اسبابو ظاهره وو پيدا كوي كالشبع عند اكل الطعام والري عقيب شرب الماء وامثال ذالک، نو دلته هم سحر سبب دى موثر نه دى بلكه خالق حقيقي د ضرر وغيره رب جل وعلا دى، او بعض مفسران رحمهم الله په تفسير كي د "مايفرقون بين المرء والزوجة داسي وايي چي ساحر په مېړه د ښځي داسي يو سحر وكړي چي د ماينې پر جماع هغه قدرت نه لري نو اخر الامر ماينه له مېړه طلاق وغواړي.

**مرو يقش وايي**:- چي ماته په تجربه ثابته سوې ده چي بعض مرونه د ماينو څخه بند وي او ماته راغلي دي ما بعض شيان چي خداى ﷻ وماته ښولي دي وركړي دي هغه سړى پر جماع د ماينې قادر سي او نزاع د مېړه او ماينې چي د جماع له سببه وه دفع سي ولله الحمد وقد تكرر تلك التجربه مراراً كثيرة، په نصاب الاحتساب كي وايي كه يو سړى له اصله عنين نه وي يعني د ماينې پر جماعو خو قدرت نه لري په سبب د سحر او په بل ځاى كي قدرت پر جماعو لري مثلاً استمنا باليد، نو هغه سړى دي يو څه لرګي او نلان سره يو ځاى كي او په مابين كي دې تبشه ياتبر وركښېږدي او هغه لرګو ته دي اور ور واچوي حتى چي هغه تبشه يا تبر

لکه اور سور سي په يو انبر دې را وکاږي او د هغه پر تېره طرف يعني د تښتې يا تبر دي بولي وکړي په قدرت د خداى ﷻ به د مايينې سره پر جماع قادر سي وهذا فائدة سنية .

# وَمَا هُم بِضَآرِّينَ بِهِۦ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ

او نه دي دا ساحران او شيطانان ضرر رسونكي وهغه چاته مگر په اجازه د خداى ﷻ يعني په قضا او قدرت د خداي ﷻ ولي د اهل السنة والجماعة په نيز توله اسباب اسباب ظاهره دي عاديه دي يعني عادت د خداى ﷻ په دې سره جاري دى چي مسببات په اسبابو د هغو پيدا كوي ورنه قادر متعال پر دې قادر دى چي بېله اسبابو دي مسببات پيدا كړي كما معجزات الانبياء عليهم السلام كشق القمر ونطق الحجر والشجر والحيوانات العجم وغيرها لنبينا ﷺ .

**فائده اعرابيه**:- كلمه د من زائدة لاستغراق النفي، او "الا با الله" استثناء مفرغ يعني مستثنى منه يه محذوف دي او كلمه د "با" متعلقه ده په محذوف سره چي هغه محذوف حال دى د ضمير څخه. ضارين والتقدير ما يضرون احدا الا مقرونا بعلم الله وارادته وقضائه لا بالامر لانه تعالى لايامر بالكفر و الاضرار، نو ساحر يسحرو الله تعالى يخلقه نو ګاهي خداى ﷻ د ساحر پر سحر مطلوب د ساحر مرتب كړي ابتلاءً اوګاهي نه كړي مرتب بلكه ګاهي ضد د مطلوب د ساحر پر مرتب كړي، كما جاء في مسيلمة الكذاب الساحر المدعي للنبوة في عصر النبي ﷺ چي ده ته يو سړى راوستل سو چي يوه ستركه يې ړنده وه چي دعا ورته وكړه چي دا ړنده

سترګه يې جوړه سي، مسيلمه ملعون چي دعا ورته وکړه يعني خپل سحري شيان يې استعمال کړه د هغه سرې هغه جوړه سترګه هم ړنده سوه

فائده:- په دې کي هيڅ شك نسته چي سحر تاثير کوي په زړه کي د خلکو په محبت ناجائز سره، او پيدا کولو د بغض او عداوت په مابين کي د خلکو حتى بين الاب والابن وبين الاخ والاخ وهکذا حتى چي دا بغض او عداوت کاهي مفضي سي وقتل و قتال ته، او په سحر سره غټ دردونه پرخلکو راوستول کېږي، او لوئ ناجوړي پر خلکو مسلطېږي وکل ذالک محسوس ومجرب، وفي روح البيان وان اردت التفصيل وحقيقة الحال فاستمع لما اتلو عليک من المقال وهو ان السحر اظهار امر خارق للعادة من نفس شريرة خبيثة بمباشرة اعمال مخصوصة يجرى فيه التعليم والتعلم وبهذين الاعتبارين يفارق السحر المعجزه والکرامة لانهما يکونان من نفس طيبة ولا يجري فيها التعليم والتعلم .

فائده:- غالباً هغه تاثير کونکی سحر ښځي هم کولای سي خصوصاً په حال کي د حيض. او هر څو چي کفر د ساحر ډېرېږي هغونه ډېر او ژر تاثير کوي، او هم دا سبب دی چي ډېر ساحران کلام الله يعني د قرآن کريم آيتونه په نجاساتو او وينو سره د بعض حيواناتو ليکي او لمونځونه هم نه کوي او روژې هم نه نسي، او د قرآن مبارك آيتونه په قاذوراتو کي اچوي، نو چي ساحران د غسي کفري اقوال او اعمال وکړي نو شيطان ددوئ سره کومك کوي، او هره ښځه يا امرد چي د ساحر د زناء يا لواطت لپاره خوښ سي شيطان يې ورته راجلبوي .

فائده:- بعض ساحران د پير او د صوفي مرشد په صورت کي ځان وخلکو ته معرفي کوي، او بعض خلك وده ته حسن ظن هم لري، نو

شیطان ګاهي د هغه ساحر د پیر او صوفي په رنګ پر عرفات باندې ځان په خلګو وويني خصوصاً هغه خلک چې هغه ساحر پیر ته يې حسن ظن درلود، نو خلک د هغه ساحر پیر سحر کرامت بولي، دوی وايي چې پیر صاحب خو نه په وطن کې د حج عریضه کړې وه او نه يې پاسپورټ جوړ کړی ؤ او نه يې چاته ویلي وه چې زه حج ته ځم او دا دی په کرامت د اولياء پر عرفات حاضر سو لا يې عقیده ورته راسخه سي. او هغه کسان چې له حجه راسي نو پیر ساحر ته وايي چې ماخو ته پر عرفات ولیدلې پیر ساحر ځان پلن واچوي او و وايي چې داسې کارونه پېښېږي، وهذا من تلبيس الشيطان ددې معنی دا نه ده چې و اولياء الله ته ورته ددغه کراماتو خدای ﷻ نه ورکوي.

مثنوي

اولیاء راهست قدرت از اله • • • • تیر برجسته بگرد اند زراه

بلکه معنی ددې دا ده چې ساحر ابلیس شیطان دی لیضل الناس.

**پوهنه**:- چې اهل ضلال لره چې دوی عبادت پر غیر د وجهي شرعي کوي کشف د بعض شیانو ورته کېږي چې دوی هغه ځایو ته ورځي چې په هغو ځایو کې د لمانځه څخه منع راغلې وي لکه مزبله یعني د مرداريو اچولو ځای، اویا د اوښانو د چوکېدو ځای، او یا ورته وهغه نجسو ځایو ته. نو شیطان د دوی سره خبري کوي، او ګاهي به شیطانان په بتانو د قریشو ننوتل او د عبادت کوونکو سره د بتانو به يې خبري کولې کما ثبت في الاحاديث الشريفه. د حسن بصري رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه که یو سړی بل سړی ولیدی چې په هوا را الوتی ؤ دا نو ولي الله دی؟ حسن بصري رحمه الله ورته وویل چې دا خو حتماً د ولایت دلیل نه دی ولي چې مرغان ټوله په هوا الوزي دا اولیاء الله دي؟ بیا هغه سړي پوښتنه خندي وکړه چې یو سړی چې پر اوبو ځي او اوبه يې نه غرقوي او

نه يې وژني دا نو ولي الله دی ؟ نو حسن رحمه الله ورته وويل چې دا هم دليل د ولايت نه دی ولي چې ماهيان او چنګوښي هم اوبه نه وژني، نو هغه سړي ورته وويل چې ستا په نيزد دليل د ولايت الهي څه شی دی ؟ حسن رحمه الله ورته وويل چې دليل د ولايت متابعت د شريعت نبوي ﷺ دی في الاوامر والمنهيات كلها .

**درويش وايي**:- چې دا ټوله حاصل وه د مكتوبات للامام الرباني مجدد الف ثاني قدس سره، او د آكام المرجان او روح البيان او د نورو كتابو. سعدي شيرازي رحمه الله

محال است سعدي كه راه صفا ****** يابي بجز در پی مصطفی

خواجه عبد الله انصاري رحمه الله څه ښه ويلي دي

اې طالب راه حق شده از خطره د ر پناه حق شده

اې گر بخواهي سوی حقیقت راه بی شریعت مشو حقیقت خواه

تا شریعت نیکنی حا صل د ر حقیقت نمی شوی کامل

با شریعت ره حقیقت جوی ره تا ریک بي چراغ مپوی،

تا ند اني حلال وحرام نشمرد کس ترا از اهل کمال،

ره اسلام شرع مصطفو نیست راه ایمان رشوم مرتضو یست

په روح البيان كي وايي چې علماء وايي چې كه په سحر كې رد و د يوه شرط د شرائطو څخه د ايمان كه قولي وي او كه فعلي وي كما مر بعضها، نو هغه سحر كفر دی او كه شرط د ايمان نه فوتېدی هغه كفر نه دی، درويش وايي چې ګناه كبيره خو ده .

**مسئله**:- هغه نومونه او منترونه چې په بعض كتابو كې په نامه د تعويزاتو راځي چې معنی د هغو الفاظو په عربي كې نه معلومېږي په

اتفاق د علماؤ هغه ممنوع او حرام دي ولي چي احتمال ددې سته چي د شرك الفاظ دي پكښې وي، او يا تعظيم د شيطانانو په كښې وي.

**فائده**:- په حديث مبارك كي راغلي دي ﴿من استطاع ان ينفع اخاه فليفعل﴾ نوځكه موږ وايو كه يو څوك دضرع په مرض يا د سر درد په مرضو مبتلا وي بل عالم وغيره ته روا ده چي يو شی د كتاب الله څخه او يا نورو ادعيه ماثوره وو څخه ور نوشته كړي او بيا يې په اوبو كي ږيمنځي او په مريض يې وڅښي، او يا يې ور په غاړه كي، او آيات قرآنيه او اسماء الهيه خپل تاثيرات عجيبه لري چي د اهل الله په ژبه وويل سي او يا نوشته سي په مريض وڅښل سي او يا وربه غاړه سي، نو خداى ﷻ هغه مريض ته شفاء كامله او عاجله وركړي كما هو المجرب عند الاولياء والصلحاء، او اولياء الله ته خداى ﷻ بيا شيطان او جن مسخر كوي كما سخرهم لسليمان ﷺ او په تجربه صحيحه ثابته ده چي بعض كسان چي مصروع يعني پيرى پر مسلط وي د اهل الله په دم يا څانبت او تعويذ سره به خداى ﷻ هغه پيرى دفع كوي او طرد كوي او مصروع خندي خلاص سي، روح البيان مع زيادة.

**فائده**:- حكم د ساحر قتل دى كه نر وي او كه ښځه وي كه يې فساد في الارض يا اهلاك د خلكو كوى، او كه يې سعي د كفر كوله نو كه نر و قتل دي كړي اوكه ښځه وه بندي دې كړل سي، ولي دغه ساحره ښځه خو په كفر عارضي سره كافره ده او حكم شرعي داډى چي ښځه چي په كفر اصلي سره كافره وي قتل يې نه دى روا لانها ليست من اهل الحرب نو چي په كفر عارضي سره كافره وي نو په طريق اولى قتل خندي مرفوع دى، او ساحر كه د مخه تر نيولو توبه وكښله توبه يې قبوله ده يعني نه

وژل کیږي. او که یې وروسته تر گرفتارۍ توبه وکښله توبه یې نه قبلیږي کما في الاشباه والنظائر.

**مسئله**:- هر کافر چې توبه وکاږي توبه یې قبلیږي الا الکافر بسب النبي ﷺ او بسب الشیخین ابی بکر ؓ وعمر ؓ او احدهما او یا کافر بالسحر ولو امراةً

**دروېش وايي**:- چې دا حکم د عارضي کافر دی ددغو شیانو په کولو سره ولې کفارو اصلي ؤ د مکې مکرمې ښکنځل وقرآن ته او وه من انزله ته چې خدای ﷻ دی او وه من جاء به ته چې علیه السلام دی کوله لکن چې توبه یې له هغه ښخه وکښله یعنې ایمان یې راوړی توبه یې قبوله سوه، او زندیق که ونیول سو بیا هم توبه یې نه قبلیږي.

**سوال**:- زندیق چاته وايي؟

**ځواب**:- زندیق هغه څوک دی چې اسناد د کارو و دهر ته کوي او نبوت او شرع مني کذا في آکام المرجان چې روح البیان والا یې په شان کې داسې وايي وهو الذي یکتب علی الاحداق لا علی الاوراق.

## وَيَتَعَلَّمُونَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ

او خلک زده کوي د هاروت او ماروت څخه هغه شی یعنې سحر چې ودوئ ته تاوان دی ولې چې دوئ یې د عمل لپاره زده کوي او عمل یې کفر دی، او دوئ ته ددې په علم کې فائده نسته ولې چې علم به یې وعمل ته منجر سي، او صرف علم د سحر خو نه په دنیا کې فائده لري او نه په اخرت کې فائده لري قال. البیضاوي ؒ وفیه اشارة الی ان التحرز عن السحر اولی وفي التفسیر الرحماني لولم یکن في السحر کفر، ولا في

العمل به اعتقاد تاثير الكواكب او الشياطين لكان حق العاقل ان يتعوذ منه فكيف لا يتعوذ منه وفيه الاحتمالات المذكورة آه مع زيادة .

فائده:- عاقل بايد په قول د هغه چا خطا نه وزي چي عرفت الشرلا للشر بل لتوقيه وهذا قولهم بافواههم يجرون به الناس الى تعلم السحر اولا ثم الى العمل به اخراً فهذا من خداع الشيطان الرجيم نعوذ بالله منه

# وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ

او په تحقيق سره خبر دي دغه يهود يعني په تورات كي چي خوک مختاره كړي سحر او بدل كړي يعني غوره كړي "ماتتلو الشياطين" پر كتاب الله باندي، نسته هغه لره په اخر كي هغه برخه يعني د نعمتو د اخرت .

پوهنه:- چي لام د "لقد" جواب د قسم محذوف دی يعني و الله او لام "لمن اشتراه" لام ابتداء دی چي "علموا" يې له عمل څخه بند كړی او جمله د "لمن اشتراه آه" جواب د قسم محذوف دی، او "من" په من خلاق كي زائد دی لپاره د استغراق د نفي دی .

# وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ۭ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۝

اي والله ډير بد دی هغه شی چي دوئ يعني يهودو خرڅ كړی دی لان الشراء من الاضداد په هغه سره خپل ايمانونه، او يا حظوظ انفسهم في الجنة، چي هغه شی سحر او كفر دی كه دوئ يې په بدی پوهيدای يعني نو به يې بيعه نه كولای، او جواب د "لو" محذوف دی يعني "مافعلوه" چي درويش هم دا اوس ترجمه وكړه .

پوښتنه:- خدای ﷻ په تاکید قسمي سره ودوئ ته علم په قبیح د عمل مذکور حاصل وبولی حیث قال لقد علموا آه، او په دې آیت کي یې څنډي نفي کړی لدلالة لو الا متناعية عليه قيل في الجواب انهم لما لم يعملوا بعلمهم فكانهم لم يعلموا ذالک القبح، وقيل في المثبت لهم اولا العلم الاجمالي، والمنفي عنهم العلم التفصيلي وقال البيضاوي رحمه الله لو يعلمون قبح فعلهم يقيناً وما يترتب عليه من عذاب النار يوم القيامة ابد الابدين مافعلوه، او حسن بصري رحمه الله په جواب کي د سوال مذکور داسي وايي چي علم پر دوه قسمه دی، يو هغه علم دی چي د زړه په اعماقو کي وي او د هغه سره عمل هم لازم دی وهوالمنفی عن اليهود ويقال له العلم النافع، او بل علم دی پر یوازي ژبه باندي فذالک حجة الله علی ابن آدم رواه الدارمي وهو العلم المثبة لليهود، اول قسم د علم په دې آیت کي مراد دی ﴿انما يخشى الله من عباده العلماء﴾ او دې اول قسم ته اشاره په دې حديث کي هم ده ﴿ العلماء ورثة الانبياء يحبهم اهل السماء ويستغفرلهم الحيتان في البحر اذا ماتوا الى يوم القيامة رواه البخاري عن انس والى العلمين اشار النبي خير البشر ﷺ خير الخيار خيار العلماء وشر الشرار شرار العلماء رواه الدارمي﴾

پوهنه:- چي علامه د هغه علم چي اعماقو ته د زړه رسېدلي دي داده، چي مسارعت و اعمال صالحه و ته کوي او عمل په قرآن مبارك او په سنت نبوي ﷺ سره کوي، او هغه علم چي اصولو ته د زړه نه وي رسېدلی علامه يې داده چي قول او عمل يې سره مخالف وي، قال المحقق رحمه الله شعر

واعظان کین جلوه در محراب ومنبر میکند ❀ چون به خلوت میروند آن کار دیگر میکنند

**یوه خبره:-** چې یهودیان دوه قسمه دي یو قسم هغه وه چې که څه یې هم علم تر اعماقو د زړو رسېدلی و لکن چونکه حسد او عناد ورسره ملګری و، نو ځکه یې نتیجه د ایمان ورنه کړه الاماشذ ونذر کعبد الله بن سلام ﷺ و اضرابه ﷺ قال الله تعالی ﴿ یعرفونه کما یعرفون ابنائهم ﴾ او بل قسم یې هغه وه چې علم التورات صرف او صرف ددوي پر ژبو و کما قال الله ﴿ مثلهم کمثل الحمار یحمل اسفاراً ﴾ بعض علماء وایې چې زبات والی د علم په عالم سوء کې داسې مثال دی لکه سړی چې مرغوني ته او به ډېر ورکوي، نو هر څو چې اوبه ډېرې ورکوي تریخ والی ډېر زیاتېږي، او مثال د هغه علم چې لپاره د کسب د دنیا وي او لپاره د تحصیل د جاه او جلال وي د هغه مثال داسې دی لکه یو سړی چې د سرو زرو په کاچغه غول خوري، نو وسیله خو ډېره شریفه وه لکن متوسل الیه ډېر خسیس و قد ورد في الحدیث "من سره ان یعرف منزلته عند الله فلینظر کیف منزلة الله ﷻ في قلبه فان الله ینزل العبد عنده حیث انزله العبد من نفسه .

قال الشاعر

بروي ریا خرقه سهل است دوخت *** وگر برخدای درفروشی نکوست

**اللهم اوصلنا الی ماتحب وترضی و اجعل العقبی احب الینا من الدنیا، واخرج عن قلوبنا السمعآ والریاء وارزقنا من العمل مایوافق الشریعآ الغراء بجاه نبیک المجتبی ﷺ وصحبه اجمعین .**

# وَلَوْ أَنَّهُمْ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَمَثُوبَةٌ مِّنْ عِندِ اللَّهِ خَيْرٌ لَّوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ۝

او كه چيرې دوئ يعني اليهود المعاصرين ايمان يې راوړی وای پر محمد ﷺ او پر قرآن هر آينه ثواب له جانبه څخه د خدای ﷻ خير ؤ دوئ لره يعني تر هر جاه وجلال او مال وغيره كه دوئ علم درلو دی يعني چي ثواب د خدای ﷻ خير دی .

**نکته**:- چي تنوين د مثوبة لپاره د تقليل دی يعني لږ ثواب .

**فائده**:- ثوب او مثوبة چي مصدر ميمي دی معنی يې رجوع ده جزاء الهي ته چي وايي ولي چي محسن رجوع او اميدوهغه ته كوي .

**فائده**:- "لمثوبة الخ" جواب د لو دی والاصل لاثيبوا من عند الله جزاء خيرا مما شرو به انفسهم اومن كل ماسواه، فحذف الفعل وجعل الباقي جملة اسمية ليدل على ثبات المثوبة والجزم بخيرتها لو آمنوا .

**فائده**:- مفضل عليه د خير محذوف دی للدلالة على العموم .

**فائده**:- جواب د "لو" محذوف دی يعني لآمنوا، وباقي الكلام فيه كالكلام فيما سبق من قوله تعالى ولقد علموا الى قوله لو كانوا يعلمون .

**فائده**:- مراد د "امنوا" نه كما مر ايمان بالرسول، والقران دی او د "وتقوا" څخه مراد ترك د ټولو معاصيو دی التي من جملتها نبذ كتاب الله التورات واتباع كتب السحر .

**فائده**:- بعض مفسران رح وايي چي كلمه د "لو" لپاره د تمنی ده او "لمثوبة " كلام مستانف دی، او دا تفسير ضعيف دی يو په دې سبب چي

اصل په کلمه کي د "لو" شرط دی، او بل په دې سبب چي حقیقت تمني خو پر خدای ﷻ محال ده فلابدمن التاویل الی ان التمني من جهة العباد ففیه تکلف علی تکلف فاتهم .

**هروښ وایسي:**- چي شان نزول د درسب ایت دادی چي ابن المنذر یې روایت کړی دی چي مسلمانانو او اصحابو کرامو ﷺ به گاهي به علیه السلام ته وویل راعناً یعنې زموږ د پوهنې مراعات وکړه په خپلو خبرو کي یعنې ډېرې چابکي چابکي خبرې مه راته کوه بلکه په تدریج سره خبرې راته کوه تاچي موږ په وپوهېږو، او بعض مفسران د "راعنا" ترجمه داسي کوي چي ته زموږ مراعت وکړه زموږ د پوښتنو په اورېدو کي چي دا پوښتني موږ د بعضو مشکلو ځایونو په باره کي کوو، په هر صورت دا لفظ په لغت کي او په ژبه کي د یهودو سخت بد ښکنځل وه چي معنی یې داوه "یا احمق" مشتق د "رعونة" څخه دی په معنی د حمق، نو دا کلمه چي یهود واورېده نو بې یو د بله سره وویل چي په خوا به موږ علیه السلام ته په پټه ښکنځل کول اوس بې مخامخ ورته کوو. نو چي علیه السلام په گاهي خبرې کولې نو به دوئ ور رېغ کړه راعنا، او پټ پټ بې سره خندله نو سعد بن معاذ ﷺ د دوئ د خندا څخه په دې پوهېدی چي دا لفظ ددوئ په لغت کي بده خبره ده، نو بې یهودیانو ته وویل که چا ستاسي څخه وعلیه السلام ته راعنا وویل زه بې سره په توره خوځ کړم یهودیانو ورته ویل چي خو تاسي وایاست. فنزلت هذا الآیة .

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقُولُوا رَاعِنَا وَقُولُوا انظُرْنَا وَاسْمَعُوا ۗ وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿۱۰۴﴾

اى هغه كسانو چي ايمان يې راوړى دى، تاسي مه واياست كلمه د "راعنا" او داسي واياست يعني عند ضرورة عدم فهم كلام رسول الله ﷺ انظرنا يعني انتظر و تان بنا حتى نفهم كلامك، او يا معنى دا چي موږ ته وګوره او زموږ پوښتنه واوره، او تاسي خبري د عليه السلام اورئ په غور سره او په جمعيت د فكر حتى چي و "انظرنا" ته هم حاجت پاته نسي، او كافرانو لره يعني دغه يهودو چي دوئ به عليه السلام ته ښكنځل كوله او عمومي كافرانو لره چي دغه يهود هم پكښي داخل دي عذاب دى درد ناكه، او معنى د و "اسمعوا" داده چي تاسي نهي الهي د راعنا په ټينګه سره واورئ چي بيامو راعنا ترخوله ونه وزي.

**فائده**:- ددې آيت څخه دا وفهمېده چي سړى داسي الفاظ ونه وايي چي په هغو كي احتمال د تعريض پر بل چا وي، مثلا په يو مجلس كي يو په سر پك سړى ناستوي، او يا داسي سړى ناست وي چي ماينه يې لڅ مخ په بازارو كي ګرځي، يو بل د اهل مجلس څخه ووايي چي شكر دى چي خداى ﷻ په سر نه يم پك كړى او پر سر يې ښه وښتيان راكړي دي، او يا ووايي ويو بل چا ته چي زه په ستر كي دومره ټينګ يم چي ماينه تر سراى د باندي نه پرېږدم چي دا به په بازارو كي لڅ مخ ګرځي وامثال ذالك، چي په پښتو يې خار بولي، وجه د حرمت يې داده چي په دغه ډول الفاظو ازار د مسلمان دى په ژبه سره، وقد قال رسول الله ﴿المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده﴾

**سوال:-** علماء وايي چي لاباس بالمعاريض، وهو ان يتكلم الرجل بكلمة يظهر من نفسه شيئا ومراده شيئا آخر، يعني چي چاته يو خبره وکړي رهغه سړي يو څه ورښکاره کړي او مراد دده بل شی وي ؟

**جواب:-** دادی چي دا قسم تعريض هلته روا دی چي انسان ودرواغو ته مجبور سي نو په تعريض ځان له درواغو خلاصوي، او كه چيري ضرورت نه وي نو تعريض او تصريح دواړه ناروا دی، امثال التعريض الجائز ماجاء في الحديث ان عليه السلام ومعه ابو بكر ﷺ وكان رجل آخر يطلب رسول الله ﷺ ليقتله وكان الرجل الآخر يعرف ابابكر ﷺ ولا يعرف رسول الله ﷺ فقال الرجل الآخر لابي بكر ﷺ من معک فقال ابوبكر ﷺ رجل يهدني السبيل، فاظهر ابو بكر ﷺ بهذا الكلام للرجل انه يهدني الطريق الظاهر من طرق الارض واراد ابو بكر ﷺ السبيل الى الله والصراط المستقيم فمثل هذا التعريض جائز للضرورة وامثال هذه التعاريض كثيرة في كل لسان ولغة وفيها مندوحة عن الكذب الصريح .

مَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ
وَلَا الْمُشْرِكِينَ أَنْ يُنَزَّلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ خَيْرٍ
مِّنْ رَّبِّكُمْ وَاللّٰهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَنْ يَّشَآءُ وَ
اللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿١٠٥﴾

او خوښ نه لري او محبت نه لري هغه کسان چي كافران دي د اهل كتابو څخه يعني يهود او نصاری او نه هم مشركين خوښ ګڼي چي نازل ذي سي پر تاسي يعني محمد ﷺ چي هغه په اعتبار د اتباعو په ضمير د

جمعي سره را وړه سو، د یو خیر څخه چي مراد خندي دلته وحي دي او خدای ﷻ خاصوي په رحمت سره خپل چي نبوت دی هغه څوك چي د خدای ﷻ اراده وي او خدای ﷻ مالك د فضل او احسان دی، یعني بې علته او بې غرض والمقصود ان النبوت امر موهبي لیس معلول بعلة. حاصل د آیت دادی چې چي اهل کتاب په سبب د حسد علمی او په سب ددې چي نبوت د اهل کتابو حق دی نو پر تاسي یې نبوت نه دی پېرزو، او مشرکان په سبب ددې سادات او مشران د مکې خو موږ یو نو باید وحي الهی د موږ څخه پر یوه نازلي سوي وایي، نو پر یتیم د ابي طالب ولي وحي نازل سوي ؟

نو خدای ﷻ د دواړو فریقو رد په دې سره چي وحي او نبوت په اهل کتاب والي سره او د قوم په سیادت پوري اړه نه لري بلکه دا یو رحمت فضل موهبي الهی دی .

**یوه مسه**:- چي لفظ المشرکین پر لفظ د اهل الکتاب عطف دی او کمله د لا زائده ده د پاره د تاکید د نفي د وداد د مشرکینو څخه او کلمه اولی د من لپاره د استغراق دنفي ده، او کلمه د من دوهم لپاره د ابتداء ده ای خیرا مبتدء من جانب ربکم، او په دې آیت کي رد د قول د منافقانو دیهودانو هم وسو چي دوئ په خوله ویله چي موږ خیر او وحي او نبوت پر تاسي پېرزو دی، قال الله تعالی في حق المشرکین ﴿لو لا نزل هذا القرآن علی رجل من القریتین عظیم﴾

ددوئ مراد د قریتینو څخه مکه مکرمه وه چي متمول سړی او د ډېرو تابعانو څښتن الولید بن مغیرة و، او بل طائف و چي د هغه وطن شتمن سړی نعیم بن مسعود الثقفي و .

**فائده**:- معتزله وايي چي هر شی چي اصلح او فائده مند وي د بنده هغه کار پر خدای ﷻ واجب دی، او په دې آيت کي پر دوئ باندي رد دی ولي چي خدای ﷻ خپل ځان ذو الفضل وباله ذو الفضل والاحسان هغه سړی بلل کېږي چي شی وچاته ورکوي چي پر ده باندي لازم او واجب نه وي مثلاً که يو څوک په خيرات کي چاته يو شی ورکړي هغه ته مفضل ويل کېږي او که د چا پور پرباندي وي او هغه پور ورکړي هغه متفضل نه ګڼل کېږي کما هو الظاهر، وايضاً لازميږي پر مذهب د معتزله وو چي خدای ﷻ پر عليه السلام باندي تر ابو جهل بالافضل او احسان نه دی کړی ولي هر يوه ته يې هغه شی ورکړی دی چي پر خدای ﷻ واجب و.

**فائده**:- په دې آيت کي اشاره ودې ته هم راغله چي نبوت فضل الهي دی، او بعض خلګ چي له دې نعمت څخه محروم دي ددې سببه نه دی چي د خدای ﷻ په فضل کي تنګي سته په دې سبب دی چي په دې نه ورکړه کي د نبوت وبعض کسانو ته د حکمت الهي او مشيت کار فرمادی.

نقصان زقابل است وگرنه علی الدوام　　فيض سعادتش بهمه کس برابراست

**شارح العقائد وايي**:- که اصلح د عبد واجب وای پرخدای ﷻ نو بې پيدا کولای کافر فقير چي هم معذب په دنيا کي وي په قسم قسم مرضو او په فقر او مسکنت او هم معذب په آخرت کي وي بالخلود في نار الجهنم وشرب الحميم، ولي چي د اصلح لپاره يا عدم الخلق او يا په کوچني والي وژل دي او يا سلب العقل دی، او شارح العقائد زياته کړي ده چي احسان د خدای ﷻ پر نبي ﷺ بايد بالا وای تر احسان د خدای ﷻ د ابو جهل ملعون سره ولي چي معتزله پر دغه اصل دوجوب الاصلح پر

خدای ﷻ باندي خدای ﷻ غاية خپل مقدور د علیه السلام سره او د ابو جهل لعين سره وکړی یعني الاصلح ومفسدة هذا ظاهر لكل ذي عقل كه څوك تفصيل ددې مسئلې غواړي د شرح العقائد صفحه۷۵\۷۶ دي په غور سره مطالعه کړي او د شرح العقائد په صفحه نمبر (۶) کي داسي راغلي دي چي شيخ ابو الحسن الاشعري چي دده نوم علي دی او نسب نامه يې داده علي، بن اسماعيل، بن اسحاق، بن سلام، بن اسماعيل، بن عبدالله، بن ابي موسى الاشعري رضي الله عنه صاحب رسول الله ﷺ او ابو موسى رضي الله عنه اصلاً د يمن دی، وخپل استاد ابو علی الجبائي المعتزلي ته وويل چي ته څه وايه په هغو درې ورڼو کي يو مطيع او مؤمن مړسو، او بل عاصي او کافر مړسو، او بل کوچنی مړ سو؟

جبائي په جواب کي ورته وويل چي اول ته ثواب في الجنة ورکول کېږي، او دوهم ته عذاب النار في جهنم ورکول کيږي، والثالث يعني هغه کچني ته نه ثواب سته او نه عذاب يعني په جنت کي خو به وي لکن خادم د جنتيانو يعني د مور او پلار يا نورو قريبانو چي اهل الجنة وي، او ابو الحسن اشعري رحمه الله ورته وويل که دريم ورور يعني چي په کوچني والي مړ سوی خدای ﷻ ته وويل چي زه دي ولي تر لوی والي پرې نښودم چي لوي سوی وای ايمان به مي راوړی وای او استقلالاً لکه لويان جنتيان په جنت کي به ګرځېدای، اشعري رحمه الله ورته وويل چي خدای ﷻ په جواب کي څه ورته وويل، جبائي ورته وويل خدای ﷻ به ورته ووايي چي زه په تا خبر وم که مي ته لوي کړی وای ته کافر کېدې او په دوزخ که به وای نو تالره اصلح داوه چي په کچني والي مي مړ کړې.

شیخ اشعري ﷫ ورته وویل که هغه دوهم ورور چي پر کفر مړ ووکه يې خدای ﷻ ته وویل چي په ما خو هم خبر وې چي کافر کېږي. نو زه به دي هم په کوچنیوالي وژلی وای، اوس به له عذابه د دوزخ خلاص وای، مالره خو اصلح د کوچنیوالي مرګ وو ؟ خدای ﷻ به څه ورته وايي.

فبهت الجبائي، يعني جبائي حيران سو چي اشعري ته اوس څه ووایم فترک الاشعري مذهبه الى آخر ماقال العلامة التفتازاني ﷫.

**دروېش وايي**:- چونکه مشرکانو به دا ویل چي محمد ﷺ یو وار اصحاب ﷡ خپل په یو کار سره امر کړي او بیا څو ورځي وروسته د هغه کار څخه يې منع کړي، نو معلومه سوه چي دی د ځانه دا خبري کوي د خدای ﷻ له خوا نه دي نو دا آیت نازل سو.

**مَا نَنسَخْ مِنْ آيَةٍ أَوْ نُنسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَا أَوْ مِثْلِهَا أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٠٦﴾**

او هغه چي موږ يې نسخ کړو د آیت څخه.

نو "من" بیان د "ما" دی، او کلمه د "ما" شرطیه ده، او یا موږ هېر کړو د زړو څخه ستا او د حافظانو د هغه، نو موږ راتګ کوو په خیر تر هغه آیت

**پوهه**:- چي نـأت جزاء د ما شرطیه ده، د خیر څخه مراد نفع د بندګانو ده او یا اساني پر دوئ ده، او یا ډېروالی د ثواب دی، او دا مراد نه دی چي یو آیت قرآني خیر دی تر بل آیت ولي تول آیتونه د قرآن کلام الله دی او تول خیر دی، او یا په مثل د هغه آیت راتګ کوو فی الامور المذکورة، او ته نه يې خبر چي په تحقیق خدای ﷻ پر هر شي قادر دی

**پوهنه**:- چي دا استفهام تقریري دی یعني ته په دغه قدرت عظیمه د خدای ﷻ ښه خبر یې.

**فائده**:- په دې آیت سره دفع سو هغه سوال متوهم د بعضو دښمنانو د قرآن کریم، چي قرآن کریم که خبر الهی او کلام د خدای ﷻ وای نو ولي بعض آیتونه د قرآن منسوخ کېدل، ولي چي د نسخ څخه خو دا معلومېږي چي ناسخ خیر دی تر منسوخ؟

وحاصل الجواب: چي هر یو د ناسخ او منسوخ خیر دی وفي النسخ حکمة الهية كما سيئاتی.

**فائده**:- د نسخ دوې معناوي دي، یوه معنا نقل د شي دی کما في نسخت الكتاب ای نقلته، او بله معنا یې زائلول او رفعه ده کما نسخت الشمس الظل ای ازالته ورفعته، والمعنى الثانی هو المراد ه.

**پوهنه**:- چي نسخه په حقیقت کي بیان دی د خدای ﷻ له خوا چي د منسوخ آیت تعبد په قرآت سره پورته سو، که یې څه هم حکم باقي دی لکه آیت رجم «الشيخ والشيخة اذا زنيا فارجموهما نكالا من الله»

حکم چي رجم دی باقي دی، او قرآت یې منسوخ دی، والمراد بالشيخ والشيخة المحصن والمحصنة، یعني ماینه والا، او مېړه والا، او یا یې تعبد بالتلاوة باقي وې مگر حکم یې پورته سو، لکه عدت دوفات د ښځي دمېړه چي په منسوخ آیت کي یو کال تاکل سوی وو، حکم د هغه آیت خو پورته سو په عدت د ښځي چي مېړه یې مړسي څلور میاشتي اولس شپې، مگر تلاوت د منسوخ آیت په قرآن کریم کي سته.

او یا حکم او تلاوت یې دواړه منسوخ سي کما ورد في الحديث الصحيح چي د بعض صحابه کرامو ﷺ یو سورت په یاد وو چي همېشه یه

یې د تهجد په لمانځه کې وایه. یوه شپه چې راوېښ سوه او اراده د قرآت د هغه سورت یې وکړه، هیڅ شی یې په یاد کې نه ورتلی، سهار چې یې و علیه الصلوة والسلام ته شکایت وکړی نو علیه السلام ورته وویل چې هغه سورت د ټولو د زړو څخه خدای ﷻ پورته کړی. یعني سره د هغو احکامو چې په هغه سورت کې وه. او یا په بل حدیث کې راغلي دي، چې سورت احزاب دونه وو لکه سورت بقره، نو اکثره حصه یې د احکامو سره پورته او منسوخ سوه.

**پوه هغه**:- چې نسخ ګاهي واسهل ته تر منسوخ وي. لکه عدت د رفات د مېړه د ښځې چې په ابتداء کې د اسلام یو کال و، او بیا منسوخ سو وڅلور میاشتي او لس شپې ته، او په ابتداء کې د اسلام پر مسلمانانو فرض وه چې یو مسلمان به په جنګ کې د کفارو صبر کوي ولسو کافرانو ته. او هغه منسوخ سوه په صبر د یوه مسلمان و دوو کافرانو ته په جنګ کې. او ګاهي نسخ و اصعب او سخته تر منسوخ وي لکن ثواب یې ډېر وي. لکه فرضي روژه په ابتداء کې د اسلام یوه روژه د عاشورې وه. او بیا هغه منسوخ سوه درو روژو ته د ایام بیض په هره میاشت کې یعني ۱۳، ۱۴، ۱۵، او بیا هغه منسوخه سوه وفرضیت ته د میاشتي د روژې متصل. لکن په داسي ډول چې که څوك طاقت د روژې نیولو هم لري لکن فدیه ورکوي هم روا ده. او بیا هغه منسوخه سوه په دې آیت ﴿فمن شهد منکم الشهر فلیصمه﴾ یعني قطین ته د روژې فدیه ورکول نه دي روا. او یا داچي په ابتداء کې د اسلام مسلمانان مامور وه په ترك د قتال د کفارو. او هغه منسوخ سوه په فرضیت د قتال د کافرانو په آیت السیف سره یعني ﴿قاتلوا في سبیل الله الآیة، واقتلوا المشرکین حیث وجدتموهم الآیة﴾ او ګاهي نسخ ومثل ته د منسوخ وي لااشق ولااخف. لکه نسخ د توجه په

لمانځه کي وه بيت المقدس ته چي منسوخ سوه په توجه سره وبيت الله کعبې شريفې ته بقوله تعالى ﴿قد نرى تقلب وجهک فى السماء الى ان قال فولوا وجوهکم قبل المسجد الحرام الآية﴾

**فائده**:- بعض علماء وايي چي ددې آيت څخه دا معلومېږي يعني ﴿نات بخير منها او مثلها﴾ چي نسخه بېله بدله نه ده روا. او اثقل ته هم نه ده روا، او نسخ د کتاب الله په حديث هم نه ده روا، ولي چي حديث خو نه مثل د کتاب الله دى او نه خير.

والجواب چي ګاهي عدم د حکم اصلح او اسهل وي، او ګاهي اثقل انفع وي من حيث الثواب کمامر فى الامثلة المذکورة، او حديث مبارک خو هم مما اتاه الله تعالى دى. کما يدل عليه قوله تعالى ﴿وما ينطق عن لهوى ان هو الا وحى يوحى﴾

**فروبش وايي**:- چي مزيد تحقيق د نسخي او د مثال ددې په کتابو کي د اصولو د فقهې دې مطالعه سي وفيما ذکرناه کفاية ان شاء الله تعالى

**فائده مهمه**: پوه سه چي ابن کثير ﷫ او ابو عمر ﷫ کلمه د "تنسها" په زور د نون اول او سين مکسوره وبعدها همزه وايي يعني "تَنسئها" چي معنا يې نؤخرها مشتق د نساء په معنا د تاخير ده، نو يې معنا داسي کوي ﴿نؤخر حکمها ونرفع تلاوتها کما فى آية الرجم وقد مر﴾ نو پر دې تقدير نسخ اولا په معنا د رفع د تلاوت والحکم ده، وقد مرمثالها، او بعض علماء ددغه قرائت ترجمه داسي کوي ﴿نؤخرها فى اللوح المحفوظ يعني لم ننزلها عليک﴾ نو پر دې تفسير معنى النسخ الرفع بعد الانزال ده ومعنى النساء عدم الانزال ده.

او باقي قاريان د قراءتو سبعه يې "نُنسِهَا" وايي يعنې په ضمه د نون اول، او په کسره د سين بېله همزه يې وايي من الانساء يعني من باب الافعال مشتق د نسيان څخه دی چې ضد د حفظ دی کمامر مثاله من قصة سورة الاحزاب، وقصة ارادة بعض الصحابه ﷺ من قرائة بعض السور فی الصلوة الليل آه .

**درويش وايي:-** دا وو تحقيق ددې آيت چې په تفاسير معتبره وو کې او په کتابو د اصول الفقه کې موجود وو ومن الله التوفيق، قال المعنوي جلال الدين الرومي في مثنويه رحمه الله .

| | |
|---|---|
| رمز نسخ او ننسها | نات خيرا د عقب ميدان مها |
| هرشريعت راکه حق منسوخ کرد | او گياه برد وعوض آورده ورد |
| اندرين شهر حوادث مير اوست | درممالک مالک تدبير اوست |
| آنکه داند دوخت او داند دريد | هرچه را بفروخت نيکو ترخريد |

**درويش وايي:-** چې په مطبوعه قرآن مجيدو په تولو کې قرآءت د باقي قراوو مرجوع دی، قال الله تعالی .

**اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۱۰۷﴾**

آيا ته نه يې خبر او علم نه لرې ای محمد ﷺ چې په تحقيق خدای ﷻ لره ده بادشاهي او مالکيت د تولو اسمانو او ځمکو، او نشته تاسي لره ای دلي د کفارو په وخت د نزول دعذاب الهي پرته له خدای ﷻ څخه نه قريب او نه مدد کوونکي، چې له عذابه د خدای ﷻ تاسي خلاص کړي .

**پوهنه**:- چي د ولي او نصير تر منځ عموم وخصوص من وجه دی، چي ماده د اجتماع هغه قريب نسبي دی چي كومك يې دوسه پوره وي، او كاهي د سړي قريب خو وي لكن كومك يې لـه وسه نه وي پوره، او كاهي بېګانه سړی د سړي مدد او كومك وكړي.

**پوهنه**:- چي دا آيت لكه دليل پر هغه آيت دی ﴿ان الله على كل شيئ قدير﴾

**فائده**:- بعض مفسران وايي چي استفهام د الم تعلم آه استفهام تقريري دی، يعني د مدخول د لم نافيه تقرير او اثبات په مخاطب كي كوي، يعني ته علم لري پر دغه مضمون باندي، او بعض مفسران يې استفهام انكاري بولي يعني انكارد نفي څخه، نو نفي د نفي خو اثبات دی نو مقصود بيرته اثبات د علم دی فالمآل واحد، درويش.

**فائده**:- اګرچه مخاطب بالذات خو عليه الصلوة والسلام دی كما يدل عليه كلمة المفرد يعني تعلم لكن مراد عليه الصلوة والسلام او ټول مومنان دی، وانما اخص الخطاب به صلى الله عليه وسلم لانه اعلمهم ومبدا علمهم وعلى هذا، سوال د جمعيت د ضمير د لكم نه وارديږي كما لايخفى.

**پوهنه**:- چي په راتلونكي آيت كي د مفسرانو په شان نزول كي اختلاف دی، امام بغوي رحمه الله وايي چي دا آيت په شان كي د يهودو نازل سوی دی، چي دوئ وعليه الصلوة والسلام ته وويل ته مونږ ته كتاب د اسمان څخه جملة واحدة راوړه لكه موسى عليه السلام چي تورات جملة واحدة راوړی، نو مونږ به پر تا ايمان راوړو، او د حضرت عباس رضي الله عنه څخه روايت دی، چي رافع بن حرمله او وهب بن زيد و رسول الله ﷺ ته راغله او ورته وه

بي ویل ﴿یا محمد ﷺ اتنا بکتاب تنزله علینا من السماء نقرئه او فجرلنا الارض عیونا نتبعک ونصرتک﴾ او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چي دا آیت په باره کي د مشرکینو نازل سوی دی، حین قالوا للنبي ﷺ ﴿لن نؤمن لرقیک حتی تنزل علینا کتابا نقرئه﴾

او مجاهد رحمه الله وایي چي قریش د مکې وعلیه الصلوة والسلام ته وویل که ته نبي برحق یې نو موږ ته د صفا غر سره زر کړه، نو موږ به ایمان راوړو، علیه السلام ورته وویل نعم لکن دا معجزه به لکه مائده د بني اسرائیلووي که تاسي وروسته بیا هم پر کفر ټینګ واست. یعني عذاب استیصال به درباندي نازلیږي، نو دوئ وویل یا داسي نه غواړو فرجعوا.

او اسدي رحمه الله وایي چي عربو د مکې د علیه الصلوة والسلام څخه سوال وکړی ان یاتیهم الله فیروه جهرة فنزلت الآیه.

او بعض وایي چي قریشو د مکې وعلیه الصلوة والسلام ته وویل لن نؤمن لک حتی تاتی بالله والملائکة قبیلا.

**أَمْ تُرِيدُونَ أَن تَسْأَلُوا رَسُولَكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوسَىٰ مِن قَبْلُ ۗ وَمَن يَتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ﴿١٠٨﴾**

**پوهه:** - چي کلمه دام متصله ده مقابل یې هغه همزه دی چي په دمخه آیت کي تېر سو یعني په الم تعلم آه، نو معنا یې داده چي ،

آیا تاسي نه یاست خبر چي خدای ﷻ مالک الامور دی، او امر او نهي کوي څرنګه چي یې اراده سي، ام تعلمون" لکن تاسي ناحق او بې ځایه

سوالونه کوئ، لکه یهودو چي د موسیٰ علیه السلام څخه بې ځایه سوالونه کړل مثلاً ﴿ارنا الله جهرة﴾ الی غیر ذالک، ان تسئلوا" چي تاسي سوال وکړئ د رسول څخه ستاسي چي محمد ﷺ دی .

نووه فائده:- چي که سوال کونکي یهود وي کمامر في شان نزول الآیة، او یا مشرکان وي، کمامر ایضا في شان نزول الآیة، نو اضافت د رسول چي علیه الصلوة والسلام دی، ودوئ ته ددې سببه دی چي د علیه الصلوة والسلام رسالت عام دی الی الاسود والاحمر والی الیهود والنصاری والمشرکین، او که چېري سوال کونکي مسلمانان وي لکه چي په روح البیان کي وایي چي بعض مسلمانانو تفصیل د حکمت الهي په نسخ کي د بعض الآیات د علیه السلام څخه غوښتني، نو اضافت د رسولکم وتوجیه ته ضرورت نه لري، نو ځکه روح البیان ددې آیت داسي ترجمه کړې ده، نو تاسي اراده لري ای مسلمانانو چي تاسي بېځایه سوالونه وکړه د رسول ﷺ څخه ستاسي، وانتم مؤمنون به کما سئل موسیٰ الآیة، او روح البیان وایي والمقصود توصیة المسلمین بالثقة به علیه السلام وترک الاقتراح علیه ﷺ ای السوال منه ع م بلا رویة کما سئل آه .

غروښتي وایي:- چي دغه شان نزول چي روح البیان را وړی دی نورو مفسرانو نه دی تائید کړی. والله اعلم بالصواب .

نووه فائده:- چي کلمه د ما په کما سئل مصدریه ده، او دا مصدر تشبیهي دی، او صفت د مصدر محذوف دی، ای سوالا مشبها بسوال موسیٰ کذا فی روح البیان .

او بیضاوي رحمه الله احتمال د اَم منقطعه چي په معنا د بَـل آه دی هم راوړی دی، او سکاکي رحمه الله خو ویلي دي چي ام متصله په دې آیت کي نه

سي کېدای. او ده ویلي دي چي علامه د ام متصله داده چي وروسته تر ام به مفرد وي او علامه د ام منقطعه داده چي وروسته تر ام به جمله وي او دلته خو وروسته تر ام جمله ده.

**درویش وایي:-** چي نور نحاة ددغي علامې چي سکاکي رحمه الله په فرق کي د ام متصله او منقطعه راوړي ده انکار کوي، او دوئ وایي چي سره د وقوع د جملي وروسته تر ام هم ام متصله کېدای سي والعلم عند الله.

صاحب روح البیان وایي چي اکثر مفسرین رحمهم الله پر دي دي چي چي سبب د نزول د آیت یهودیان دي قال الله تعالی ﴿یسئالک اهل الکتاب ان تنزل علیهم کتابا من السماء الآیة﴾ وقال واضافة الرسول الیهم لانهم من امة الدعوة وان لم یکونوا من امة الاجابة وقال ومعنی تبدل الکفر بالایمان ترک صرف قدرتهم الی الایمان مع تمکنهم من ذالک وایثارهم للکفر علیه، وقال الامام الرازی رحمه الله فی التفسیر الکبیر وهذا اصح لان الآیة مدنیة، بلکه، دا سورت د اول ددي قول د خدای جل جلاله ﴿یابني اسرائیل اذکروا نعمتي آه﴾ حکایت دی له یهودو څخه او دلائل دي ددوئ سره.

**درویش وایي:-** چي صاحب د روح البیان د خپلي سابقه رایې څخه رجوع وکړه، یعني چي شان نزول ددې آیت مسلمانان دي کما مر عنقریب.

**نو درویش وایي:-** چي خدای جل جلاله لره دي حمد وي چي درویش د مخه لا ویل چي نور مفسران رحمهم الله د روح البیان هغه مخني رایې په شان نزول کي ددې آیت نه دی تائید کړي، او هغه د مخني فکرو په شان نزول کي ددې آیت چي سائلان قریش د مکې وه په حیز کي د خفا پاته سوه، والعلم عند الله.

**درویش وایي**:- که چیري شان نزول د آیت مزید استکشاف د مسلمانانو وایي د علیه السلام څخه په باره کي د حکمت د نسخ لا الانکار عن النسخ کما قاله صاحب روح البیان من قبل لم یکن لقوله تعالی ﴿ومن یتبدل الکفر بالایمان الآیه﴾ معنی لان مجرد استفسار المسلمین عن مزید کشف حکم النسخ لیس کفرا بل الکفر هو الانکار عن النسخ ولم یقصد المسلون الانکار عنه بل طلبوا العلم بتفصیل حکم النسخ، وهذا مثل سوال المتعلم عن المعلم مزید کشف المسئلة المغلقة، وکان عادة الصحابة ﷺ فیمالم یفهموه السوال عن رسول الله ﷺ فافهم واستقم، وعندی لعل هذا کان سبب رجوع صاحب روح البیان عن رائیه سابق فی بیان شان النزول والعلم عندالله .

**فصل**:- درویش وایي چي تولـه بدبختي او انکار لـه نبوت څخه د آنحضرت ﷺ چي معاصرانو یهودو تـه د عصر نبوي ﷺ پیښـي سوي دي د لاسـه څخه د علماو ددوئ پیښي سوي دي. ولي علماء ددوئ جاه طلبه، ریاست طلبه، دنیا طلبه وه، حسد درلودونکي وه، نو څکه نبوت خجسته مبارکه او ښائسته حلیه چي د آنحضرت ﷺ ددوئ په کتاب تورات کي وه دوئ یا پټه کړه او یا یې بدله کړه، ولي دوئ بېرېدل که چېري موږ حقیقت حال د نبي آخر الزمان ﷺ چي په تورات کي موجود دی بیان کړو نو یهود به توله په دین محمدي ﷺ کي داخل سي، او زموږ ریاست، جاه او جلال او نقود چي موږ به د عوامو څخه اخسته یا د زکوات یـا د خیرات په توګه نو هغه به زموږ له لاسه ووځي، نو دغه دي علماء سوء د ملت یهودیـه، او باید سړی پوه سي د ورته علماء سوء څخه هیڅ اهل ملت او دین خالي نه دی حتی ملت الاسلام، په دې باره کي ۳۳ مکتوب د دفتر اول د مکتوبات

قدسي ایات د امام رباني مجدد الف ثاني قدس سره ص ۹۳\۱۹۲ ملاحظه کړئ.

علماء سوء که بمحبت دنیا گرفتار اند وعلم را وسیله حصول دنیا ساخته اند آن علماء را رغبت دنیا ومحبت آن کلف چهره جمال شا نست (یعني داغهای سیاه) خلائق را اگر از ایشان حصول فوائداست اما علم شان درحق ذاتهای ایشان نافع نیامد هرچند تائید شریعت وتقویت ملت برایشان مرتب است. اما گاه است که این تائید وتقویت از اهل فجور وارباب فتورهم مي آید، چنانچه سیدانبیاء ﷺ درتائیدآن مرد فاجر خبر داده اند ﴿ان الله یؤید هذا الدین بالرجل الفاجر﴾ (یعني گاهي) در رنگ سنگ پارس اند که مس وآهن هرچه باو رسد زر گردد واو في حد ذاته بر حجریت خود است، وهمچنین آتشي که در سنگ وني مودع است عالم از آن آتش حصول منافع است، اما آن سنگ وني از آتش دروني اند، بلکه گویم که این علم درحق ذوات شان مضر آید، که حجت را برایشان تمام ساخت

**﴿ان اشد الناس عذابا یوم القیامة عالم لم ینفعه الله ﷻ بعلمه﴾**

**درویش وایي:**- چي دا حدیث نبوي ﷺ چي ابن عساکر له ابو هریره ﷺ څخه روایت کړی دی. او مراد د لم ینفع الله آه څخه دادی چي په علم یې عمل نه وي کړي. او په حدیث شریف کي راغلي دي **﴿للجاهل ویل وللعالم سبعین ویلا﴾** یعني جاهل او امي چي ګناه وکړي ده لره په هغه ګناه کي یو ویل دی، او هغه ګناه چي عالم وکړي هغه لره اویا (۷۰) ویله دي.

چگونه مضر نباشد علمیکه نزد خدا عزوجل عزیزاست واشرف موجودات آن را وسیله دنیای دنیه از مال وجاه وریاست ساخته اند، وحال انکه دنیا نزد حق تعالی ذلیل وخوار است وبد ترین مخلوقات.

**تروینه وایي:**- چي په حدیث کي چي روایت یې احمد، ترمذي او ابن ماجه رحمهم الله کړی دی داسي راغلي دي **﴿قال رسول الله ﷺ لو کانت الدنیا تعدل عند الله جناح بعوضة ماسقی کافرا منها شربة﴾**

**ترجمه:**- که دنیا برابره وای په دربار کي دخدای ﷻ د وزر سره د غوماشي، وکافر ته به خدای ﷻ نه وای ورکړی یوه غړپ.

پس عزیز خدا را عزوجل خوار ساختن (یعني علم) وذلیل او یعني دنیا عزت دادن بغایت مستقبح است وفي الحقیقة معارضه است بحق سبحانه وتعالی، ودر تدریس واقتا وقتي نافع آید که خالصا لوجه الله سبحانه باشد و از شائبه حب جاه وریاست وحصول مال ورفعت خالي باشد، علامة این خلو زهد در دنیا است وبي رغبت بودن است از دنیا ومافیها علما ئیکه بدین بلا مبتلا اند، وبه محبت این دنیا گرفتار اند علما دنیا اند ایشانند علما سو وشرار مردم ولصوص دین، وحال آنکه ایشان خود را مقتدای دین میدانند وبهترین خلائق مي انگارند، **ویحسبون انهم علی شیئ الا انهم هم الکافرون استحوذ علیهم الشیطان فانساهم ذکرالله اولئک حزب الشیطان الا ان حزب الشیطان هم الخاسرون﴾**

**تروینه وایي:**- چي دا ایت په علماء سوء کي د یهودیانو که څه هم نازل دی لکن العبرة لعموم اللفظ لالخصوص المورد.

عزیزي (یعني یك از اکابردین) شیطان لعین را دید (یعني بخواب) که فارغ نشسته است از تضلیل واغواء خاطر جمع ساخته آن عزیز سر آنرا پرسید (یعني چي ته ولي داسي خاطر جمع یې) لعین گفت که علماء سوء این وقت درین کار بایشان مدد عظیم کرده اند ومرا ازین مهم فارغ ساختند والحق درین زمان هر سستي ومداهنتي که در امور شرعیه واقع شده است وهر فتوري که در ترویج ملت ودین ظاهر گشته است همه از

شومي علماء سوء است وفساد نيات ايشان اند. علماء كه از دنيا بې رغبت اند واز حب جاه وريا ست ومال ورفعت ازاد از علماء اخرت اند، وورثه انبياء اند عليهم الصلواة والتسليمات، وبهترين خلائق ايشانند، كه فرداي قيامت سياهي ايشان (يعني هغه سياهي چي دوئ په هغه سره شرعي كتابونه نوشته كړي وه) بخون شهداء في سبيل الله وزن خواهد كرد ويله سياهي خواهد چربيد (يعني د سياهي پله پر وينو د شهداو په غالبه راسي)

ونوم علماء عبادة در شان ايشان متحقق است، ايشانند كه جمال اخرت در نظر شان مستحسن آمده، وقباحت دنيا وشناعت آن مشاهد گشته آنرا بنظر بقاء ديدند واين را بداغ فنا متسم يافتند لاجرم خودرا بباقي سپردند واز فاني باز داشتند شهود عظمت آخرت ثمره شهود عظمت جلال لايزال است، وذليل داشتن دنيا ومافيها از لوازم عظمت آخرت است، لان الدنيا والآخرة ضرتان ان رضيت احدهما سخطت الاخرى، اگر دنيا عزيز است آخرت خوار است. واگر دنيا خوار است آخرت عزيز است، جمع اين دو امر از قبيل جمع اضداد است. ماحسن الدين والدنيا لو اجتمعا (يعني شاعر جمع دين ودنيا بكلمة لو امتناعي آورده)

دا وو مكتوب د امام رباني رحمه الله چي ملا محمد لاهوري صادر كړى و

## تبصره

**درويش وايي**:- وايي چونكه حضرت مجدد عليه الرحمه په بيان د علماء سو يعني علماء الدنيا او علماء زهاد يعني علماء الآخرة فرق كړي دي، نو درويش په دې باب كي يو څو پوښتني مطرح كوي، تاچه د علماء دنيا او د علماء الآخرة پوره تميز وسي -

**سوال:**- یو عالم دی عیالداره د عیال د نفقې لپاره بلا اسراف یو دکان را ایستلی وی، چې د هغه په وسیله د عیال نفقه برابروي او د سوال او فقر څخه پر اغنیاء خپل آبرو یې ساتلې وي، او که یې په دکان کې زکوات لازم سي هغه ورکوي، آیا دا عالم الدنیا او په بل عبارت د علماء سوء څخه دی او که څرنګه ؟

**ځواب:**- دا د زهادو علماء الآخرة څخه دی، ولې چې نفقه د عیال فرض ده، نو دا دکانداري دده عین عبادت دی، الکاسب حبیب الله حدیث نبوي ﷺ دي.

**سوال:**- یو عالم چې د عیال لپاره یو سر پناه سرای رانسي، او د هغه لپاره کوشش کوي بېله سواله او بېله اسرافه، دا عالم الدنیا دی او که عالم الآخرة ؟

**ځواب:**- دا عالم الآخرة دی ولې چې په فقه شریفه کې وایي چې څوک چې بالانقدي روپۍ تر مسکن او اثاث البیت لري، نو په هغو کې زکوات سته او که بالابود نقود یې نه درلوده نو پر هغه باندې زکوات نه سته.

**سوال:**- یو عالم دی عیال داره، نو دی امامت په تنخواه کوي، او یا تعلیم القرآن، یا په یو مدرسه کې درس په تنخواه ورکوي بېله دې چې دی طالب الریاست والجاه والجلال او یا مرائي وي، نو دا عالم د کومې ډلې څخه دی ؟

**ځواب:**- د متقدمینو فقهاء رحمهم الله په نزد اخذ الاجرة پر دغو کارو ناجائز دی، او متاخرینو فتوی د جواز ورکړې ده.

صاحب د شرح الوقایه یې علت دا بولي لظهور التواني في امور الدین، یعني پخوانیو عوامو او اغنیاوو د امام مسجد یا مدرسانو د مدرسې ضروریات بېله اشتراطه ورپوره کول نو اشتراط یې حرام و.

لکن په اوسنۍ زمانه کي چي اغنیا او عوام پست همته سوه چي د عالم او مدرس و ضروریاتو ته نه ګوري چي شرط یې نه کړي، نو د مجدد رحمه الله په نیز دا عالم الدنیا دی او عالم الآخرة نه دی کما یظهر من قوله وتدریس و افتاء وقتی نافع آید آه، او په نیز د متاخرینو د فقهاء دا مزدوري او تنخوا اخستل منافي ده زهد نه دی لان الضرورت تبیح المحظورات.

**سوال**:- یو عالم چي تجارت کوي، او په تجارت حریص هم وي نه لپاره د قصور عالیه فوق الحاجة د جوړولو په نیت، یا د ډېر قیمت د سپور والي د لنډکوزر، پېجارو وغیره د راتیولو په نیت، بلکه په دې نیت حریص وي چي د اقرباؤ سره به صله رحمي، او یا د طالبانو د مدارسو دینیه سره به مرسته په وکړم، او یا په بناء د مسجد کي به یې صرف کړم. او یا د یتیمانو، کونډیانو سره به کومک وکړم او داغسې هم کوي، نو دا عالم زاهد او د علماء څخه د آخرت دی او که څرنګه؟

**جواب**:- که ریاء او سمعه نه وي په کړه، دا خو ټولي لازي د خیر دي او په قرآن مبارك او په حدیثو مبارکه وو کي مامور بها یا وجوبا یا استحبابا هم دي، نو داسې عالم د شرائطو مذکوره وو په مراعات بېله شکه او شبهې د علماء څخه د آخرت دی، او زاهد عالم دی.

**سوال**:- بعض اهل الله ډېر متمول او د شتمنۍ خاوندان وي، لکه خواجه عبید الله احرار رحمه الله، آیا دغه شتمني او اموال کثیره دده زهد ته تاوان رسوي او که څرنګه؟

**فوائد**:- حب الدنیا چي په شان کي يې دا حديث مبارك راغلى دى ﴿حب الدنيا راس كل خطيئة﴾ هغه محبت قلبي صفت دى، علامه يې داده چي حلال او حرام فرق نه پر لري، او په لارو کي د خير يې نه صرفوي، او په حرامه لار کي يې په محبت صرفوي، مثلاً که يو سائل او يا د محل سړى يې ډېر مسکين وي، او دى په خبر هم وي، او هغه دده څخه خيرات يا زکوات وغواړي دى صرف خداى ﷻ دې درکړي ورته ووايي، او چي د زوي واده يې سي نو په لوي هال کي ډېر پسونه حلال کړي، او شوقيان غزل چيان را وغواړي، او تر سهاره پوري ساز او صحبت جاري وي، او فساق وفجار ټوله پر راجمعه وي وغير ذالك من الامور الشيطانية.

او چي دا علامې نه وي پکښې، بلکه صرف دا اموال په سبل او لارو کي د خير صرفوي طلبا لرضاء الله تعالى هغه اموال كثيره دده وزهد ته تاوان نه رسوي، بلکه صرف فى سبل الخيريه لا زهد تينګوي، نو کوم اولياء الله چي شتمن وي هغه د علماو څخه د آخرت دي، او زاهد علماء دي، لکه نوموړى خواجه ﷫ چي همدغسي قلبي زهد او عدم المحبة يې درلودى، چنانچه عارف جامي ﷫ په شان کي د نوموړي عارف او ولي الله په باره کي داسي ويلي دي.

چون فقر اندر قباى شاهي آمد ❋ ❋ ❋ به تدبيري عبيدالله آمد

**پوښتنه**:- چي وروسته تر غزاء د احد چي مسلمانانو ته لوي هزيمت ورپه برخه سو، او اويا (۷۰) نامورو صحابه كرام ﷺ په غزاء کي جام د شهادت فى سبيل الله نوش کړى، نو بعض يهوديانو وحذيفه بن اليمان ﷺ او عمار بن ياسر ﷺ ته وويل که تاسي پر حق دين واى نو دومره لوي شکست به مو ولي په برخه کېدى، نو اوس لا وخت دى زموږ په دين

یهودیت کي داخل سی. او یه دي باید پوه سئ چي موږ پر حق دین یو، فنزلت هذه الآیة

## وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ لَوْ يَرُدُّونَكُم مِّنۢ بَعْدِ إِيمَٰنِكُمْ كُفَّارًا

او خوښه لري ډېر د اهل الکتاب یعني یهود چي تاسي رد کړي د دین اسلام څخه وروسته تر ایمان ستاسي کافران.

**فائده**:- یهودو چي عمار بن یاسر او حذیفه بن الیمان ﷺ ته دعوت د یهودیت ورکړی، نو عمار ﷺ وهغو ته وویل ""کیف نقض العهد فیکم"" څرنګه دي د وعدې ماتول په تاسي یهودو کي ؟

هغو ورته وویل چي لوېه ګناه ده، نو عمار ﷺ ورته وویل چي ما عهد کړی چي زه به کفر په علیه الصلوٰة والسلام سره څو زه ژوندی یم نه کوم.

نو یهودو وویل چي عمار خو زموږ له دینه ووتی په داسي ډول چي بیا د رجوع زموږ ودین ته امید هم ورته نسته ""فکیف انت یا حذیفه الا تبایعنا"" نو ته څرنګه ای حذیفه زموږ سره بیعت د یهودیت نه کوې ؟

حذیفه ورته وویل ""رضیت بالله ربا، وبمحمد نبیا، وبالاسلام دینا، وبالقرآن اماما، وبالکعبة قبلة، وبالمؤمنین اخوانا"" نو یهودیانو ودوئ ته وویل ""واله موسی لقد اشرب في قلوبکم حب محمد"" قسم په خدای ﷻ د موسی دی چي ستاسي په زړو کي محبت د محمد ﷺ ځښل سوی دی نو بیا عمار او حذیفه ﷺ دا واقعه او قصه و علیه الصلوٰة والسلام ته وکړه نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل ""اصبتما خیرا وافلحتما""

**پوښتنه**:- چي کلمه د لو وروسته تر فعل چي راسي د حروف مصدریه څخه ده، او معنی د تمنی خندي فهمېږي، او د کفارا معنا دلته

داده "مرتدين عن دين الاسلام" او حال دى له ضمير څخه د مفعول په يردونكم كي، او يا مفعول ثاني دى كه يردونكم متضمن كړئ معنى لره د يصيرونكم .

**فائده**:- كلمه د لو" كه څه هم مصدريه ده لكن صرف په معنى كي د فعل تاثير كوي يعني فعل په معنا د مصدر گرځوي، او په لفظ كي تاثير نه كوي يعني عمل د لفظ آن مصدريه نه كوي، څكه نون يې په يردونكم كه نه دى حذف سوى، كذا في البيضاوي، وروح البيان، والمظهري وغيرها من كتب التفاسير .

## حَسَدًا

مفعول له لقوله ود ، يعني دغه وداد د دوئ له جهته د حسد دى ستاسي مسلمانانو سره يعني نه له سببيته د ديندارى "والميل الى الحق ولو على زعمهم" لكه موږ مسلمان چي دا خوښه لرو چي كافران ټول مسلمانان سي لكن نه له جهته د حسد ددوئ سره بلكه له جهته د ميل الى الحق وهو دين الاسلام او له جهته څخه دزړه سوي پر دوئ باندي نو زموږ دا دعوت و د ين اسلام ته عين محبت او دوستي ده د دوئ سره او دا حق دين مو پر دوئ پېرزو دى .

## مِّنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ مِّنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ

پس له دې څخه چي حق ددوئ ته ښكاره سو يعني حقوالى ددين د اسلام په معجزاتو باهراتو سره د عليه الصلوة والسلام او په نعتو سره دده ﷺ في التورات "من عند انفسهم" متعلق دى د يود سره يعني، ودادا ناشئا من انفسهم لا لاجل مراعات دينهم، او يا متعلق دى د حسدا سره يعني ددوئ حسد ناشي دى د اعماقو څخه د زړو لا باللسان فقط .



Scanned by CamScanner

# فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا

**پوهنه**:- چي د عفو معنا داده چي دوئ ته عذاب مه ورکوئ، او تاسي صفح يعني روي گرداني خندي وکړئ يعني په ژبه سرزنش مه ورکوئ، او ډېره ملامتيا مه پرواياست. نو ترک د عذاب چي د عفو معنا ده ترک لره د صفح نه دى مستلزم، ولي کاهي چي زوئ د سړي مثلا يو بد کار وکړي چي د هغه کار کولو په سبب زوئ مستحق د ضرب او کوب وي لکن پلار يې تر هغه ورتېر سي مګر په خوله ملامتيا پر وايي. فلا يرد ان العفو والصفح واحد او يستلزم احدهما آخر فافهم .

# حَتّٰى يَأْتِيَ اللّٰهُ بِأَمْرِهٖ

تر هغو چي خداى ﷻ راتګ کوي پخپل امر سره يعني په باره کي د يهودو .

**پوهنه**:- چي مراد د امر څخه د خداى ﷻ حکم دى، د خداى په جنګ سره د يهودو او پر دوئ جزيه اچول، او يا قتل عام د بني قريضه وو دى او جلا وطن کول د بنو نضير دى .

**پوهنه**:-چي صحابه ﷺ وو د عليه الصلوة والسلام څخه اجازه وغوښتل چي دغه يهود چي عمار او حذيفه ته يې دعوت د کفر او يهوديت ورکړى وو مړه کړي، نو دا آيت " فاعفوا آه" نازل سو .

# إِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ

**درويش وايي**:- چي اول عصيان چي چا د خداى ﷻ څخه کړى دى هغه حسد او کبر دى چي د ابليس څخه صادر سو " حين امره الله جل

ذکره بالسجود الی آدم ﷺ ، نو ابلیس د آدم ﷺ سره یې پر دې رتبه عالیه چې و آدم ﷺ ته یې ورکړه حسد پیدا سو او بل یې ځان تکبرا تر آدم ﷺ لوړ وباله "ابا واستکبر. د حسد په باب کي بعض الهي پوهان وایي چي حاسد د خدای ﷻ سره په مبارزه کي دی د پنځو وجهو څخه.

(۱) اول دا چي دی مبغوض بولي هر نعمت د خدای ﷻ چي دده محسود ته یې ورکړی دی.

(۲) دوهم دا چي دی ددې تقسیمه څخه ناراض دی، یعني ولي یې ومحسوډ ته پلانی نعمت ورکړی دی.

(۳) دریم دا چي نعمت الهي فضل الله یؤتیه من یشاء او حسد د خدای ﷻ په فضل سره بخل کوي.

(۴) څلورم دا چي حاسد د ابلیس خصوصي معاون دی په حسد کي.

(۵) پنځم دا چي د هغه ولي الله سره چي خدای ﷻ وهغه ته کرامت د نعمت کړی دی حاسد یې مبغوض بولي، یو محقق وایي

هم یحسدوني وشر الناس کلهم من عاش في الناس یوما غیر محسود.

**حکایت**:- یو خوږ ژبی سړی به د باچا دربار ته همېشه ورتلی، او د لږ خوږو خبرو څخه علاوه به یې هره ورځ شاه ته دا ویل "احسن الی المحسن باحسانه فان المسئ سیکفیه اسائته" یعني ته د مخلص سړي سره په سبب دده د اخلاص ښه کوه، ولي بدکاره سړی به خدای ﷻ رد کړي پخپلي بدکارۍ سره، نو شاه دا سړی په سبب دده د خوږو خبرو ډېر نازوی، او د شاه د چوکۍ سره اوله چوکۍ دده ایښوول کېده چي دا چوکۍ باید د لوئ وزیر وای، نو د شاه یو لوئ وزیر ددغه سړي سره حسد پیدا سو، نو یې دا حیله ورته وسنجول، چي یوه ورځ یې هغه سړي ته وویل چي ته سهار وختي زما مهمان خصوصي یې هغه سړي قبوله کړه. او سهار وختي د هغه وزیر

کړه ورغلی هغه وزیر هر شی چي پخ کړی و فوق العاده وړه یې ور اچولې وه، او د پیازو څخه یې سلاته جوړه کړې وه، هغه سړي هم په مزه مزه هغه توله خواړه وخوړل، چونکه د دربار شاهي وخت لا نه وو، نو هغه سړي وزیر ته وویل چي زه به اوس کور ته ولاړ سم، او د دربار شاهي پر وخت به دربار ته درسم، وزیر ورته وویل چي یوه خبره پیاد لره چي پر هغه خپل چوکۍ چي شاه ته نژدې ته! چي کښېنې، نه باید چي ستا د خولې بد بويي پر شاه ولاړه نه سي چي ډېر به دي سخت بې عزته کړي، او احتمال سته چي اینده به دي له درباره منع هم کړي، سړي ورته وویل چي ښه دی، نو هغه سړی کور ته ولاړی او وزیر حاسد قبل الوقت شاه ته ورغلی چي ته دا سړی دومره نازوې او هغه هرځای وایي چي د شاه د خولې بوئ خي. او دی ما خان ته نژدې کښېنوي او ډېر ورسره په عذاب یم، شاه ته ډېر درد ورغلی نو یې وزیر ته وویل چي ستا د خبري تصدیق به زه په څه سره کوم ؟ وزیر ورته وویل چي نن دده چوکۍ ډېره تر پخوا خان ته نژدې کښېږده بیا وګوره چي دی څه کوي، نو څه وخت چي دربار جوړ سو او شاه پر خپل تخت او چوکۍ کښېنستی او هغه سړی راغی هغه بې چاره ډېر لېري د شاه څخه پر بله چوکۍ کښېنستی، شاه ورته وویل دلته نژدې راسه، دی چي نژدې ورغلی د خپلي خولې د بد بووي له سببه یې پر خوله او پزه یو دسمال ونیوی، نو د شاه یقین سو چي د وزیر خبره رشیتا وه، رفته رفته چي شاهي مجلس پر ختمېدو سو شاه کاغذ را واخستی خط یې پر نوشته کړی او شاهي ټاپه یې پر ولګول، او هغه سړي ته یې وویل چي ته کښېنه، نور وزیران چي ووتل هغه خت یې وده ته ورکړی چي دا فلانی والي ته ورسوه، شاه په کاغذه کي نوشته کړي وه وخپل والي ته چي حامل رقعي هذه چي درغلی سر یې پرې کړه پوست یې وکاږه د پروړو یې ډک کړه ماه ته یې را واستوه، د چا نوم یې

نه وو نوشته کړی، د شاه قانون له پخوا څخه دا وو چې ده به پخپل مکتوب نوشته او ټاپه به یې پرووهل. هغه د انعام لپاره به وه، د حاسد وزیر دا خیال سو چې شاه وهغه سړي محسود ته یو انعام نوشته کړی، نو دباندي ورته ولاړ وو، هغه سړی چې راووتی حاسد وزیر ورته وویل چې خط د څه شي لپاره شاه درکړی؟ هغه سړي ورته وویل چې نور خبر نه یم خط یې په لفافه کي اچولی دی مهر یې پر لګولی دی، ماته یې وویل چې دا خط فلانکي والي ته وروړه، او جواب راوړه، د حاسد وزیر د شاه د پخواني قانون په اساس خیال ددې سو چې د انعام مکتوب دی، نو هغه سړي ته یې وویل چې ته هغه والي پیژنې؟ سړي ورته وویل یا! زما دا قصد وو چې ستا څخه به پوښتنه وکړم، وزیر حاسد ورته وویل چې مکتوب ماته راکړه زه به یې نن ورسوم صبا ته لږ ناوخته دربار شاهي ته راسه، هغه سړي مکتوب حاسد وزیر ته ورکړی، حاسد په تلوار سره هغه مکتوب شاهي والي ته ورسوی، والي چې خط خلاص کړی او ملاحظه یې کړی والي جلاد را وغوښتی چې ددغه سړي سر پرې کړه، وزیر حاسد بغاري کړې چې دا خط شاه د بل سړي په لاس ورکړی و، هغه سړي ستا خای نه وو لیدلی نو ما خندي راواخستی، والي ورته وویل چې د هغه سړي نوم په مکتوب کي نسته فقط وفقط حامل رقعه هذا نوشته دی، او حامل ته یې، حاسد ورته وویل چې ته فورا ما مه وژنه صبا شاته یو مکتوب ورواستوه چې ستا دغه فلانی وزیر مقصود له وژلو وو؟

والي ورته وویل چې ماته شاه نوشته کړي دي چې حامل رقعه فوراً مړ کړه او پوست یې ماته راواستوه، خیر وزیر حاسد یې مړ کړی آه.

صبا چې شاهي مجلس جوړ سو هغه محسود سړی دربار ته ورغلی شاه حیران سو چې دا ولي ژوندی راغلی، نو یې هغه سړي ته وویل چې خط دي

څه کړي؟ سړي ورته وویل چي فلاني وزیر ماته وویل چي مکتوب به زه ورسوم، نو باچا دده څخه پوښتنه وکړه چي تا رشتیا خلګو ته ویل چي د شاه د خولې بوي ځي؟ هغه سړي ورته وویل چي سبحان الله زه به ولي داسي کاذبه خبره کوم، نو شاه ورته وویل چي پرون چي ماته نژدې راوغوښتې تا ولي دسمال پر خوله او پزه ونیوی. نو هغه سړي د وزیر د مهمانۍ قصه ورته وکړل، نو شاه ورته وویل چي ورسه پر خپله پخوانۍ چوکۍ کښېنه، **فقد صدق مقالتک السابقة احسن الی المحسن باحسانه فان المسیٔ سیکفیه اساتته .**

**فروښي وايي:** - چي دا حکایت روح البیان په ډېره اجمالي توګه راوړی او ما معقول تفصیل ورکړی.

**وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ**

عطف دی پر فاعفوا ګویا خدای ﷻ دوی امر کړه په صبر سره پر ازا د یهودو او امر یې کړه په التجاء سره د خدای ﷻ په عباداتو سره، که فرائض وي که واجبات وي، که مستحبات وي په قرینه ددې قول د خدای ﷻ .

**وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١٠﴾**

یعني هغه عبادت او د خیر کار چي تاسي یې له مخه یعني په ژوند واستوي و آخرت ته تاسي به پیدا کړئ هغه عبادت یعني ثواب د هغه کار خیر، مونږ ثواب د هغه ووایه ولي چي کار د خیر خو عرض دی باقي نه پاتېږي، که پاته هم سي نو د چا څه رغبت ورته کېږي په اخرت کي نو په

دې آیت کي خیر عام دی ټولو اعمالو صالحه وو ته شامل دی من العبادات المذکورة که لږ وي او که ډېر لقوله تعالی " ومن یعمل مثقال درة خیرا یره.

**پوښتنه**:- خدای ﷻ صلوت او زکوت ذکر کړه او سره ددې کارونه د خیر خو ډېر دي، روژه هم ده، حج هم دی، او د منهیاتو څخه یې هیڅ شی نه دی ذکر کړی حکمت یې څه دی؟

**ځواب**:- لمونځ اعظم له عباداتو بدنیه وو دی چي ټول اعضاء د بدن په عبادت سره مشغوله دی په لمانځه کي، او چونکه په لمانځه کي اکل او شرب هم نسته نو ګویا روژې ته هم شامل دی، او چونکه لمونځ چي پر حقیقت برابر وي د ټولو منهیاتو مخنوی کوي، قال الله تعالی " ان الصلوة تنهی عن الفحشاء والمنکر" نو چونکه لمونځ داسي جامع عبادت دی، قال علیه الصلوة والسلام "الصلوة عماد الدین فمن اقامها فقد اقام الدین الخ" او زکوات جامع ټولو عباداتو مالیه وو لره دی کصدقة الفطر، والاضحیة، والصلة مع الاقرباء الاقرب فالاقرب وایتاء الیتمی والمساکین وغیر ذلک ولاجل ذلک قال علیه الصلوة والسلام الزکوت قنطرة الاسلام، او په حج کي هم عبادات بدنیه سته او هم مالیه کما لایخفی.

**پوهنه**:- چي سړی چي مړ سي، خلک وایي څه شی یې پاته سو، او ملکي وایي څه شی یې د مخه استولی دی کما جاء فی الحدیث النبوي ﷺ

**فائده**:- دا آیت " والله خبیربما تعملون" هم ترغیب دی د خیر د کارو او هم ببرول دی د بد و کارو څخه ولي چي مطلق عمل عام دی خیر او شر دواړو ته شامل دی او لږ او ډېر د خیر او شر هم شامل دی، کما جاء فی آخر سورت اذا زلزلت الارض الی آخر السورة.

د حضرت عمر ﷺ څخه روایت دی چي یوه ورځ د بقیع هدیرې ته ورغلی، نو یې وویل السلام علیکم اهل القبور اخبار ماعندنا. ان نسائکم قد تزوجن، و دورکم قد سکنت واموالکم قد قسمت. یعني زموږ له خوا ستاسي په باره کي خو حال دادی چي ستاسي ماینو مړونه وکړه. او ستاسي سرایونه د نورو د سکونت ځای سوه، او مالونه ستاسي وویشل سوله، نو عمر ﷺ ته هاتفي آواز وسو اخبارما عندنا ان ماقدمناه وجدناه، وما انفقنا ربحناه، وماخلفناه. فقد خسرناه. یعني زموږ له خوا خبر دادی چي هغه عبادات چي موږ له مخه استولي وه هغه مو پیدا کړه، یعني ثواب د هغو. او هغه مالونه چي موږ په لارو کي د خیر نفقه کړي وه په هغو کي مو ګټي وکړې. او هغه مالونه چي موږ تر شا پرې ایښي وه په هغو کي مو تاوان وکړي، سعدي شیرازي ﷺ وایي

تو غافل در اندیشه سود ومال
که سرمایه عمر شد پایمال

غبار هوا چشم عقلت بد وخت
سموم هوا کشت عمرت بسوخت

بکن سرمه غفلت از چشم پاك
که فردا شوي سرمه در چشم خاك

**فائده:-** سړی چي مړ سي تول عملونه یې قطع کېږي، مګر یو د عیال مالي ثواب نه قطع کېږي، لکه بناء د مسجد، او یا عمومي پل. او یا وقفي مځکه یا سرای وغیره، قال السعدي الشیرازي ﷺ في البستان

از آن کس که خیري بماند روان
دمادم رسد رحمتش بر روان

نمردانکه ماند پس از وي بجای

پل ومسجد وخان مهمان سرای

هر آن کو نماند از پس یادگار

درخت وجودش نیاورد بار

وگر رفت وآثار خیرش نماند

نشاید پس از مرگ الحمد خواند

قال علیه الصلوة اذا مات الانسان انقطع عمله الا من ثلاث

(۱) من صدقة جارية، والمذكورات الصدقات الجارية

(۲) او بل د عيال عقلي عمل دی چي همېشه ثواب مري ته رسېږي، لكه هغه علم چي پاته سي چي خلكك نفع څندي اخلي واليه اشار النبي ﷺ او علم ينتفع به.

پوښتنه:- چي علم ينتفع به عام دی، كه دده شاګردان پاته سي، او يا تصنيفونه په علومو شرعيه وو كي لكه تفسير القرآن او يا شرح د يو كتاب، د احاديثو مباركه وو، او يا په فقه كي تصنيف، او يا په عقائدو كي تصنيف او يا په هغو علومو كي تصنيف چي پر هغو علومو شرعيه علوم موقوف وي كالتصنيف في الصرف، والتصنيف في النحو، والتصنيف في المعاني والبيان والبديع، او تصنيف في علم يتميز به القرآن عن الشعر كالتصنيف في علم العروض والقوافي، او علم يستنبط به غرائب القرآن والحديث كعلم الادب العربي وغير ذالک كالتصنيف في الرد على اصول الفلاسفة، قال الامام السخاوي رحمه الله يشمل الوعيد المذكور في الحديث النبوي ﷺ، يعني قوله عليه الصلوة والسلام من كتم علما يعلمه الجم بلجام من النار، هغه چا ته چي د علومو شرعيه كتابونه ورسره موجودوي او د نفعي لپاره يې طالب العلم ته نه وركوي.

**دروېش والې**:- چي په اوسني زمانه کي داسي طالب علم به ډېر نادر پیدا کېږي چي امانت او عاريت کتاب دي بېرته مالك ته د كتاب رد كړي، نو له دې سببه که يې څوك منع كړي ګناه به نه وي ان شاء الله تعالى

(۳) او بل د عيال نسبي عمل دی من البنين والبنات واليه اشار النبي ﷺ بقوله، او ولد صالح يدعوله. قيد بالصالح لان الطالح لم ينفع نفسه فكيف ينفع غيره .

**فائده**:- پلار د زوئ په ګناه خدای ﷻ نه سي چي پر هغه ګناه پلار نه وي باعثه كړی كالسرقة وغيرها .

**فائده**:- قيد عليه الصلوة والسلام بقوله يدعوله لپاره د باعثه کولو د زوئ پر دعاء د پلار او مور ورنه پلار او مور د زوئ په عمل صالح ورسره شريك دي دعاله اولم يدعوله .

**پوه سه**:- چي په حديث شريف كي راغلي دي چي وفد يعني يو هيئت د بني نجرانو چي نصارى وه مدينة الرسول ﷺ ته راغلي وه لپاره د مناظرې د رسول الله ﷺ سره. نو يهود د مديني منورې هم هغه مجلس ورغله، يو وار ددغه اهل كتابو تر منځ بحث شروع سو، او يو د بل د نبي د كتاب تكذيب يې سره شروع كړی، نو يهوديانو وويل " لن يدخل الجنة الا من كان هودا، او نصارى وو وويل لن يدخل الجنة الا من كان نصارى. فنزل هذه الآية

**وَقَالُوا**

ای اليهود والنصارى

**پوه سه**:- چي يهود جمع د هائد ده په معنى د تائب دی. او دا نوم دوئ ته هغه وخت وضع سو چي ددوئ اسلافو د عبادة العجل څخه توبه

وکښل. او دا نوم په اول کي اسم مدح وو تر څو چي علیه الصلوة والسلام نبي سو او قرآن نازل سو او دوئ څندي منکر سوه او دین ددوئ منسوخ سو وروسته تر هغه دا نوم اسم ذم وګرځېدئ الی الابد. او نصاری جمع د نصران ده لکه سکاری چي جمع د سکران ده، دا نوم هم په اول کي اسم مدح وو او بیا وروسته اسم ذم وګرځېدی.

# لَنْ يَّدْخُلَ الْجَنَّةَ اِلَّا مَنْ كَانَ هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى

هرګز نه سي داخلېدای وه جنت ته مګر نه چي یهودوي او یا نصاری.

**پوښتنه**:- یهود او نصاری خو هم یو بل ته کافران وایي نو څرنګه دوئ پر دې خبره سره متفق سوه چي یهود او نصاری به جنت ته داخلېږي فقط؟

**ځواب**:- هو! دوئ یو بل ته کافران وایي او اتفاق نه سره لري کما مر في شان نزول الآیة، لکن په دې آیت کي خدای ﷻ د دوئ د دواړو ډلو قول ګډ سره راوړی دی، ولې سامع پوهېږي چي دا دوې ډلې اتفاق نه سره لري نو اصل داسي وو، وقالت الیهود لن یدخل الجنة الا من کان هودا، وقالت النصاری لن یدخل الجنة الا من کان نصاری ثم لف بین قولیهما اختصارا في العبارة واعتمادا علی فهم السامع.

**فائده**:- هغه ضمیر چي په کان کي دی راجع ومن ته دی مفرد یې راوړی او خبر د کان چي یهود او نصاری دي جمع یې راوړه نظرا الی لفظ من چي مفرد دی او معنی ته د من چي جمع ده، وامثال ذالک کثیرة في لسان العرب بل في القرآن العزیز.

# تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ

پوهنه:- چي تلك اشاره ده وقول سابق ته د دوئ يعني لن يدخل آه، په تاویل د امنیت، او د تلك د مخه مضاف محذوف دی، ای امثال تلك بقرينة جمع خبر تلک وهو امانيهم دي، فالمعنى وامثال تلك الامنية المذكورة مثلا هغه امنية د دوئ. المفهومة من قوله تعالى مايود الذين كفروا ان ينزل عليكم خيرا الآية، او يا هغه امنيه د دوئ المذكورة في قوله تعالى ود كثير من اهل الكتاب لو يردونكم الآية كما مر عنقريب.

پوهنه:- چي اماني جمع د "امنيةٌ" ده وزن يې افعولة دي من التمنى كالاضحوكة من الضحک والاعجوبة من التعجب او امنية شهوة باطلة ته وايي هيڅ دليل نه لري، اى شهواتهم الباطلة.

پوهنه:- چي تلک امانيهم، جمله معترضه ده.

# قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿١١١﴾

او ته ووايه ودوئ ته چي تاسي راوړئ دليل پر دعوه د اختصاص ستاسي په د خول د جنت سره كه چېري تاسي رشتيا واياست.

پوهنه:- چي اصل د هاتوا آتوا وو. همزه يې په ها بدل كړى كما هو القانون الصرفي.

فائده:- خداى ﷻ عليه الصلوة والسلام امر كړى په طلب د دليل د دوئ څخه پر اختصاص د دخول د جنت په دوئ پوري وكړه، له دې سببه چي د خول د جنت خو امر مستقبل او غيب دى، نو دعوه د امر مستقبل غيب بېله دليله باطل ده او دروا غ ده.

پوهنه:- چي جواب د ان کنتم صادقین" محذوف دی چي هاتوا برهانکم" دلالت باندي کوي.

بَلٰى مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهُ أَجْرُهُ عِنْدَ رَبِّهِ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١١٢﴾

پوهنه:- چي دا قول د یهودیانو لن یدخل الخ مشتمل وو پر اثبات او نفي باندي، اثبات یې دخول د یهودو او نصاری ودې جنت ته، او نفي یې عدم دخول د غیر د دوئ دی وجنت ته. ګویا دوئ داسي وویل لا یدخل الجنة غیرنا" نو خدای ﷻ بلی په جواب کي ددوئ د نفي راوړی، نو معنی یې داده چي دا نفي نه ده صحیح بلکه بلځوك غیر له تاسي څخه هم جنت ته ورځي، نو بلی کلام تام دی او من احسن کلام مستقل دی.

ترجمه:- نه ده خبره چي لکه تاسي چي وایاست، او هرڅوك چي خالص وګرځوي خپل مخ ذکر جزء دی مراد څنې کل دی ای نفسه، خدای ﷻ لره یعني یوازي یې معبود الله ﷻ وي، یعني شریك خدای ﷻ لره نه وایي لکه مشرکین یا یهود چي عزیر ابن الله بولي. یا نصاری چي عیسی ابن الله بولي، او یا عین خدای ﷻ بولي، او حال داوي چي دغه سړی مخلص په عمل کي هم وي، کما ورد في الحدیث الذي رواه البخاري ومسلم بطوله الاحسان یعني الاخلاص ان تعبدالله کانك تراه الخ، نو دې سړي لره دی اجر او ثواب د عمل چي خدای ﷻ یې دده سره وعده کړې ده یعني الجنة ونعمها.

**پوهنه**:- چي جمله د "فله اجره آه" جواب د من ده كه چېري من شرطيه وي. او خبر د من ده كه من موصوله وي، او كلمه د فـاء يې په جزاء كي د من ددې سببه راوړه چي موصول متضمن معنى لره د شرط دى .

**فائده**:- بايد قاري پر بلى بانـدي وقف خفيف وكړي ولي موړ وويل چي كـلام مستقل دى پـه رد كـي د دعوې د يهـودو او نصـارى وو، او مـن احسن كلام مستانف دى، او بيان د قانون كلي دى **وكانه في المعنى تعليل لقوله بلى" لان غيرهم من المؤمنين داخلون هذه القانون الكلي بـل هـذا القانون الكلي محصور فيهم في الزمان الحاضر الى يوم القيامة كما لايخفى**، او هيڅ بېره به نه وي پر دوئ باندي، او نه به غمجن وي دوئ يعني په ورځ د قيامت .

**تنبيه**:- فرق د خوف او حزن د مخه تېر سوى دى په ياد يې كړئ .

**فائده**:- افراد د ضمير د اسـلم المستتر فيه، ا وضـمير د وجهـه او ضميرين د فلـه اجره او ضمير د ربـه تولـه په اعتبار د لفظ د مـن دي، او جمعيت د ضمير د عليهم او ضمير د لاهم يحزنون، په اعتبار د معنا د من دى كما مر عن قريب، او د دروېش هغه خبره هم تائيد سوه چي "بـل فـي القرآن العزيز" فتذكر .

**فائده**:- دروېش نفي د حزن او خوف په ورځ پوري د آخرت خاص او مقيد كړې د من احسن آه لپاره **يعنـي عنـد دخـول الجنـة كمـا حكـي الله تعالى في القرآن العزيز عن حال اهل الجنة بقوله "الحمدلله الذي اذهب عنا الحزن"** ددې سببه چي محسنين په دنيا كي يېرېږي چي خاتمه د عمر به يې پر څه حال سي، او داغه رنګه دوئ غم كوي ددې چي بعض ورځي د عمر عزيز مو څرنګه په غفلت كي تېري كړې، او درب جـل سلطانه عبـادت

مو نه وکړی. بلکه مسلمانان په دنیا کي لکه د رحمت خخه د خدای ﷻ چي نا امید نه دي دغه رنګه له عذابه د خدای ﷻ خان په امن کي هم نه لري. قالوا لا يجتمع خوفان ولا امنان فمن خاف من الله عزوجل في الدنيا فآمن وعمل صالحا آمن في الآخرة من عذاب الله حين يخاف الكفار والمقصرين في العبادات ويضع العمر في الشهوات ومن آمن في الدنيا يعني فلم يؤمن او آمن لكن اتبع الشهوات النفسية وضاع العمر في المعاصي الكبيرة خاف الآخرة من العذاب الدائم او العذاب الموقت. قال الرومي في المثنوي

هر كه ترسد مر اورا ايمن كند هر دل ترسنده را ساكن كند
آنكه خوفش نيست چون گويي مترس درس چه دهي نيست او محتاج درس

اللهم وفقنا لماتحب وترضى في الدنيا حتى نامن في الآخرة من نار لظى

پيوند:- چي په راتلونکو آيتو کي خدای ﷻ بيان کوي د تضليل د هري ډلي د يهودو او د نصاری. د هغي بلي ډلي لپاره يعني هر فريق ددوئ هغه بله ډله ګمراه او کافر بولي. نو فرمايي.

وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ النَّصٰرٰى عَلٰى شَيْءٍ وَّقَالَتِ النَّصٰرٰى لَيْسَتِ الْيَهُوْدُ عَلٰى شَيْءٍ وَّهُمْ يَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ

او وايي يهود نه دي نصارى پر هيڅ شي اى على دين صحيح، او وايي نصارى چي نه دي يهود پر هيڅ دين صحيح، او حال دادی چي هره ډله د دوئ کتاب يعني تورات او انجيل وايي، يعني هرڅوک چي يو

کتاب د کتب الهي څخه وايي بايد حکم د کفر پر باقي کتب الهيه والا وو باندي ونه کړي او دنبي څخه انکاري وکړی کـني "لان الکتب الآلهية يصدق بعضها بعضا .

**پوښتنه**:- موږ مسلمانان خو کتاب الله القرآن وايو او سره ددي يهود او نصاری کافران بولو ؟

**ځواب**:- موږ له ابتداء څخه يهود او نصاری کافران نه بولو، او دوی له ابتداء څخه هره ډله هغه بله ډله کافران بولي، نعم چونکه په قرآن مبارك سره تورات او انجيل منسوخ سوله نو موږ تابعان د تورات او انجيل وروسته تر نسخ کافران بولو وهذا صحيح لانه حکم عزوجل بکفرهم بعد النسخ، وهذا سانح عزيز فاحفظه وکن على بصيرة .

**كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿١١٣﴾**

داغسي قول لکه يهود او نصاری چي وکړی .

**پوهنه**:- چي کاف په کذالك کي په معنا د مثل دی ای مثل ذالك القول او منصوب محلا دی مفعول به د قال دی، ويل دی هغه کسانو لره چي علم يې نه درلودی يعني مشرکان عبدة الاصنام ونحوهم من الجهلة. يعني هغه وايي چي هيڅ اهل دين که مسلمانان دي او که يهود دي او که نصاری پر هيڅ صحيح دين نه دي سوي، زموږ مشرکانو مثل د قول د يهودو او نصاری وو

**پوهنه**:- چي مثل قولهم بدل دی د محل څخه د کاف د کذالك کي.

**فائده**:- په دې آیت کې خدای ﷻ ډېره شرم آوره خبره یهودو او نصارى وو تـه وکړه، یعني دوئ چې اهل علم او کتاب دي داسې خبرې کوي لکه جهلة المشرکین، نو خدای ﷻ به حکم او فیصله وکړي په منځ کې د یهودو او نصارى و به ورځ د قیامت په هغه مسئله کې چې دوئ په دنیا کې اختلاف پکښې کوی، یعني چې هرې ډلې هغه بله ډله کافران بلل یعني هرې ډلې ته به مناسب د دوئ له حاله سره عذاب ورکړي في جهنم دار البوار.

**پوهنه**:- چې علامه حقي بروسوي رحمه الله وايي چې هره ډله د فرق ضالة وو ځځه په خپل مذهب خوشحاله دي او نور ګمراهان بولي، او دا دعوه يوازې او يوازې په فرق ضالة وو پورې نه ده خاصه يجرى ذالک بين صوفي وصوفي وشيخ وشيخ وعالم وعالم، یعني هر صوفي وايي زما صوفي ګرت صحيح دی د نورو دا غلط دی. وکل ذالك نتيجة الحسد الذي بينهم لکن دا ټولې د عوې بېله دليله غلطې دي، او دليل يې متابعت دی د سيد البشر ﷺ في جميع اعماله واقواله واحواله ويدل على ذلک قوله تعالى قل ان كنتم تحبون الله فاتبعوني يحببكم الله الآية.

د شيخ صدر الدين تبريزي رحمه الله ځخه روايت دی چې په تبريز کې يو سړی او شيخ و چې مشهور په عارف بالله سره وو يو وخت د بل بعض عارفينو د تبريز ملاقات ته ورغلی، نو هغه پوښتنه خندې وکړه چې نوم دې څه دی؟ ده ورته وويل چې نوم خو مې محمود دی لکن مشهور په عارف بالله سره يم، نو هغه بل عارف ورته وويل، هل عرفت نفسك حتى يقال لك عارف بالله. شخص موسوم بعارف بالله ورته وويل چې ما ډېر کتابونه د اهل تصوف ويلي دي، او ما ډېرې مقالې د صوفيه کرامو جمع کړې دي، هغه بل عارف ورته وويل تلک الکتب والمقالات کلامهم فمالک،

نو مجرد نسخه د کتاب خو په بنه نه ده تر څو چي عمل بما في النسخة ونه کړل سي، قال الشاعر

به پر خویش باید کرد پرواز
ببال دیگران نتوان پریدن

قال المولوي المعنوي جلال الدين الرومي قدس سره

مرغ بر بالا پران وسا یه اش — میرود برخاک پروان مرغ وش
ابلهي صیاد آن سا یه شود — میرود چندانکه بي مایه شود
بي خبر کان عکس آن مرغ هوا است — بي خبر که اصل آن سایه کجا است
تیر اندازد بسوي سا یه او — ترکشش خالي شود از جست وجو
ترکش عمرش تهي و عمر رفت — از دویدن درشکار سایه تفت
سایه یزدان چوباشد دایه اش — وارهاند از خیال وسایه اش

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَنَعَ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا ٱسْمُهُۥ وَسَعَىٰ فِى خَرَابِهَآ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَن يَدْخُلُوهَآ إِلَّا خَآئِفِينَ ۚ لَهُمْ فِى ٱلدُّنْيَا خِزْىٌ وَلَهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿۱۱۴﴾

**پوهنه:-** چي کلمه د من استفهام انکاري دی او اظلم يې خبر دی، ای لا احد اظلم ممن آه .

**فائده**:- د مفسرينو رحمهم الله پر دې اتفاق دی چي دا آيت که څه هم په مسجد خاص کي نازل سوی دی کما سيئاتي لکن حکم يې عام دی لان الاعتبار بعموم اللفظ لا لخصوص المورد ، له دې سببه مساجد الله يې په صيغه د جمع راوړی دی .

**فائده**:- ان يذکر آه منصوب محلا دی مفعول ثاني د منع دی کما في قوله تعالی "وما منعنا ان نرسل بالآيات، او بعض مفسرين وايي چي ان يذکر آه منصوب په نزع د حرف جر دی ای من ان يذکر آه، او بعض وايي چي منصوب دی علی انه مفعول له دی بحذف المضاف ای کراهة ان يذکر آه، اختلاف المفسرين في شان نزول الآية، بعض وايي چي دا آيت نازل سوی دی په مسجد کي د بيت المقدس، او بعض وايي چي طيطوس بن اسبيبانوس الرومي چي په مذهب نصاری دی بعض د يهودو پر دې باندي باعثه کړی چي د بخت نصر بابلي چي مجوسي و، کومک وکړی په جنګ کي د يهودو د بيت المقدس حتی چي په اتفاق سره نصاری وو يعني فوج د طيطوس رومي او فوج د مجوسيانو يعني د بخت النصر المجوسي پر بيت المقدس حمله وکړه، نو د يهوديانو جنګي فوجيان يې ټول قتل کړه او ښځي او کوچنيان يې په مينځي توب او مريي توب بوتله، او تورات يې وسوځوی او بيت المقدس يې خراب کړی او سرکوزان يې پکښي حلال کړه، او نوري مرداری يې پکښي واچولي، او سره ددې چي بيت المقدس ځای د حج د نصاری وه، لکن طيطوس رومي چي نصراني هم و بغض د يهودو پر دغه تخريب باعثه کړی، نو پر دې تقدير دا پېغور دی ونصاری و ته چي موجود په عصرنبوي ﷺ کي وه په فعل د اسلافو د دوئ چي بيت المقدس يې خراب کړی سره ددې چي د دوئ د حج ځای و لکه

یهودو معاصرینو ته د عصر نبوي ﷺ چي پېغورونه خدای ﷻ ورکړي دي له کارو د اسلافو د دوئ کمامر وسیئاتي.

**فائده**:- بیت المقدس تر خلافته پوري د عمر بن الخطاب ؓ دغسي خراب و حتی چي امیر المؤمنین عمر بن الخطاب ؓ چي پر حکومت د پارسیانو یعني پر کسری باندي قابض سو، او خزانې د پارسیانو یې راوړې په هغو اموالو یې بیت المقدس آباد کړی، په مرور د زمانو دخلفاء راشدینو ؓ او نورو خلفاو نصاری و یعني پرنګیانو پر بیت المقدس یرغل وروړی او بیت المقدس یې دمسلمانانو له لاسه وه ایستی او انګریزانو خپل حکومت پکښې قائم کړی او تر سل کاله بالا یې حکمراني پر وکړه، وروسته الملك الناصر سلطان صلاح الدین من آل ایوب په سنه پنځه سوه پنځه اتیا (۵۸۵) بعد الهجرة النبویة ﷺ پر انګریزیانو حمله وکړه او فتح خدای ﷻ ورکړه او د بیت المقدس څخه یې پرنګیان وشړل او حکومت اسلامي یې پکښې قائم کړی.

په سوو کلونه وروسته یهودیانو په کومك د نصاری و د امریکا پر بیت المقدس حمله وکړه چي تقریبا د مسلمانانو له لاسه لکه وتلی دی، لکن هنوز هم جنګ جاري دی.

**فائده**:- مراد د خراب سوو مساجدو خراب ظاهري نه دی باجماع المفسرین رحمهم الله بلکه هر مسجد یا مدرسه چي د خدای ﷻ له ذکره او د لمانځه او له درسه څخه معطل کړي هغه په خراب المسجد کي داخل دی او بعض مفسران رحمهم الله وایي چي دا آیت په شان کي د مشرکینو دمکې مکرمې نازل دی، چي هغو علیه الصلوة والسلام او مسلمانان نه پرېښول چي په حرم شریف کي عبادت د خدای ﷻ وکړي، حتی علیه الصلوة والسلام اومسلمانان یې مجبور کړه وهجرت ته نو دا دی خراب



Scanned by CamScanner

معنوي د حرم محترم، او بعض علماء کرام وايي چي دا آيت په باره کي د حرم مکي نازل سوی دی ولي چي عليه الصلوة والسلام په ملګرتيا د يو زر او پنځه سوه (۱۵۰۰) مسلمانانو تخمينا په نيت د عمرې را روان او قريشو د مکې خبر ورکړی چي مورِ تاسي د عمرې لپاره حرم مکې ته نه پرېږدو. نو عليه الصلوة والسلام په حديبيه کي چي په لار د مکې د يو نژدې ځای نوم دی او دا موضوع په سنه شپږ (۶) کي د هجرت منځ ته راغلله، حتی چي بيا يې صلح سره وکړه د اينده کال پر راتلو باندي، او ژر دی چي تفصيل د صلح دحديبيې به پخپل ځای کي راسي ان شاء الله تعالى، نو دا هم خراب معنويِ دی د حرم مکې.

**پوښتنه**:- دا منع نو ولي تخريب بولي ؟

**ځواب**:- بناء د مساجدو خو لپاره د عبادت د خدای ﷻ او لپاره د ذکر الله ﷻ ده، نو پر مسجد چي دا فائده مترتب نه سي نو ګويا خراب سو

**فائده**:- په قنيه کي وايي چي اعظم د مساجدو حرمة المسجد الحرام ثم المسجد النبوي في المدينة ثم مسجد البيت المقدس، او په آيتو کي اشاره وشرافت ته د بيت المقدس د مسجد او مسجد الحرام ده.

**درويش وايي**:- چي په شرافت کي د مسجد د بيت المقدس په حديث نبوي ﷺ کي راغلي دي "من زار بيت المقدس محتسبا" يعني صرف د ثواب په غرض نه د تجارت وغيرها په سبب "اعطاه الله ثواب الف شهيد وحرم الله جسده على النار ومن زار عالما فكانما زار بيت المقدس.

**تنبيه**:- ددې حديث مبارك څخه حرمت او شرافت د مسجد الحرام او مسجد النبوي ﷺ هم په ښه وجه معلوم سو ولي چي په زيارت کي د بيت

المقدس چي حرمت يې دریمه درجه دی کما مر انفا نو د مسجد الحرام او مسجد النبوي ﷺ به څومره ثوابونه وي .

**تنبیه**:- مراد له عالم څخه په حدیث نبوي ﷺ کي دي علماء آخرت دي لا العلماء السوء" الذين هم لطلب الدنياء كانه اعبد للمقتديين خصوصاً لرئيس المسجد فافهم بمعزل عن هذه الرتبة وقد رائيت بعض علماء المساجد يعظمون باني المسجد تعظيما بليغا فوق تعظيم الاساتذه والمشائخ بل يؤذونهم .

**پوښتنه**:- الله ﷻ وويل "اولئك ماكان لهم الخ" او سره ددې چي مشركان د مكې مكرمې او پر بيت المقدس چي حمله وسول هغه يې خراب او لوټي لوټي كړی كمامر عنقريب. نو كم و خوف د مشركانو د مكې مكرمې او خوف د لښكر د نصاری وو او د بخت نصر المجوسي پر بيت المقدس ؟

**ځواب**:- بعض مفسرين رحمهم الله ترجمه د ماكان لهم آه" داسي كوي ای في علم الله وقضائه نو پر دې تفسير دا وعده د خدای ﷻ له خوا څخه پر خلاصولو او آبادولو ددغو مساجدو. او خدای ﷻ هم دا وعده پوره كړه حتی چي پر مكه مكرمه باندي ونبي ﷺ ته فتحه وركړه، او نبي ﷺ دا اعلان وكړی الالاخجن بعد العام مشرك. او روم چي د طيطوس رومي سلطنت پر وو امير المؤمنين حضرت عمر ﷺ فتح كړی. او بيت المقدس چي خراب سوی وو امير المؤمنين عمر ﷺ آباد كړی كمامر سابقا. او بعض مفسران وايي لكه بيضاوي وغيره چي لام په لهم كي لپاره د لياقت دی. ای ماكان ينبغي لهم ان يدخلوها الا بخشية او خضوع فضل من تخريبها، او بعض علماء وايي چي دا آيت ظاهراً خو اخبار دی لكن په معنا د انشاء دی

ای لا تمکنوهم ایها المسلمون من الدخول في المساجد المذکورة الا بخوف آه "لکن پر دې ځواب په حاشیه کې د بیضاوي یې دا سوال کړی دی، چې منع د تمکین څخه په وخت کې د غلبې د کفارو پر مساجدو مذکره وو کما في وقت نزول هذه الآیة المذکورة څه معنا لري.

**مسئله**:- امام اعظم رحمه الله وایي چې دخول د کفارو مطلق مساجدو ته رواه دی په اجازه د حکومت اسلامي، او استدلال هم په آیت مذکوره سره کوي. ولي چې ددې آیت څخه دا معلومه سوه چې دخول د کفارو په مساجدو کې د مسلمانانو روا دی چې په خشیت او ببره سره وي، نو اوس دا اجازه غوښتل ده د کفارو د مسلمانانو څخه په دخول کې د مساجدو ددوئ داغه د کفارو خشیت او خضوع ده. او بل دلیل د امام اعظم رحمه الله دا دی چې وفد یعني هیئت د ثقیف دقبیلې چې کافران وه او مدینې منورې ته چې راغله علیه الصلوة والسلام په مسجد نبوي ﷺ کې ځای ورکړی، او بل دلیل دادی چې علیه الصلوة والسلام په کال د فتح د مکې مشرکانو ته د مکې دا اعلان وکړی من دخل دار ابو سفیان فهو امن ومن دخل الکعبة فهو امن" او بل دلیل دادی چې په احادیثو صحیحه وو کې دا ثابته ده چې څه وخت چې به کافران د علیه الصلوة والسلام ملاقات د مناظرې او پوښتنو لپاره راتله دا ملاقات د نبي ﷺ سره به دوئ په مسجد نبوي ﷺ کې کوی. او امام مالك رحمه الله د مطلق کافر ومطلق مسجد ته ممنوع او حرام بولي یعني مسلمانان دي هیڅ کافر ته اجازه د دخول په هیڅ مسجد کې نه ورکوي، او دی دلیل په آیت سره وایي " انما المشرکون نجس" او تطهیر د مساجدو خو د نجاساتو څخه واجب دی، موږ وایو چې تطهیر د مساجدو خو د نجاستات ظاهره وو څخه واجب دی او نجاست د کافر خو په عقیده کې د زړه دی.

**سوال**:- جنب ولي ممنوع د دخول څخه د مسجد دی او سره ددې هغه خو د نجاست ظاهره څخه پاك دی ؟

**جواب**:- د جنب نجاست حکمي په ځای کي د نجاست ظاهري ولاړ دی او د حائض او نفساء سره خو نجاست ظاهري ملګری دی ولذا منعنا من دخول المساجد ، او امام شافعي رحمه الله فرق کوي یعني دخول د مسجد حرام ورته ناروا دی او دخول د نورو مسجدو ورته روا دی وزیادة التفصیل في کتب الفقهاء رحمهم الله تعالی .

ترجمة الآیة:- **بعد تحقیق شان نزولها وتفصیل اعراب مفرداتها وبیان احکام المتعلقة بها واختلاف الائمة فیها** څوك زیادت تر ظالم دی، یعني نسته تر هغه چا چي منع کوي مسجدونه د خدای ﷻ له دې څخه چي په هغو کي دي ذکر د خدای ﷻ یعني لمونځونو یا نور ذکرونه د خدای ﷻ او کوشش کوي په خرابېدو کي د مساجدو، یعني که ظاهري خرابي وي او که معنوي خرابي وي کمامر تفصیله. او دغه ظالمانو ته نه ښائېده دوئ لره چي داخلېدای ودغو مسجدو ته مګر نه په بېره سره، یا د خدای ﷻ او یا د مسلمانانو او دې ظالمانو لره په دنیا کي رسوایي ده یعني په عذاب الهی او یا د مسلمانانو لخوا ، **بل قتل والسبئ ونهب الاموال او ضرب الجزیة علیهم**، او دوئ لره په ورځ کي د آخرت لوی عذاب دی چي عذاب د جهنم دی ابد ، **الابدین لا یحیون فیها ولا یموتون نجانا الله منها بعظیم رحمته وعموم مغفرته بالمؤمنین ورزقنا الله تعالی شفاعة نبیه محمد المصطفی ﷺ آمین** .

# وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ إِنَّ اللّٰهَ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿١١٥﴾

**پوهه**:- چي قاضي بیضاوي او روح البیان دا آیت په د مخه آیت پوري مربوط بولي یعني قوله تعالی ومن اظلم آه ولي چي دواړه داسي وايي فان منعتم ان تصلوا في المسجد الحرام او الاقصی فقد جعلت لكم الارض مسجدا او وروسته بیضاوي رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنه څخه داسي يو روایت کړی دی چي دا آیت د ماقبل سره تعلق نه لري یعني د یو مستقل حکم بیان دی حیث قال البیضاوي رحمه الله وعن ابن عمر رضي الله عنه انها نزلت في صلوة المسافر علی الراحلة.

**پوهه**:- چي مراد په دې حدیث کي د صلوة څخه نفل لمونځ دی. یعني نفل پر دابه هر طرفته چي د دابې مخ وي دا مراد دی، او مراد د مسافر څخه مسافر اصطلاحي شرعي نه دی بلکه هغه سړی چي د آبادیو د ښار یا د قریې د باندي وي، او بعض مفسران وايي چي دا آیت په هغه قوم کي نازل سوی دی چي د شپې په تاریکه کي قبله څنډي ورکه سي، نو هر یو ویو جهت ته وروسته تر تحری لمونځ وکړی، او وروسته ورته معلومه سي عدم اصابة جهة القبلة. لکن دا هم هلته دی چي دغه خلک په ښار یا قریو کي نه وي ولي چي هورې خو مسجدونه او محرابونه سته چي جهت د قبلې په معلومېږي، او په صحراء کي هم دا حکم هلته دی چي هورې داسي سړی نه وي چي دوی سوال قبله څنډي وکړي، وهذه المسئلة مفصلة في کتب الفقه.

**دریم وایي:-** چي پر دې تقدير وجه د ربط د دې ايت بقوله تعالى ومن اظلم ممن منع الآية" دادى چي په ده مخ آيت كي چي ذكر د مساجد د خداى ﷻ راغلى او جهت د قبلې هم د مساجدو سره ډېره لويه علاقه لري لبناء محاريب المساجد الى جهة القبلة ولهذا عطفت هذه الآية على تلك فافهم .

قال البيضاوي رحمه الله قيل هذه الآية توطية لنسخ القبلة كما سياتي في قوله تعالى "قد نرى تقلب وجهك في السماء الآية .

**دریم وایي:-** چي پر دې تقدير آيت پر خپل عموم باندي دى يعني په حال د سفر او په حال د تحري يا په نوافلو لمونځو پر دابه باندي خاص نه دى كمالا يخفى .

في روح البيان روي چي عليه الصلوة والسلام سره د اصحابو رضي الله عنهم په مكه مكرمه كي لمونځ وكعبې شريفي ته كوى، او چي ده مبارك ﷺ ومديني منورې ته هجرت وكړى نو د خداى ﷻ له خوا مامور سو چي لمونځ د بيت المقدس وجهت ته كوه تاچي د يهوديانو دا باور وسي چي نبي آخر الزمان هم دغه مبارك شخصيت دى، ولي په تورات كي د نبي اخرا الزمان په بيان كي يوه دا خبره هم وه چي نبي آخر الزمان به دوو قبلو ته لمونځ كوي، تخمينا شپاړس (۱۶) مياشتي عليه الصلوة والسلام او اصحابو رضي الله عنهم بيت المقدس ته لمونځونه كول، لكن د عليه الصلوة والسلام په زړه كي دا توقع وه د خداى ﷻ څخه چي ما به متوجه كړي وكعبې شريفي ته ولي چي كعبه شريفه اقدم القبلتين وه، او قبله دده د جد امجد ابراهيم عليه السلام هم وه، او بل باعث پر ايمان د عربو هم وه لكن ادباً يې سوال د تحول الى الكعبة نه كوى لكن بار بار به يې اسمان ته كتل چي اوس به جبرئيل عليه السلام امر الهي د تحول الى الكعبة راوړى

كما حكا الله تعالى عن ذالک قد نرى تقلب وجهک فلنولينک قبلة ترضـها" هغه و چي عليه الصلوة والسلام په مسجد کي د بني سلمة د ماسپښين لمونځ کوی او دوه رکعته يې کړي وه چي دا امر الهی نازل سو "فول وجهک شطر المسجد الحرام"" فتحول ﷺ الى الكعبة وتحولت الصفوف ايضا فسمى ذالک المسجد الى الآن بمسجد ذو القبلتين، نو قبله چي بدله سوه نو انکار وکړی بعض مسلمانانو، او بعض مفسران رحمهم الله وايي چي پر مذکوره تفسير نسخ دوه واره لازميږي، يعني نسخ د کعبې د قبلې د بيت المقدس وه قبلې ته، او بيا نسخه د بيت المقدس د قبلې بيرته وکعبې مکرمې ته، او دوئ وايي چي نسخ چونکه ځای د فتنې دی كما سمعت انفأ نو تعدد د نسخ بې ضرورته بايد ځوك قول په ونه کړي، نو دوئ وايي چي رسول الله ﷺ په مکه مکرمه کي د بيت المقدس وقبلې ته لمونځ کوی يعني عليه الصلوة والسلام په مکه شريفه کي داسي يو دېوال ته د کعبې شريفي دربدی په لمانځه کي چي هم کعبه په مخ کي وه او هم بيت المقدس د مخ وخوا ته وو نو چي هجرت يې وکړی نو هم يې شپاړس (۱۶) مياشتي لمونځونه د بيت المقدس وقبلې ته کوله. بيا هغه قبله منسوخه سوه او د عليه الصلوة والسلام لپاره کعبه مکرمه خدای ﷻ قبله وټاکل، نو دوئ وايي چي نسخ به يو وار سي، والله اعلم بالصواب

وعند الفقير التفسير الاول لغاية شهرته کمالا يخفى اولى.

**درويش وايي**:- چي بنا پر دغه تفسير څه وخت چي تحويل د قبلې په مدينه منوره کي بيت المقدس ته وسو، نو مشرکانو د مکې دا سوال مطرح کړی چي محمد ﷺ وايي چي تابع د دين ابراهيمي يم کما ورد في القرآن ايضا "بل نتبع ملة ابراهيم حنيفا" د ابراهيم ﷺ قبله خو کعبه ده، نو دوئ ولي وبيت المقدس ته لمونځ کوي؟ او يهوديانو بيا دا اعتراض کاوه

چي محمد ﷺ زموږ د دين متابعت نه کوي او لمونځ زموږ وقبلې ته کوي، او څه وخت چي قبله بیرته کعبې مبارکې ته واوښتل، نو مشرکانو دا اعتراض او آوازه ګډه کړه چي وقبلې ته خو يې توجه شروع کړه وسيرجع الى ديننا، او يهوديانو بيا دا آوازه واچول چي دی ﷺ که نبي بر حق وای نو بيت المقدس خو قبله د انبياء عليهم السلام وه، نو يې ولې هغه ته توجه پرېښول، او دوئ به ويل چي دده شوق و دين ته د آباء وسو، فلعنة الله على المشركين واليهود ما تركوا ايذاء النبي ﷺ بحال من الاحوال.

## تفسير مفردات الآية

فاينما تولوا"" پوه سه چي "اينما" چونکه لازم الظرفية دی، نو مفعول به د "تولوا" نه دی، بلکه مفعول به د تولوا يا محذوف دی ای وجوهکم، نو څکه يې بيضاوي او روح البيان داسي تفسير کوي ففي ای مکان فعلتم تولية وجوهکم القبلة شرقا او غربا او جنوبا او شمالا، او يا تولهم نازل منزلة اللازم دی ولهذا فسره بعضهم ای فعلتم التولية فقط.

او مظهري وايي که څه هم اينما ظرف دی خو دلته يې معنا د شرط دی او تولوا مجزوم ده په دغه شرط سره ثم وجه الله يې جواب دی، قوله فثم وجه الله.

پوه سه:- چي ثم د مکان په معنا دی يعني په هغه مکان کي وجه الله سته.

پوه سه:- چي د وجه ترجمه بعض مفسران په جهت سره کوي، يعني الجهة المامور باستقبالها ای قبلة الله، دا تفسير حسن، مجاهد، قتاده، او مقاتل ﷺ کړی دی، او د ټولو تفاسيرو دغه اول تفسير دی، وقيل رضاء الله تعالى، او بعض معتبر مفسران لکه بيضاوي روح البيان وغيرهما د وجه تفسير په ذات سره کوي، من قبيل ذکر الجز وارادة الکل ای فثمه

ذاته تعالی یعني په حضور علمي او قدرت سره لانه تعالی لیس له مکان، روی عن امام الحرمین عبدالملك رحمه الله چي دی یو وخت د یو غټ دنیا دارد میلمه و، او نور علماء هم موجود وه، د اهل مجلس څخه یو سړي دا خواست او سوال له علماء حاضرینو څخه وکړی چي څه دلیل دی پر دې چي خدای ﷻ لره مکان نسته، او سره ددې چي خدای ﷻ په قرآن مجید کي وایي "الرحمن علی العرش استوی" یعني ددې آیت څخه ظاهره داسي فهمېږي چي عرش د خدای ﷻ مکان دی؟ نو امام الحرمین رحمه الله بلا توقف دا ورته وویل چي دلیل هغه آیت دی چي یونس علیه السلام د ماهي په نس کي داسي وویل چي "لا اله الا انت سبحانک انی کنت من الظالمین" فتعجب العلماء الحاضرون من دلالة الآیة المذکورة علی عدم المکان له تعالی نو صاحب الضیافة له امام الحرمین څخه تفصیل ددې دلالت وغوښتی.

نو امام الحرمین رحمه الله ورته وویل چي دباندي تر سرای یو فقیر دی چي پر هغه باندي زر (۱۰۰۰) روپۍ پور باندي دی، نو ددغه فقیر پور که څوك ور اداء کړي زه به تفصیل د آیت مذکوره وکړم، نو صاحب الضیافة هغه پور پر غاړه واخستی، نو امام الحرمین رحمه الله داسي تفصیل ورته وکړی چي رسول کریم ﷺ چي د معراج په شپه الی ماشاء الله تعالی پورې ولاړی هورې یې داسي وویل "لا احصی ثناء علیك انت کما اثنیت انت علی نفسك" او یونس علیه السلام هم په قعر البحر کي انت او سبحانك وویل، او دا دواړه یعني خطاب د رسول الله ﷺ فوق السموات السبع او خطاب د یونس علیه السلام خطاب الحضور دی، نو معلومه سوه چي خدای ﷻ لره مکان نسته، ولي چي که مکان وای نو دواړه خطاب الحضور به څرنګه صحیح سوی وای، قال السعدي شیرازي رحمه الله في بیان معراجه ﷺ

چنان گرم در تیه قربت براند — که در سدره جبریل ازو باز ماند

بدو گفت سالاري بيت الحرام که ای حامل وحي برتر خرام
بگفتا ر تر مجالم نماند بما ندم که نیروي بالم نما ند
اگر یک سر موي برتر پرم فروغ تجلی بسوزد پرم

ثم قطع علیه الصلوة والسلام سبعون الف (۷۰۰۰۰) حجاب من نور کما ورد في الحديث النبوي ﷺ، او بعض مفسران وايي دغه آيت "فثم وجه الله" له متشابهاتو څخه دی التي لا يعلم تاويله الا الله كقوله تعالى "كل شئ هالك الا وجهه" وقوله تعالى يدالله فوق ايديهم" ای وقت البيعة مع رسول الله ﷺ.

**درویش وايي**:- چي چونكه معقول تفسيرونه ددې آيت لكه چي د مخه تېر سوه موجود دي، نو د متشابهاتو څخه يې بللو ته ضرورت نسته، ولې مجال د طاعينو د قرآن كريم په دې سره زياتېږي، نعم هغه ځای چي معقول تفسير موجود نه وي لكه په مقطعات القرآن كي يعني آلمّ الرٓا وسائر المقطعات القرآنية په هغو كي د متشابه والي دعوه كول صحيح ده كما هو مذهب ابي حنيفة ﷫، قوله ان الله واسع، باحاطة رحمة وعلمه بالاشياء كلها قوله "عليم" بمصالحهم واعملهم في الاماكن كلها يعني د خدای ﷻ رحمت او علم فراخه دی ټولو شيانو ته او خدای ﷻ خبر دی مصالح او اعمالو د بندګانو په ټولو ځايو كي.

**درویش وايي**:- چي امام ابو حامد محمد الغزاليؒ ذالك البحر الجاري رحمه الله الباري په شرحه كي د اسماء الحسنى د اسم واسع په باره كي داسي په زړه پوري بيان كړی دی، چي عبارت يې د ډېر ښائسته او زيبا دی او زمونږ د پښتو تنګه ژبه احاطه د هغو عربي الفاظو پر مرام احاطه نسي كولای، نو ځكه درويش دده ﷫ هغه عبارت عربي رانقل كړی،

علماء او طلباء خو ان شاء الله تعالى په پوهېږي له عوامو څخه چي زما پښتو تفسیر مطالعه کوي معذرت غواړم، او دا امام رحمه الله وايي.

واسع مشتق من السعة والسعة تضاف مرة الى العلم اذا اتسع واحاط بالمعلومات الكثيرة وتضاف الى الاحسان وبسط النعم، وعلى اى شيئ نزل فالواسع المطلق هو الله تعالى، لانه ان نظر الى علمه تعالى فلا ساحل لبحر معلوماته تعالى بل تنفد البحار لو كانت مدادا لكلماته كما ورد في القرآن الكريم "قل لوكان البحر مدادا لكلماته لنفد البحر الآية" وان نظر الى احسانه ونعمه فلانهاية لمقدوراته ؛ وكل سعة وان عظمت فتنتهى الى طرف فهو تعالى احق باسم السعة والله تعالى هو الواسع المطلق باى معنى اخذ، لان كل واسع بالنسبة الى ماهو اوسع منه ضيق وكل سعة تنتهى الى طرف فالزيادة عليها متصورة، وما لانهاية له ولا طرف فلا يتصور عليه الزيادة لانها تقتضي التناهي، وسعة العبد في معارفه واخلاقه وان كثرت علومه فهو واسع بقدر سعة علمه وان اتسع كرمه واحسانه حتى لم يضيقها خوف الفقر، وغيظ الحسود وغلبة الحرص وسائر الصفات المذمومة فهو واسع وكل ذالک فهو الى نهاية وانما الواسع المطلق هو الله جل ذكره.

**پوښتنه**:- وړاندي آنفاً دا ثابته سوه چي خدای جل جلاله لره مکان او جهت نسته، نو ولي خلګ لاسونه پورته کوي د دعاء په وخت کي وطرفته د آسمان او وطرفته د آسمان هم ګوري.

**ځواب**:- ټولو انبياء کرامو عليهم الصلوة والسلام په وخت کي د دعاء لاسونه د آسمان وخواته پورته کول نه په معنا ددې چي خدای جل جلاله په اسمان کي دی، بلکه په معنا ددې چي خزانې د خدای جل جلاله په آسمان کي دي، قال الله تعالى "وفي السماء رزقكم وما توعدون" نو پورته کول د لاسو وجهت ته د آسمان ګويا دا معنا ده چي دعاء کونکی و خزانو ته د خدای جل جلاله اشاره

کوي چي ددغو خزانو څخه د رحمت ستا ماته فلانی او فلانی شی راکړې لکه يو سائل د يو چا ورپو ته اشاره وکړي او مسئول عنه ته ووايي چي ماته ددغو روپو څخه يو څه راکړه.

**پيوند**:- چي د عليم په راوړو سره هم زيرى دى پر مومنانو صالحانو باندي په دې معنا چي خداى ﷻ دوئ ته وايي چي خداى ﷻ ستاسي په ايمان او اعمال صالحه وو ښه خبر دى، او د ورځي د قيامت د جنت دار النعيم وثواب ته منتظر اوسئ، او هم په عليم كي بېرول د كافرانو او د ګناه كاره مسلمانانو سته په دې معنا چي اى كافرانو ستاسي په كفر زه ښه خبر يم نو په ورځ د قيامت وجزاء ابدي د دوږخ دار الاشرار ته منتظر اوسئ، او يا اى مسلمانانو ستاسي په ګنهو زه خبر يم د يوم الجزاء وحساب ته منتظر اوسئ.

ترجمة الآية المذكورة: او خداى لره دي مشرق او مغرب، يعني ټولو جهاته د مځكي، تخصيص ددې دوو جهتو په اعتبار د شهرت دى، كما في قوله تعالى رب المشارق والمغارب، يعني ملكاً او خلقاً، نو هر جهت ته چي تاسي مخ وګرځوئ يعني په لمانځه كي هورې جهت د قبلې مامور بها دى په تحقيق فراخه دى د خداى ﷻ قدرت ټولو كائناتو ته، او خداى ﷻ ښه خبر دى په احوالو د ټولو مخلوقاتو.

# وَقَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا سُبْحَانَهُ

او وايي يهوديان د مدينې چي عزير ؑ يې ابن الله بالله، او نصارى د نجران چي عيسى ؑ يې د خداى ﷻ زوئ ګانه، او مشركين د عربو چي ملائكه يې بنات الله معرفي كولې، يعني دا ټولي ډلي وايي چي خداى ﷻ خان لره عيال پيدا كړى دى.

پوهنه:- چي ولد نر او ښځي دواړو ته وايي فشمل الفرق الثلثة. او پاکي او تنزيه ده خدای ﷻ لره د اتخاذ ځخه د ولد.

پوهنه:- چي اصل د سبحانه "اُسَبِّحُهٗ سُبْحَانًا" دی نو چونکه اُسَبِّحُهٗ له بابه د تفعيل دی نو سُبحانًا اسم مصدر دی يعني مصدر د مجرد باب دی لکن په دې ځای کې د مصدر د باب تفعيل راغلی دی چې هغه تسبيحاً دی بيا يې فعل تخفيفاً حذف کړی او سبحان يې مضاف کړی ومفعول ته د فعل. بيا نو اظهار د فعل روانه دی، على مافي الكافية وغيرها من كتب النحو او قاضي محمد مبارك په شرح کي د سُلم په باره کي د سبحان په زړه پوري تحقيق کړی دی.

پوهنه:- چي ابن عامر رحمه الله دا آيت ببله واوه وايي يعني چي دا آيت بيان د بلي قصې د کفارو دی، چې دې ته په اصطلاح کې د نحاتو استيناف وايي، او جمهور د قراؤ يې په واو وايي، نو يا عطف دی پر قالت اليهود آه او يا پر منع دی.

والدليل على نفي الولد: ان التوليد يقتضي التشبه بين الوالد والمولود كما لايخفى وليس له تعالى شبه ونظير، د ابن عباس رضي الله عنه ځخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام ويل چي خدای ﷻ وايي ""كذبني ابن آدم ولم يكن له ذالک" يعني زما تکذيب کوي ابن آدم او ده لره دا ښايده وشمتني او ماته ښکنځل کوي ابن آدم وله يكن له ذالک، اما تكذيبه اياي فزعم انـي لا اقدر ان اعيده كما كان" تکذيب زما يې دادی چي ابن آدم ګمان لري چي زه يې بيرته از سر نو نه سم ژوندی کولای، واما شتمه اياي فقوله لي ولد فسبحان ان اتخذ صاحبة ولا ولدا رواه البخاري رحمه الله، او ښکنځل د بني آدم

ماته دادي چي دی وايي مالره ولد سته، او پاکي ده مالره چي زه به خان لره ماینه پیدا کوم او یا ولد .

**پوښتنه**:- یهود او نصاری او مشرکان چیري ذکر سوي دي حتی چي ضمیر د قالوا ودرو سرو ته راجع کړل سي ؟

**ځواب**:- یهود او نصاری خو په نامه ذکر سوي دي في قوله تعالی "وقالت الیهود لیست النصاری الآیة، او مشرکانو که څه هم صراحةً نه دی ذکر سوي لکن ددې قول څخه د خدای ﷻ فهمېږي "قال الذین لا یعلمون الآیة ولي چي مراد دغه مشرکان دي کمالایخفی .

**بَلْ لَّهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ (۱۱۶)**

بلکه خدای ﷻ لره دي هغه شیان چي په اسمانو کي دي او په مځکه کي دي یعني خلقاً او ملکاً وعبیداً نو څرنګه به تولد دده ﷻ څخه امکان پذیر وي، ولي توالد خو مجانست او مشابهت په منځ د والد او مولود ولامناسبة والمجانسة بین المخلوق الممکن المحتاج وبین الخالق الواجب الغني القیوم جل سلطانه وعظم شانه وظهر جلاله .

او ټوله مافي السموات والارض خدای ﷻ ته منقاد دي یعني دده د ارادې څخه هیڅ شی سر نه سي غړولای .

**پوهه**:- چي کلمه د بل په دې ځای کي لپاره د اضراب د قوله څخه د مبطلین مذکورینو یعني خبره دغه سي نه ده لکه دوئ چي وايي، ولي چي په ټوله مافي السموات والارض کي عزیر او عیسی او ملائکه علیهم السلام هم داخل دي، نو څرنګه د خدای ﷻ اولاد دي .

**فائده**:- احمد رحمه الله د ابي سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايله چي هر حرف د قرآن چي په هغه کي قنوت ذکر سي هغه په معنا د طاعت دی يعني انقياد، او بعض مفسرانو رحمهم الله د قانتين معنا داسي کوي، ای قائمون بالشهادة علی توحيده وربوبيته.

**دوهم وايي**:- چي علماء د ظاهر دا شهادت پر شهادت د لسان الحال حمل کوي يعني حال د ممکن چي امکان دی، او معنا داده چي د ممکن وجود او عدم سره برابر دي فلابد لترجيح وجوده علی العدم من مرجح وخالق واجب الوجود ولا يشارکه في الوجوب غيره والا لفسد الممکنات کلها کما قال عز من قائل. لو کان فيهما آلهة الا الله لفسدتا. وتفصيل هذا الاستدلال في شرح العقائد وشرح القاصد للعلامة التفتازاني رحمه الله وعلی الشهادة بلسان الحال يحمل قول السعدي الشيرازي رحمه الله

برگ درختان سبز در نظر هوشيار
هر ورقي دفتريست معرفت کردگار

لکن علماء د باطن يعني اولياء کرام رحمهم الله دا شهادت پر شهادت قولي حمل کوي، او دا اختلاف په منځ کي د علماؤ د ظاهر او باطن دی په آيت کي هم ستته "وان من شيئ الا يسبح بحمده ولکن لا تفقهون تسبيحهم" او د تفصيل لپاره به هغه ځای مناسب وي چي داغه آيت راسي ان شاء الله تعالی.

## بَدِيۡعُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ؕ

او خدای ﷻ پيدا کونکی د اسمانو او د مځکي.

**پوښتنه**:- لفظ د بديع خو لازمي دی، نو څرنگه ومفعول ته چي سموات والارض دی مضاف سوی دی؟

واجاب عنه البيضاوي والمظهري اخذا من البيضاوي وصاحب روح البيان وغيرهم من المفسرين رحمهم الله چي بديع په دې ځای کې په معنا د مفعل دی يعني په معنا د اسم فاعل د باب افعال ده، او باب د افعال متعدي دی فصح الاضافة الی المفعول او دليل ويلی دی بيضاوي رحمه الله پر دې چې فعيل لازمي په معنا د مفعل متعدي راتلای سي بقول الشاعر

امن ريحانة الداعي السميع، چې دغه سميع په معنا د سُمع دی په اتفاق د اهل الغة وتمام البيت، يورقني واسحاب هجوع، او ګڼ شمېر د مفسرانو رحمهم الله وايي چې السموات والارض په اصل کې فاعل د بديع و يعني اصل يې داسې و بديع سمواته وارضه لکن وروسته تر اضافته د بديع وسموات والارض ته، سموات والارض شبيه بالمفعول سوه او منصوب په بديع سوه، او دا بل دليل پر نفي د ولديت د خدای ﷻ څخه، حاصل يې دادی چې خدای ﷻ فاعل د ټولو اشياؤ علی الاطلاق دی، او انفعال په خدای ﷻ کې نسته، او والد چونکه اصل د ولد دی او ماده د ولد د والد څخه جلا کېږي فلا بد من الانفعال في الوالد فکيف يکون الله ﷻ والدا و منفعلا .

**فروېښ وأیعي:-** چې چونکه فرق په منځ کې د ابداع، اختراع او احداث ډېر دقيق و چې عوام لاځه کوي د بعضو طالبانو تر فهم لاهم لوړ و، نو ځکه ددې فرق بيان ملتوي کړی، او که يې څوک د تفصيل خواهشمند وي نو تفسير کبير د امام رازي رحمه الله او يا بيضاوي رحمه الله سره د شروحو او يا دي تفسير قرطبي په غور سره مطالع کړي .

**وَإِذَا قَضَىٰٓ أَمۡرٗا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴿١١٧﴾**

او چې اراده وکړي خدای ﷻ و پیدا کولو ته د شي، نو هغه شي ته ووايي چې موجود سه نو هغه شي سمدلاسه موجود سي .

**درویش وایي**:- چي چونکه دا آیت په قرآن مبارك کي يو غامض آيت او فهم يې کما حقها ډېر مشکل دی لهذا درویش به ددې آیت په مراد کي، او په دفع د اشکالاتو وارده په نقل د کتبو څخه د تفاسیرو معتمدوو به ډېر څه ووايي، او ډېر څه به پرېږدي لان مالايدرك كله لايترك كله، نو محترم خوانندګان دي درویش معذور وبولي، په اطناب د تفسير ددې آیت کریمه وبالله التوفيق نو واوري .

**البحث الاولى**:- اصل معنی د قضی اتمام د شي دی قولا نحو ققى ربك آه ای قال او يا فعلا فقفاهن سبع سموات ای خلقهن او ورسته بيا تعلق ته اراده آلهی وايي په وجود پوري د شی، ولي چي په دغه تعلق سره شی موجود ګرځي .

**البحث الثاني**:- چي شی خو معدوم دی نو څرنګه خطاب د کن د هغه سره روا دی .

والجواب عنه، چي شی معدوم چونکه په علم کي د خدای ﷻ حاضر دی فصح الخطاب او ابن الانباري رحمه الله وايي "لام" د له لپاره د اجل دی يعني لاجل تكوينه، نو معنا د خطاب ومعدوم ته ببخي سته نه، او په روح البيان کي وايي چي د اهل السنت مذهب دادی چي وجود د اشياء په دغه امر د کن پوري تعلق نه لري بلکه وجود د اشياء په خلق او ایجاد پوري د خدای ﷻ مربوط دی، او کن فيكون كنايه ده د سرعت امتثال څخه د وجود د شي په ایجاد او تکوین آلهي سره، او په مثل د بیان مذكور بیضاوي رحمه الله هم دا خبره کړې ده وليس المراد به حقيقة الامر وامتثاله بل هذا الكلام تمثيل لحصول ماتعلقت به الارادة الالهية بلا مهلة بطاعة المامور المطيع بلا توقف، او هغه خبره چي بعض مفسرانو رحمهم الله کړې ده چي لفظ د کن حقيتاً امر دی، او عادت الهي په دې سره جاري دی چي

اشیاء په لفظ د کن پیدا کوي، او مامور هو الحاضر في العلم دی والماموربه هو الدخول في الوجود خلاف له مذهبه د اهل سنتو دی او خلاف د تحقیق څخه د اکثرو مفسرانو دی.

**البحث الثالث**:- جمهور د قاریانو رحمهم الله یکون په رفع سره وایي، نو یا جمله مستانفه ده او یا عطف پر یقولوا دی، او یوازې ابن عامر رحمه الله یې په نصب سره وایي، او دا قرائت پر نحاتو ډېر ګران دي ولې علت د نصب د مضارع په جواب کي د امر هلته نحات کوي چي پسله فاء څخه ان ناصبه مقدر کړی، او ان ناصبه خو هلته یې تقدیر روا دی چي امر پر خپل حال باندي باقي وي، او آنفاً تېره سوه چي امر د کن پر خپل حقیقت باندي نه دی، بلکه مراد څنډي مجرد تمثیل څنډي د سراعت امتثال دی، ددې سوال په جواب کي بعض حواشي د بیضاوي وایي چي نصب د یکون بناء پر ظاهر صورت د کن دی، چي صورت یې د امر دی او که ومعنا ته د کن وګورې نصب د یکون نه دی روا وهذا في المظهري ایضا، او بل پر تقدیر د ان په جواب کي د امر دا شرط دی چي په منځ کي دامر او د جواب به معنا د سببیت وي، یعني امر او جواب به په معنا د شرط او جزاء وي نحو ائتني فاکرمک، اذ التقدیر ان تاتیني فاکرمک، وههنا لا یتصور تقدیر الشرط والجزاء اذ یصیر معناه ان یکن یکن فیتحد الشرط والجزاء معنا وفاعلا مع انه لا بد من تغایرهما.

والجواب عنه، چي اتحاد د شرط او جزاء ههنا ممنوع، ولې چي معنا د یکن یکن دي دا وي ان یکن بعلم الله وارادته یکن في الخارج على طریقة قوله علیه الصلوة والسلام على مافي البخاري وغیره "فمن کان هجرته الى الله ورسوله فهجرته الى الله ورسوله، نو په دې حدیث کي خو هم شرط او جزاء ظاهرا او لفظا سره یو شی دي، مع ان هذا وارد في کلام افصح

العرب والعجم اعني رسول الله ﷺ نو څکه شراح داحاديث نبويه ﷺ وو يې داسي ترجمه کوي، فمن کان هجرته عملا ونيتا فهجرته ثوابا وقبولا فيتغاير الشرط والجزاء فکذا في ما نحن فيه فافهم فانه دقيق، او بعض مفسرين وايي چي په جواب کي د امر غير حقيقي عدم جواز النصب ممنوع پر خلاف د ټولو نحاتو والله اعلم بالصواب.

**البحث الرابع**:- ان في کن فيکون پنځم دليل دی پر ابطال د قول د يهودو او نصاری وو او مشرکانو چي خدای ﷻ لره ولد ستته، اتخاذ الولد خو مهلت او اطوار غواړي عادةً يعني نطفة وعلقة ومضغة او مدة الحمل وفعله تعالی يستغني عن المهلة والاطوار لکونه کن فيکون في السرعت الامتثال.

**البحث الخامس**:- بعض مفسرين ﷭ وايي چي کان دلته تامة دی ولي چي خبر يې نه دی ذکر سوی نو ترجمه يې داسي کړې ده احدث فيحدث چونکه پر دې مفسر دا سوال وارد دی چي لکه وجود د شي في نفسه چي په اراده د خدای ﷻ دی دغه رنګه وجود د شي لغيره خو هم په اراده د خدای ﷻ دی نو هغه خو بايد داسي وويل سي مثلا کن يا زيد قائما فيکون قائما چي دا معنا د کان ناقصه ده، نو هغه مفسر په جواب کي داسي ويلي دي، واما کون الشيئ موصوفاً بصفة فليس مدلولالهذه الآية

**البحث السادس**:- پوه سه چي سبب ددغه ضلالت يعني اتخذ الله ولدا، ويهوديانو او نصاری وته دادی علی مافي البيضاوي ﷬ چي علماء د شرائعو متقدمه وو کانوا يطلقون الاب علی الله تعالی يعني دوئ وويل خدای ﷻ لفظ الاب باعتبار انه السبب الاول دی حتی دوئ به ويله ان الاب يعني پلار هو الرب الاصغر والله سبحانه تعالی هو الرب، يعني پلار د سړي کوچنی تربيت ورکونکی د عيال دی او الله ﷻ لوی تربيه ورکونکي د انسان

دی، وهذا المعنی صحیح، وروسته د جاهلانو دا خیال سو چي خدای ﷻ ته چي رب اکبر وایي معنا یې ولادت دی، نو جاهلانو دا عقیده د تقلید د لاري وکړه، نو اوس اطلاق د اب پر خدای ﷻ کفر دی، او ددې اطلاق څخه په هره معنا چي وي منعه راغلې تاچي د فساد ماده قطعه سي، هذا حاصل ما في البیضاوي، او روح البیان خو داغه قدر ویلي دي، لکن دا یې زیاته کړې چي اطلاق د حبیب او خلیل پر خدای ﷻ روا دی نه اطلاق د اب تاچي جهله ولادت طبعي خندي مراد نه کړي، او دا یې هم ویلي دي چي عیسی ﷺ ته خدای ﷻ داسي وحي وکړې "ولَّدتك" په تشدید د لام والضمیر المؤنث راجع دي الی ام عیسی ﷺ یعني ته و زیږولې مور ستا، ثم قال ﷻ وانت نبي یعني د مور د ولادت په وخت کي زما په علم او تقدیر کي ته نبي وې.

نو نصاری وو د لام تشدید په تخفیف بدل کړی، او ضمیر د تانیث یې په ضمیر د متکلم واحد بدل کړی چي معنا یې داسي کېږي چي ما وزیږولې ته، او په لفظ کي د نبي کلمه د باء یې تر نون دمخه کړه، نو داسي لفظ خندي جوړ سو ولدتك وانت بني، چي معنا یې داسي کېږي چي ته ما وزیږولې او ته زما زوئ یې تعالی الله عما یقول الظالمون علوا کبیرا. او یهودو ته یعني علماؤ ته ددوئ خدای ﷻ داسي خطاب یا احباري ویا ابناء رسلي، نو یهودیانو په اخرکي دا لفظ په دې بدل کړی یا احبائي ویا ابنائي نو خدای ﷻ ددوي تکذیب وکړی په دې آیت کي "وقالت الیهود والنصاری نحن ابناء الله واحبائه قل فلم یعذبکم بذنوبکم"

**البحث السابع:-** پوه سه هیڅ څوك شك نه لري چي دروغ ویل پر خدای ﷻ باندي اعظم جرم دی، من الکذب علی رسول الله ﷺ، او په حدیث شریف کي راغلي دي ان کذبا علي لیس ککذب علی الله، وورد في الحدیث الآخر الذي رواه البخاري وغیره، من کذب علي متعمدا فلیتبوء مقعده من

النار" یعني که چا دروغ وویل پر ما باندي، نو دي جوړ کي ځای خپل په دوږخ کي.

**پوه سه**:- چي لفظ د حدیث مذکور که څه امر دی او انشاء ده لکن معنا یې اخبار دی یعني ځای یې ځان لره په دوږخ کي جوړ کړی.

**درویش وایي**:- چي ای مخاطبه ته فکر وکړه چي دروغ پر علیه الصلوة السلام باندي دومره لویه ګناه ده، نو درواغ ویل پر خدای ﷻ باندي به څونده اندازه ګناه وي.

**البحث الثامن**:- مومن لره پکار ده چي په ورته اقوالو او اعمال باندي ځان نه کي اخته بلکه اکثر اوقات خپل په عبادت او ذکر الهي کي صرف کړي، په صحیح حدیث کي راغلي دي علیه الصلوة السلام وایي ""للمؤمن حصون ثلاثة، ذکرالله، وقرآئة القرآن والمسجد"" مسلمان لره درې قلعې دي یعني له شیطانه څخه بېغمه کېږي، یو ذکر د خدای ﷻ دی که الحمدلله وي او که الله اکبر وي الی غیر ذالك من الاذکار، بل قرآئت د قرآن مجید، او بل ځای د لمانځه لکن په درو سرو کي اخلاص اهم شرط دی.

## وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ

**پوه سه**:- چي ابن عباس ﷺ وایي چي مراد د من موصول څخه یهودیان دي چي رافع بن حرمله و علیه الصلوة السلام ته راغلی، او دوی وویل که ته رسول د خدای ﷻ یې لکه ته چي وایي، نو زموږ سره دي خدای ﷻ پخپله خبري وکړي چي موږ یې هم واورو یعني ستا د نبوت په باره کي.

او مجاهد ﷫ وایي د "الذین آه" څخه مراد نصاری دي چي هغو هم ورته خبره دیهودو کړې وه.

**سؤال**:- دا دواړې ولې خو اهل کتاب دي، نو خدای ﷻ نفي د علم ددوئ ځخه وکړه ؟

**جواب**:- مقتضی د علم خو داوه چې دوئ دي داسې خبرې نه کولای، نو چونکه عالم چې د جاهل خبره وکړي هغه هم جاهل دی بل اشد منه، وقال قتادة ؓ المراد به الامیون من مشرکي العرب .

**لَوۡلَا يُكَلِّمُنَا ٱللَّهُ أَوۡ تَأۡتِينَآ ءَايَةٞۗ**

**ږوهنه**:- چې لولا په معنا د هلا دی یعنې ولې خبرې له موږ سره خدای ﷻ یعنې لکه د ملکو سره خبرې کوي، او یا د موسی ؑ سره، یعنې موږ ته دې ووایې چې محمد ﷺ زما رسول دی .

**فائده**:- لولا که په معنا د هلا وي او یا صریح لفظ د هلا وئ که پر ماضي داخل سي حرف تندیم یې بولي یعنې پر هغه ماضي کار مخاطب پښېمانه کوي چې ولې دې نه کاوه، باید کړی دی وایې، کقولك هلا اکرمت زیدا ، دا داسې وخت ویل کېږي چې مخاطب اکرام د زید نه وي کړی، او متکلم وده ته د پښېمانۍ پېغور ورکوي، او که پر مضارع داخل سو حرف تحضیض یې بولي یعنې متکلم مخاطب باعثه کوي چې دا کار وکړه، مثلا تقول هلا تضرب زیدا یعنې زید مستحق د ضرب دی نو وه یې وهه کذا في کتب النحو .

**ږوهنه**:- چې دا خبره ددوئ نهایت تکبر او غایت بېباکي د دوئ ده چې ځانونه یې د ملکو او یا د موسی ؑ مقام ته ورسول، او یا ولې خدای ﷻ موږ ته نه استوي یو دلیل او معجزه ستا پر صدق باندې، او دا خبره

ددوی نهایت سپکاوی دی د معجزاتو د رسول ﷺ یعني دا تا راوړي معجزې خو چندان شی نه دي.

# كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّثْلَ قَوْلِهِمْ

او داغسي خبري کړي دي هغه کسانو چي تر دوی د مخه وه يعني اسلاف اليهود والنصارى يعني قول اليهود لموسى ﷺ ارنا الله جهرة وقول النصارى لعيسى ﷺ هل يستطيع ربك ان ينزل علينا مائدة من السماء.

# تَشَابَهَتْ قُلُوبُهُمْ قَدْ بَيَّنَّا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴿١١٨﴾

مشابهت لري زړونه ستا د معاصرينو يهود او نصارى وو د زړو سره د اسلافو د دوی في الكفر والعناد وعدم الاعتداد بما يوتي الرسولين المذكورين من المعجزات الباهرات الدالة على صدقها، په تحقيق سره مورږ بيان کړي دي هغه قوم لره چي طلب د يقين لري بما هو الحق عند الله

پوه ~~ـــــ~~:- چي كاف د كذالك په معنا د مثل منصوب دی محلا مفعول به د قال ، وقوله مثل قولهم مفعول مطلق دی د قال، والحاصل قال كفار الامم الماضية مثل ذالک القول الذي قالوه قولا مثل قولهم نو په دي آيت کي دوی تشبيه دي يوه تشبيه د مقول په مقول سره في المودي والمحصول او بله تشبيه د قول په قول سره ده چي دواړه قولونه يې په بې فکري سره سوي دي صرف په متابعت د خواهشاتو نفسيه وو على سبيل التعنت والعناد لا على سبيل طلب الرشاد والهداية، وعلى هذا التقرير نو دا سوال نه واردېږي چي په دې آيت کي دوې تشبيه ګاني دي. نو دواړو ته څه ضرورت و فتامل هداك الله تعالى.

**پوهنه**:- چي نافع او يعقوب رحمه الله یې پر صیغه د نهي وايي، او مبني للفاعل یې بولي، یعني ته سوال مه کوه د دوږخیانو په باره کې، ولې چې ددوئ عذاب دومره فضیع او خوفناکه دی چې سامع او اورېدنکی یې پر اورېدو باندي صبر نه سي کولای، لکه یو سړی چي د غمزده پوښتنه وکړي چي فلانی څرنګه دی هغه بل ورته ووايي چي پوښتنه یې مه کوه، یعني د هغه فلاني دومره غم دی چي ته یې صبر پر اورېدو نه سې کولای. او نور جمهور او معظم قاریان رحمهم الله یې په صیغه د مجهولي مخاطبي وايي کما في جمیع النسخ المطبوعة کمامر لا تسئل و مر معنى تلك القرائة

**پوهنه**:- چي پر صیغه د نهي دا سوال واردېږي چي پر دې تقدیر خو لازمېږي عطف د انشاء چي لاتسئل دی لکه پر قرائت د نافع او يعقوب چې دوئ پر جمله خبریه باندي یعني انا ارسلناك بالحق آه .

والجواب عنه، چي دا جمله انشائیه هم په معنا د خبر ده یعني د جمله خبریه ای لست مکلفا بجبرهم علی الاسلام، او یا دا جمله انشائیه عطف پر مقدر د ای فبشروا نذر. وقال البیضاوي انه نهی للرسول ﷺ عن حال ابویه آه، خفاجي رحمه الله وايي چي بیضاوي رحمه الله په دې قول متابعت د صاحب کشاف کړی دی حیث قال صاحب الکشاف ان النبي ﷺ قال لیت شعري مافعل ابوی، قال الطیبي رحمه الله تفسیر هذه الجملة ای مافعل بهما، عراقي رحمه الله وايي اقف علیه في حدیث، یعني زما علم نه دی راغلی چي دا آیت دې په شان د نهي د نبي ﷺ راغلي وي د ځان څخه د ابویه ﷺ په هیڅ حدیث کي، قال العراقي رحمه الله والذین نقطع به ان هذه الآیة ای علی تقدیري الاخبار لا لنهي نازلة في کفار اهل الکتاب کالآیات السابقة لها والا حقة لها انتهی قول العراقي رحمه الله وانتهی نقل الشارح الخفاجي رحمه الله له .

**درویش وایي:** - چي دا قول د عراقي ﷫ ډېر موزون او په زړه پوري قول دی، مګر بیا هم روح البیان و الا دا نهي یعني ولا تسئل وه حال ته د ابوینو د علیه الصلوة والسلام کش کړی، او ډېر طویل بحث یې ښکنبي کړی، او اقوال د امامانو ﷭ د تفسیر او حدیث راوړی دی چي په سبب د تطویل بلکه د خطره درویش نه کړه رانقل، او تفسیر ومظهري والا هم ډېر بحث ښکنبي کړی دی او مسئله یې خبړلې ده، د درویش په عقیده قول د امام عراقي ﷫ د تطویل اود خطر څخه خلاص دی، والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب که څوك تفصیل ددې مسئلې غواړي نو تفسیر د امام قرطبي ﷫ او تفسیر روح البیان، او تفسیر مظهري او د شیخ جلال السیوطي ﷫ رسالې دي په غور سره مطالعه کړي.

**وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ؕ**

**او هر ګز نه راضي کېږي ستا څخه یهود او نصاری تر هغو پورې چي ته متابعت ونه کړې د ملت ددوئ.**

**پوهنه:** - چي په دې آیت کي نا امید کول دي د نبي ﷺ د ایمان څخه د یهود او نصاری وو چي ګاهي ناوخته به په زړه کي د علیه الصلوة والسلام وګرځېدل چي دوئ به ګوندي په ډلیزه توګه ایمان راوړي.

دلیل د اقناط کلي یې دادی چي ددوئ رضی خدای ﷻ معلق کړه په متابعت د رسول الله ﷺ د دوئ د دین او دا اظهر من الشمس ده چي آنحضرت ﷺ خو ددوئ د دین منسوخ متابعت نه سي کولای بلکه دا متابعت خو ممکن هم نه دی، او معلق په غیر ممکن سره غیر ممکن دی نو متابعت د یهود او نصاری وو په ډلیزه توګه هم ممکن نه دی.

**پوه سه:-** چي یهودو د مدینې منورې او نصاری د نجران هغه وخت چي علیه الصلوٰة والسلام ددوی وقبلې بیت المقدس ته لمونځ کاوه دوی امید ددې درلودی چي علیه الصلوٰة والسلام زمونږ دین ته راواوري، یعني د هري ډلي جلا جلا امید وو، څه وخت چي قبله کعبې شریفې ته را واوښتل نو ددوی امید وختی، نو دا آیت نازل سو .

**فائده:-** ملت او دین په یوه معنا دي او فرق اعتباري سره لري، ولي چي دین ماخوذ دی د دان یدین دینا چي معنا یې اطاع ده اطاعت شعار د منقیانو دی کما هو الظاهر .

او ملت مشتق دی د املاء څخه چي د املال سره هم معنا لري، او املا کتابت ته وایي چي دا د علماو کار وي.

**فائده:-** علم شریعت بېله متابعت او عمله په درد نه خوري چي په ګناه کي د عالم او جاهل بل داسي حدیث وارد دی "للجاهل ویل وللعالم سبعون ویلا" او تقوی بېله علمه څخه نه کامیابه کېږي .

که بې علم نتوان خدا را شناست ، سعدي ؒ

# قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى

ته ودوی ته ووایي چي تحقیق هدایت د خدای ﷻ اسلام دی هدایت هغه دی، نه چي تاسي یې امید لري له ما څخه یعني یهودیت او نصارنیت لانهما دینان منسوخان . ومر ان المنسوخ لا یعمل به ولیس من الرسول امکانه ایضا

وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم بَعْدَ الَّذِي جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿١٢٠﴾

او که ته متابعت وکړي د خواهشاتو باطله وو ددوئ وروسته تر دې چي تاته علم يعني الوحي والقرآن راغلی يعني فرضاً او تقديراً كما هو معنی د "ان" ده، نو نه به وي تاله د خدای ﷻ يعني د عذابه څخه د خدای ﷻ نه دوست چي شفاعت دي وکړي او کومک کونکی چي تا دي په زور د خدای ﷻ څخه خلاص کړي.

**فائده**:- چي اهواء جمع د هواء ده، هغه رايي ته وايي چي تبع د شهوت وي او بلونکې وضلال ته وي، اهوائهم چي يې جمع راوړه او داسي يې نه وويل هوائهم لان لليهود والنصارى اهواء زائغة مختلفة كلها الى ضلال داعية نجانا الله منها.

الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَتْلُونَهُ حَقَّ تِلَاوَتِهِ أُولَٰئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِ وَمَن يَكْفُرْ بِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿١٢١﴾

هغه کسان چي موږ ورکړی دی کتاب دوئ ته، دوئ تلاوت کوي د هغه کتاب په حق تلاوت سره، او دوئ ايمان راوړی دی پر هغه کتاب باندي او څوک چي کفر وکړي په هغه کتاب سره نو هغه خلک په خسران او تاوان کي دي.

فائده:- مفسرين ﷭ ددې آيت په شان نزول کې اختلاف لري، قتاده او عکرمه رض وايي چې مراد له کتابه قرآن مبارك دی، او مراد د الذين آمنوا څخه اصحاب ﷺ د عليه الصلوة والسلام دي، او بعض وايي چې ټوله مؤمنان د دين محمدي ﷺ مراد دي، او ضحاك ﷭ وايي چې مراد هغه کسان دي له يهودو څخه چې ايمان يې پر عليه الصلوة والسلام په مدينه منوره کې راوړی لکه عبدالله ابن سلام ﷺ، وسيعه بن عمر ﷺ وتمام بن يهودا ﷺ اوسيد او اسد ﷺ چې زامن وو د کعب ابن يامن و عبدالله ابن صوريا، نو پر دې تقدير موصول لپاره د عهد دی، او عبدالله ابن عباس ﷺ وايي چې دا آيت په هغه کښتۍ والا وو کې نازل سوی دی چې د جعفر ابن ابي طالب ﷺ سره په کښتۍ کې مدينې منورې ته راغله چې ټوله څلوېښت کسان وه، دو دېرش (۳۲) له حبشې څخه وه، او اته (۸) کسان د صوفيانو څخه د شام وه، چې يو له هغو څخه بحيرا راهب و، چې په وخت کې د فتحې د خيبر دوئ مدينې شريفې ته ورسېدل عليه الصلوة والسلام دا خبره وکړه چې حيران يم چې په فتحه د خيبر خوشحال سم او که په قدوم د جعفر ﷺ نو پر دې تقدير هم موصول لپاره دعهد دی .

پوهنه:- چې بيضاوي او روح البيان والا وتفسير د ضحاك ته ترجيح ورکړې ده، او دکتاب څخه يې تورات مراد ګرځولی دی، او لفظ د حق تلاوت منصوب دی على المصدرية يعني مفعول مطلق د يتلونهٔ لاضافته الى التلاوة التي هي مصدر ليتلونه او مراد له حق تلاوت څخه دادی چې الفاظ د تورات د تحريف يعني تغير څخه وساتي او اوصاف د عليه الصلوة والسلام نه پټوي، او نه يې غلط تاويل کوي او په معاني وو کې د تورات فکر او غور کوي او عمل په مقتضا د ښوونې د تورات کوي چې نمونه د هغه عمل ايمان دی پر عليه الصلوة والسلام .

**پوښتنه**:- جمله د یتلون آه، خو حال ده له ضمیره د "هم" په آتیناهم، کې او په حال کې دا شرط دی چې زمانه د حال او عامل د ذو الحال یوه وي، کما تقرر في کتب النحو، او سره ددې چې ایتاء الکتاب خو په زمانه کې د موسی ﷺ وه، او چې د موصول څخه مراد مؤمنین د اهل کتابو سي نو زمانه د یتلونه حق تلاوته" خو زمانه د نبي کریم ﷺ ده وبین الزمانین سنون کثیرة،

**ځواب**:- چي دا حال مقدرة دی ای مقدرة ومفروضة تلاوتهم حق التلاوة وقت ایتاء الکتاب ای التوراة

**پوښتنه**:- چې دا حال مخصصه ده ولي قوله من اوتي التوراة خو موصوف په صفت د یتلونه حق تلاوته نه دی، نو الذین آتیناه سره د حال د یتلونه آه ، مبتداء ده او جمله د اولئك یؤمنون یې خبر دی .

**فائده**:- که چیري الذین آتیناهم الکتاب مبتداء سي او یتلونه آه یې خبر سي، او جمله د اولئك آه جمله مستانفه سي یا خبر بعد الخبر سي نو د الذین یؤمنون آه، څخه مؤمنون د عصر نبوي ﷺ اخستل استعمال دی عام په خاص کې په قرینه عقلیه سره کذا قال خف .

**یٰبَنِیٓ اِسۡرَآءِیۡلَ اذۡکُرُوۡا نِعۡمَتِیَ الَّتِیۡٓ اَنۡعَمۡتُ عَلَیۡکُمۡ وَاَنِّیۡ فَضَّلۡتُکُمۡ عَلَی الۡعٰلَمِیۡنَ ﴿۱۲۲﴾ وَاتَّقُوۡا یَوۡمًا لَّا تَجۡزِیۡ نَفۡسٌ عَنۡ نَّفۡسٍ شَیۡـًٔا وَّلَا یُقۡبَلُ مِنۡهَا عَدۡلٌ وَّلَا تَنۡفَعُهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا هُمۡ یُنۡصَرُوۡنَ ﴿۱۲۳﴾**

ای اولاده د یعقوب ﷺ تاسي په یادا کړئ نعمت زما چي تاسي ته مي درکړی و .

پوهنه:- چي نعمت اسم جنس دی ولي چي بني اسرائیلو ته خو خدای ﷻ د پر نعمتونه ورکړي وه سلفاً وخلفاً کمامر ذکرها في تمام قصتهم چي د جملې څخه د هغو تورات و، او د ذکر څخه د نفس یې یادول نه دی بلکه شکر د نعمت کول دي یعني بالایمان بجمیع ماجاء به التوارة والعمل فیما فیه، او د جملې څخه د مافیه التواة ایمان دی پر نبي ﷺ المنعوت في التوراة .

پوهنه:- چي "اني فضلتکم آه" عطف دی پر نعمتي یعني په یاد کړئ دا خبره چي "اني آه، او مراد د "العٰلمین" څخه عٰلمین ددوئ د زماني دي لانهم لیسوا بافضل من افضل الامم یعني امت محمد ﷺ .

**او تاسي ځان وساتي له هغې ورځي څخه یعني له عذابه د هغې ورځي چي قیامت ده، او ځان ساتنه په ایمان او عمل صالح سره کېږي .**

پوهنه:- چي جمله د لاتجزي صفت د یوما دی، والعائد محذوف ای فیه، چي نسي اداء کولای یو نفس د نفوسه د بل نفس څخه هیڅ شی د حقوق لازمه څخه په ذمه کي د نفس ثاني، او نه قبلېږي له نفس اولی څخه فدیه چي دی دي له دوږخه په خلاص سي چي کافر مثلا وي، او فائده نه کوي ونفس ثاني ته چي کافر وي شفاعت دچا .

پوهنه:- چي سالبه قضیه په عدم سره دموضوع هم ثابتېږي، کما تقرر في کتب المنطق ای لا شفاعة للنفس الکافرة، او نه هم ددوئ سره کومک کول کېږي د چا له خوا چي د عذاب الهی څخه دې په زور خلاص کړي .

پوهنه:- چي چونکه نفس نکره وو او په سیاق کي د نفي راغلی و، نو ارجاع د ضمیر د جمع چي "هم" دی ورته صحیح ده قال العارف الشیرازي رحمه الله

قیامت که نیکان باعلاء رسند
زقعری ثري تا ثیر مارسند

ترا خود بماند سر از ننگ پیش
که گرددت در آید عمل های خویش

برادر زکار بدان شرمدار
که در روي نیکان شوي شرمسار

در آن روز که زفعل پرسند وقول
الو العزم را تن بلرزد زهول

بجانکه دهشت خورد انبیاء
تو عذر گناه را چه داري بیا

**پوښتنه**:- په سر کي د قصې د بني اسرائلو هم دغه دوه آیته راغلي وو، نو څه حکمت آلهي و چي په پای کي د قصې ددوئ یې بیرته هغه دوه آیته راوګرځول ؟

**ځواب**:- دغه رد د خاتمه ته وفاتحه ته بولي چي د محسناتو څخه د بلاغة الکلام ګڼل کېږي، او بل حکمت دادی چي خدای ﷻ اشاره ودې ته کوي چي مقصود د ټولي قصې څخه د بني اسرائیلو مضمون د دغو دوو آیتو دی چي په اول آیت کي ور پیادول د نعمت دی لپاره د ترغیب في الشکر. او په دویم آیت کي بېرول دي له عذابو څخه د ورځي د قیامت، او بل حکمت دادی چي ناصح دي د تکرار څخه د نصیحت مرةً بعد اخری ډډه نه کوي ولي یو وخت به غشی د نصیحت پر نښان ولګېږي.

الصلوة والسلام عشر من الفطرة رواه البخاري اى السنة القديمة، پنځه د هغو په سر کي دي چي .

(۱) اول مضمضه (۲) دویم استنشاق (۳) دریم وفرق الراس (۴) څلورم وقص الشوارب (۵) پنځم سواك، او پنځه په نور بدن دي .

(۱) اول الختان یعني سنتي (۲) دویم وحلق العانة یعني زیر ناف خریل (۳) دریم نتف الابط یعني د بغل وېښتیان کښل (۴) څلورم وتقلیم الاظفار، یعني نوکان د لاسو او پښو پرېکول (۵) والاستنجاء بالماء، یعني دبره او ذکر پرېولل .

مسائل:- فرق الراس دا معنا ده چي د سر وېښتیان دي دوه څایه کوي او په منځ کي دي لار باسي، په حدیث مبارك کي راغلي دي چي مشرکانو به فرق الراس کاوه، او اهل کتابو به وېښتیان پر تندي را ایله کول لکه زموږ د مسلمانانو ځوانان چي یې نن صبا کوي، او د علیه الصلوة والسلام مواقفه د اهل کتابو خوښه وه چي وحي به نوې پر هغه کار راغلي، په دې سبب چي شاید د اهل کتابو په کتابو کي دا حکم موجود وي وروسته جبرئیل ﷺ راغلی او علیه الصلوة والسلام یې امر کړی په فرق الراس سره

فائده مهمه:- پوه سه:- چي آنحضرت ﷺ محدود وارونه سر خریلی دی او په اکثرو احوالو کي علیه الصلوة والسلام ورېښتیان د سر مبارك پرېښوله، ګاهي به یې ورېښتیان دده مبارك تر نیمایي د غوږو ورسېده او بیا به یې سر وخرایه، او ګاهي به تر نرمیو د غوږو ورسېدل او بیا به یې سر وخرایه، او ګاهي به یې تر وږو وېښتیان ورسېدل بیا به یې وخریل کما ورد في الاحادیث الشریفة وکل ذالک حسن موافق للشریعة الامة المرحومة

مسئله:- د سر ورېښتیان پرېښول او بیا ځوني پرې کول او څټ خریل په شریعت کي هیڅ ثبوت نه لري او له فعله د نبي ﷺ مخالف دی .

**پوښتنه**:- په حدیث کي د بخاري وغیره راغلي دي چي علیه الصلوۃ والسلام دري واره دا وویل رحم الله المحلقین قالوا ای الصحابة و المقصرین؟ په اخر کي علیه الصلوۃ والسلام وویل والمقصرین، نو ددې حدیث څخه خو دا معلومېږي چي حلق افضل دی .

**ځواب**:- دا حدیث په باره کي د حج د احلال دی لاعموما کمایدل تمام الحدیث علیه ولاریب ان الحلق في الحج افضل من القصر .

**څرویش وايي**:- چي امام همام محمد الغزالي رحمه الله په احیاء العلوم کي وايي چي وېښتیان د سر پرېښول تر وږو پوري مکروه دي ولي چي دا اشعار د علویانو دی، نو څوک چي علوي نه وي او د سر وېښتیان دومره پرېږدي تلبیس او شتباه يې د علویانو سره راځي .

**څرویش وايي**:- چي زموږ په بلاد کي خو دا اشعار د علویانو نه دی بلکه دا اشعار د طالبانو د علوم اسلامیه وو دی فلاباس به .

**مسئله**:- په اوسني زمانه کي چي ځوانان د افغانستان او پاکستان پېکیان پر تندي پر ډول د نصاری وو پرېږدي او وفرق الشعر نه کوي هغو لره حلق افضل دی، تر ټولو عجیبه خو لاداده چي بعض بې ډري په رنګ بناتسته هلکان خپل پېکي په دې اندازه کي پر تندي داسي جوړوي لکه د سري ماینه چي مېږه ته ځان سنګاروي. نو دا فعل ددوئ دعوت دی وېنځوته او یا دعوت دی د ځانانو دده ومحبت ته. او د محبت دداسي هلک اخري نتیجه ؤهر چا ته معلومه ده، نو پر داسي هلك باندي د پلار لـه خوا د سر خریلو امر لازم دی دفعاً للفتنة .

او په خبر کي داسي راغلي دي چي یو سړي خپل زوي چي بعض سر يې ورخریلی و او بعض وېښتیان د سر يې وریرې ایښي وه ومجلس ته د ابو

بکر صدیق ﷺ یې راوستئ، نو ابو بکر ﷺ امر وکړی په قتل ددغه هلك فاستغفر ابوه فعفا عنه .

**پوهنه**:- چې امر بالقتل حقیقةً نه دی بلکه زجراً دی کما ورد في الحدیث النبوي ﷺ لاصلوة لجار المسجد الا في المسجد" والامثال الزجریات کثیرة، ومن امثلته چې یو سړي په مجلس کې د امام ابو یوسف ﷺ وویل چې د علیه الصلوة والسلام کدو خوښ وو یعني خوړل یې، کما ورد في الحدیث رواه البخاري وغیره. نو بل سړي د حاضرینو د مجلس وویل چې زما کدو نه دی خوښ فامر ابو یوسف ﷺ بقتله فتاب الرجل وعفاعنه ابو یوسف ﷺ .

**مسئله**:- قص الشارب امام نووي ﷺ وایي چې سنت داده چې بریتونه په غوچې دومره پرې کړي چې شونډه یې ښکاره سي. او اصل خو داده چې بریتونه داسي جوړ کړي لکه ورځه. لکن مع هذا په غوچې چې هر څومره وپښتیان د بریتو قطع کوي روا دي، په روح البیان کې وایي چې خریل د بریتو په چاړه بدعت سیئه دی .

**مسئله**:- په احیاء العلوم کې وایي چې اخیر د بریتو چې ماتې یې بولي غټ پرېښول جائز دي، ولې چې په ماتې خوله هم نه پوټېږي او د دوډی خیره نه پکښې بندېږي، وقد فعله عمر ﷺ .

**مسئله**:- مجاهدینو لره په دار حرب کې غټ بریتونه پرېښول مندوب دي لیکون اهیب في اعین العدو، وان کان قطعهما من الفطرة کما قال علیه الصلوة والسلام جزوا الشوارب، پرې کوي بریتونه واعفوا اللحیة. او پرېږدئ ږیره .

**مسئله**:- خريل د ږيرې قبيح بلکه مثلت او حرام دی لکه سرخريل د ښځي، قاله صاحب روح البيان. فقهاء وايي چي ږيره د نر پخپل وخت کي جمال دي" وفي حلقها تفويت الجمال على الكمال. وورد چي په تسبيح کي د ملکو داسي راغلي دي سبحان من زين الرجال باللحى، وزين النساء بالذوائب. وفي الكشاف په تفسير کي ددې قول د خدای ﷻ الرجال قوامون على النساء، هم اصحاب اللحي والعمائم. يعني قوامون پر ښځو باندې ږيري والا او لنګوټي والا دي.

**مسئله**:- تر قبضه چي ږيره بالاسي هغه زائده ده پرې کول يې پرواه نه لري، کذا فعله عمر ﷺ، او روح البيان چي نسبت و عليه الصلوة والسلام ته کړی دی هغه په صحيح ثبوت نه دی رسېدلی، او د ږيره بې اندازې وږدوالی يې مکروه دی، ولي چي د نر له خلقته سره بد ايسي، او خلک بدبد نومونه باندي ايږدي.

**حکايت**:- يو ملا وو چي ږيره يې په افراط وږده وه د شپې يې کتاب مطالعه کاوه، په کتاب کي يې دا وليدل چي په افراد وږده ږيره دليل د حماقت دی، نو د ملا ددې مسئلې څخه بد راغله او د ځان سره يې داخيال وسو چي دا وينا درواغ ده ولي زه عالم يم او ږيره مي په افراط هم وږده ده، نو کومه يم چي احمق يم، وروسته يې فکر وواهه چي دا خبره که بل څوک ووينې نو پر ما به يې د احمق خيال راسي نو د ځان سره يې دا فيصله وکړه چي زائد عن القبضه پرې کړي په غېچي پسې وګرځېدی نه يې کړه پيدا نو يې ږيره قبضه کړه زائد ويښتيان يې څراغ ته ونيول هغو چي اور واخستی د ملا صاحب لاسونه وسوول چابك يې استه کړه او ږيره يې پاکه وسوه، نو بې د کتاب وينا وزړه ته ولويده.

**مسئله**:- مکروه دی د سپینو وېښتیانو کښل. او یا یې په تور رنګ تورول کما یفعله بعض الناس حتی بعض العلماء کرها للشیب وارادة الشباب ، قال الحافظ الشیرازي رحمه الله

سواد نامه موی سیاه چون طی شد
بیاض کم نه شود گرچه صد انتخاب رود

وقال الشاعر العربي

یسود اعلاها و یبیض اصلها
ولا خیر في الاعلی اذا افسد الاصل .

**درویش وایي**:- چې اکثره خلک چې ږیرې خریي او سرتور وي په مقتضی د ماینو یې کوي ولې چې د ښځې د سپین وېښته څخه د مېږه بد راځي .

**مسئله**:- ږیره یا سر رنګول په نوکریزو او په اسمه روا دي وقد ورد في الحدیث واجازه الفقهاء رحمهم الله .

**پوښتنه**:- فرق یې څه دی ؟

**ځواب**:- فرق یې دادی چې نوکریزې او اسمه وېښته نه توروي بلکه رنګه یې بور سي، علماء وایي چې سپینه وېښته قاصد د خدای ﷻ دی په قرب د اجل موت او د قاصد مخ باید سرې نه کې ورتور .

**پسوه مسئله**:- چې امر د سنتي د حضرت ابراهیم علیه السلام داسي ثبت ورسېدی چې دی د یو سل او شلو کلو و. نو خان یې پخپله سنت کړی په تبار کې د قدوم په تشدید د دال او په تخفیف سره .

**پوښتنه**:- چي فقهاء رح وايي چي ختنه يعني سنتي تينګک سنت دی او د فطرت الاسلام څخه دی، چي ترك يې ونورو ته نه دی روا مګر نه که کوچنی سنت سوی پيدا سو يعني د ذکر پر سر يې پتونکی پوست نه و.

د رسوالله ﷺ په باره کي په صحيح حديث سره رسېدلي ده، چي دی چي د مور څخه پيدا سو هم مختون و او هم يې نو پرې و، او روح البيان والاپه تولو انبياء کرامو عليهم الصلوٰة والسلام کي هم دا دعوی کړې ده او دا يې ويلي دي کرامةً لهم، مګر ابراهيم ﷺ يې مستثنی کړی دی والله اعلم.

حضرت ابراهيم ﷺ خو اولی په دې کرامت سره و فتامل، او د علماء اختلاف دی په وخت کي د سنتي، بعض علماء وايي چي تر هغو دې نه سنتو ي چي بالغ سوی نه وی، دليل دا وايي چي سنتي خو لپاره د طهارت ده، او پر هلك باندي تر بلوغ د مخه طهارت نه دی لازم.

**نور ويش وايي**:- چي دا مذهب ضعيف دی ولي سړی چي بالغ سي. نو که سنتي والا ده ذکر ته لاس ورو ړي د ذکر سر يې تر پوست راوخي کما لايخفی، نو سنتي يې بعد البلوغ ډېره مشکله ده، او بل کشف د عورت غليظه وروسته تر بلوغ خو ناروا دی، او بل په حديث مبارك کي راغلي دي چي تاسي خپل عيال امر کوي په لمانځه سره وهم ابناء سبع، او وهي

خپل نوکان دي پرې کړي په ورځ د پنجشنبې ورسته تر ما زدیګر، دا دوه حدیثه که څه هم ضعیف ګڼل سوي دي لکن په فضائلو د اعمالو حدیث ضعیف هم کافي دی کما تقرر في اصول الفقه، فلا یرد ما في المقاصد الحسنة قص الاظفار لم یثبت في تعین یومه عن النبيﷺ آه.

پوهه:- چي پرې کول د نوکانو د مدې تعین نه لري یعني دونه ورځي ورسته به سرې نوکان پرې کوي بلکه هر سړی دي خپلو نوکانو ته ګوري چي د خیرې توهم پکښې پیدا سو بس دي پرې کوي، وما نقل من الترتیب في قصها من بعض العلماء فهو غیر موثوق به، فافهم، او تفسیر مظهري په روایت د عکرمه د ابن عباس رض چي مراد د هغو کلماتو څخه هغه دېرش برخي دي د اسلام چي په ټولو سره یې عمل نه دی کړی په دین ابراهیمي کي، مګر ابراهیم علیه السلام وکذا قال الله تعالی "وابراهیم الذي وفی لکن تفسیر مظهري هغه ټولـه آیتونه کوم چي دغه دېرش کارونه پکښې دي بې ترجمې ذکر کړي دي نو کې درویش هم بې ترجمې ذکر کړي نو به سامعان او مطالعه کونکي ددې تفسیر به څه فائده پر واخلي حتی الطلباء وبعض العلماء او کي درویش ترجمه کوي ډېر ورقي به وغواړي، نو درویش د هغو سورتونو صرف نومان بیانه وي او د هغو خصالو ذکر کوي چي هغه خصال پکښې ذکر سوي دي، نو وایي چي په سورت برائة کي لس (۱۰) خصالة ذکر سوي دي (۱) توبه (۲) عبادت (۳) حد (۴) سیاحت (۵) رکوع (۶) سجده (۷) امر بالمعروف (۸) نهي عن المنکر (۹) حفظ د حدود الله (۱۰) ایمان چي مستفاد دی د آیت څخه وبشر المومنین.

او لس په سورت احزاب کي ذکر دي (۱) اسلام (۲) ایمان (۳) قنوت (۴) صدق (۵) صبر (۶) خشوع (۷) تصدیق (۸) روژې (۹) حفظ الفروج (۱۰) ذکر الهي، او لس په سورت المومنین کي کي ذکر سوي دي

(۱) ایمان (۲) خشوع په لمانځه کي (۳) اعراض عن اللغو (۴) زکوٰة (۵) حفظ الفروج (۶) الاعلی الازواج (۷) او الاماء (۸) رعایة العهد (۹) امانة (۱۰) محافظة علی الصلوات .

**سوال:-** په دې دېرشو خصالو کي بعض مکرر راغلي دي لکه ایمان وغیره نو په جمع کولو د ټولو خو دېرش نه پوره کیږي ؟

**جواب:-** فاضل لاهوري رحمه الله په حاشیه کي د بیضاوي وایې چي تعداد خو دېرش پوره سو، البته تغایر ذاتي به نه سره لري د هغو مورد دعوه نه ده کړې، فافهم

**فَأَتَمَّهُنَّ**

یعني ابراهیم علیه السلام هغه کلمات یعني په هر معنی چي وې پوره کړې او په حقه سره یې د هغو مراعات وکړی، او بیضاوي وایې چي بعض قراء

**نوروبش وایي**:- چي پر دې تقدير به د اذبتلى سره اذكر مقدر كېږي او بعض مفسران وايي چي د ظرف متقدم يعني اذبتلى ابراهيم سره ددې قال اني معطوفه پر ماقبل باندې ده، او بعض مفسران وايي چي جمله د قال اني آه بيان دی د و اذبتلى ابراهيم نو كلمات دغه دي چي په دې ځای كي ذكر كېږي يعني امامة، تطهير. البيت، ورفع القواعد والاسلام.

**فائده**:- د اهل السنة والجماعة په نيز د امامت څخه مراد نبوت دی او يا عام تر نبوت يعني من يوتم به ويجب اطاعته.

**بیوه نکته**:- چي امامت د ابراهيم ﷺ عام دی ولي خير البشر ﷺ ته خدای ﷻ داسي فرمايلي دي "اتبع ملة ابـراهيم حنيفا فـابراهيم ﷺ نبي في عصره و مقتدى لكافة الناس الى يوم القيامة" او شان الهي دی تيوله اهل اديان متفق دي پر تعظيم د ده حتى مشركينو د مكې به هم دا دعوه كوله چي موږ ملت ابراهيم يو، و ذالك فضل الله يوتيه من يشاء ولنعم ما قيل، بقدر الكد تكتب المعالي، مصرع

**فائده**:- د ابراهيم ﷺ فضيلت او مقبوليت خصوصا په امت كي د عليه الصلوة والسلام ددې څخه بايد و فهمول سي چي امت د عليه الصلوة والسلام په مخصوص عبادت كي چي لمونځ دی په اخري ناسته كي داسي وايې، اللهم صل على محمد وعلى آل محمد كما صليت على ابراهيم وعلى آل ابراهيم انـك حميد مجيد، او دا درود به جاري وي الى نفخة الصور.

**قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ**

او ابراهيم ﷺ وويل چي بعض زما د نسل څخه اولاد ته هم نبوت وركړه يا مقتدائيت وركړه، خدای ﷻ په جواب كي دده وويل چي نـسي پيدا كولای زما عهد يعني نبوت او يا مقتداء وايي ظالمان خلك.

**پوهنه**:- چي دا جواب الهي قبول د ابراهیم ﷺ د سوال دی رد نه دی او دې به منتبه کړی په دې سره چي ستا په اولاد کي به ظالمان وي او هغو ته امامت نه رسېږي او ابراهیم ﷺ خو هم د ټولي ذریې لپاره خواست د امامت نه دی کړی په قرینه د من تبعیضي.

**سوال**:- ابراهیم ﷺ ولي د بعض اولادو تخصیص په دعا کي وکړي؟

**ځواب**:- ابراهیم ﷺ په عادت الهي پوهیدی چي ټوله خلک پر اسلام او یا پر عدالت او تقوی نه سره جمع کیږي.

**پوهنه**:- چي که مراد په امامت سره نبوت سي نو مراد د ظالم څخه مطلق فاسق دي ولو کان مؤمنا لان المعصمت من المعصیة شرط في النبوة اجماعا. او که مراد د امامت عام تر نبوت وي یعني مطلق مقتدائیت او تنفیذ القول، نو مراد د ظالم څخه کافر دی ولي چي کافر مقتداء او امیر گرځول وه مسلمانانو ته نه دی روا لقوله تعالی "ولن یجعل الله الکافرین علی المؤمنین سبیلا یعني باختیار المومنین فلا یرد، چي په هندوستان کي پر کروړونو مسلمانانو باندي هندوان او مشرکان امریت لري، وهکذا في الممالك الآخر وایضا قال الله تعالی "ولا تطع منهم اثما او کفورا آه.

**پوښتنه**:- په نړۍ کي ډېر ظالمان او فاسقان سته چي واکي د آمریت په لاس کي لري نو "لاینال عهد الظلمین" څه معنی ده چي د ظالم څخه فاسق مراد دی؟

**ځواب**:- مراد ددې چي د ظالم او فاسق خلک یعني مسلمانان دده په ظلم او معصیة کي اطاعت نه کوي کذا في المظهري، لقوله علیه السلام اطاعة المخلوق في معصیة الخالق،، رواه مالک واحمد.

**پوښتنه**:- خدای ﷻ وایي اطیعوا الله واطیعو الرسول واولی الامر منکم، نو د اولي الامر اطاعت بیله قید او شرطه واجب ګرځولی دی، او دغه رنګه په حدیث نبوي ﷺ کي راغلي دي، اسمعو و اطیعو عبدا حبشیا آه یعني تاسي اورئ خبره د امیر او فرمان برداري کوئ دده که څه امیر ستاسي مریی وي حبشي، قال المظهري رحمه الله په جواب کې داسي ویلي دي چي دا آیت او حدیث خاص دی په هغه چا پوري چي امر دده د امر څخه د شرع مخالف نه وي قوله تعالی ومن ذریتي قال المظهري تبعا للبیضاوي عطف علی الکاف اي بعض ذریتي، او ده نور تفصیل نه دی ذکر کړی چي عطف یې پر کاف څرنګه صحیح کېږي او اعراب د من ذریتي څه دی، نو تفصیل د بیضاوي دقول دا دی چي د مجموع جار او مجرور عطف کړه اشاره ودې ته وکړه چي معطوف علیه کاف دی په اعتبار د محل نه په اعتبار د لفظ ولي حرف جر چي من دی مضاف الیه د جاعل لکه کاف چي دی نسي کیدای، نو پر تقدیر د جلا کولو د کاف د جاعل څخه دی منصوب محلا مفعول به دی اوس من ذریتي په تاویل د بعض هم مفعول به دی نو هغه سوال هم دفع سو چا چي کړی دی چي عطف پر ضمیر مجرور خو بیله اعاده د جار نه دی روا کما في کتب النحو وجه دفع یې داده چي من ذریتي خو پر محل د مجرور چي کاف دي عطف دي نه پر لفظ دکاف او اعاده د جار خو په عطف لفظي کي غواړي فافهم.

**د تعجب وړ خبره**:- عبیدالله که د یو کتاب نقل وکړي بیله حوالي وهغه کتاب ته نو حاسدان او بعض کتاب فروشان معلوم الحال وایي چي عبیدالله سارق دی نو دوي په شان کي د مظهري رحمه الله څه وایي چي ښخي په ډېرو ځایو کي عبارت د بیضاوي او قول دده راوړي او حواله هم نه کوي او ګاهي نادراً حواله وکړي.

شعر

هم یحسدونني وشر الناس کلهم،
من عاش یوماً في الناس غیر محسود

بیت

چشم بد اندیش که بر کنده باد عیب نماند هنرش در نظر

**درویش وایي:-** چي دا حسد د علماو د اوس څخه نه دی بلکه قدیماً وحدیثاً جاري دی ته د درمختار د اولي ورقي مطالعه وکړه چي څونه یې د حاسدانو څخه شکایت کړی دی، او دغه رنګه علامه مظهري عبارت د بیضاوي رح ببله حوالې داسي را نقل کړی دی ذریة فعلیة او فعولة قلبت رائها الثالثة یاء من الدرر بمعنی التفرق، او فعلوئة او فعلیة قلبت همزتهایاء من الذرء بمعني الخلق انتهي. بنه حاسده درویش به بیان نه په کتبي کوي ته کتاب فروش حاسده یوڅه بیان او حل یې وکړه او یا د حسد څخه توبه وکاږه.

## وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا

او په یاد کړه هغه وخت، یعني واقعه د هغه وخت چي موږ وګرځول بیت یعني کعبه مبارکه.

**پوهنه:-** چي بیت په اصطلاح ده قران علم بالغلبة دکعبي شریفي دي.

**پوهنه:-** چي مثابة صیغه د ظرف خو ده نو مشتق د ثوب معني د رجوع سي نو معنی یې داده چي کعبه شریفه ځای د رجوع د خلکو ده شرقاً وغرباً جنوباً وشمالاً بلکه بعض د خلکو د پاره مرجع مرة بعد اخری ده، او

که مثابة مشتق سي د ثواب څخه نو بيې معنى دا ده چي كعبه ځاى د ثواب ده بحج او عمرة او صلاة قال رسو الله ﷺ على ماروا‌ه ابن ماجه صلوته اي الشخص في المسجد الحرام، بمائة الف صلوة امنًا چونكه مصدر دى نو مضاف محذوف دى يعني موضع امن، يعني د ازاره څخه د مشركانو ولي چي مشركانو هم تعرض پر اهل مكه نه كاوه او دابې ويل هم اهل الله.

او ښا وخوا د مكي بې حملې كولې كما قال الله تعالى اولم يروا انا جعلنا حرما امنا ويتخطف الناس من حولهم، وقال رسول الله ﷺ يوم فتح مكة، ان هذا البلد حرمه الله يوم خلق السموات والارض فهو حرام بحرمة الله الى يوم القيامة وانه لن يحل القتال فيه لاحد ولم يحل لي الا ساعة من نهار، الى آخير الحديث رواه البخاري ومسلم بطوله برواية ابن عباس ﷺ

**فائده**:- مثابة چي د ثوب څخه مشتق سي په معنى د رجوع او دا معلومه خبره ده چي رجوع عود ثاني يا ثالث ته وايې نوللناس عموما څرنګه صحيح كېږي ولي ډېر داسي مسلمانان سته چي يواري حج ته ولاړسي دوهم واره يي تر مرګ حج نصيب نه سي.

واجاب عنه البيضاوي لقوله يثوبون اليهما اعيان افراد آه حاصل د جواب دادى چونكه مسلمانان ټوله په مسلماني كه او په قصد كي د حج او عمرې شريك دي نو مثابة على العموم صحيح، ولي حاجي كه رجوع وكعبې ته ونه كړي وروز مسلمان خو يې حج ته سږ كال تللى دى نو د هغه حج د دمخنكي حج كونكي ګويا رجوع ده، لكن دې تكلف ته د روېش په نيز ضرورت نسته ولي د يو بنه جامع عالم په باره كي خلګ وايي چي فلانى عالم مرجع الطلباء دى نو ددې وجه څخه دا معنى نه ده چي ټوله طالبان وته د استفادې لپاره ورځي بلكه معنا يې دا ده چي فلانى عالم مستحق ددې دى چي ټوله طالبان استفاده د علم

خندي وكړي فكذا قوله مثابة للناس يعني كعبه شريفه مستحق ددي ده بيا بيا رجوع ورته وكړي.

**فائده**:- بعض مفسران وايې چي كعبه ځای د امن دی په دې معنی چي څوك چي زيارت ته د بيت الله ولاړسي په نيت د حج او حج وكړي هغه په امن كي دی د عذابه د آخرت لما ورد في الخبر ان الحج يجب ماقبله يعني من المعاصي.

**فائده**:- ابن الشيخ رحمه الله وايي محو كول د معاصي قبلي دو په حج سره مخصوص دی په حقوق الله سره لكه لمونځ او روژه وغيرها لكن حقوق الناس فلايمحو بالحج، لكن په كافي كي او په تفسير كي د فاتحه دعلامه قناري وايې چي په شپه كي د مزدلفه چي عليه السلام په باره كي د عفو د حقوق الناس وحاجي ته دعاء وكړه هغه دعاء يې هم قبول سوه، يعني په دې معنا چي خدای ﷻ د حاجي له خوا عوض وركوي په جنت كي وهغه چا ته چي پر حاجي حق مال لري وهو الصحيح.

## وَاتَّخِذُوا مِنْ مَّقَامِ إِبْرٰهِمَ مُصَلًّى

او تاسي وګرځوي له مقام ابراهيم عليه السلام څخه ځای د لمانځه.

**پوښتنه**:- چي چونكه واتخذوا امر او انشاء ده عطف يې پر جعلنا البيت آه، چي اخبار دی نه دی صحيح، نو د ټولو مفسرانو رح دا اتفاق دی چي د عطف لپاره د قلنا تقدير غواړي. ای وقلنا اتخذوا، او بيضاوي رحمه الله داهم توجيه كړې ده چي كه جمله د اتخذوا چي پر انشائيه پربږدي، او عطف يې كړي پر اذكر چي عامل وو په ظرف د جعلنا البيت هم صحيح دی، چي عطف د انشاء پر انشاء به راسي، او بيضاوي رحمه الله دا احتمال هم

ختې پلار ته ورکولې او بېرته به ډېره پورته کېدل وهکذا الی ان تم الجدران الاربعة للبیت الشریف، او په دې ډېره کې اثر د قدمینو د مبارکینو د ابراهیم ﷺ نقش وو لکن د ډېر مسه کولو څخه د خلګو اثر القدمین اوس ډېر کم معلومېږي، او ابراهیم ﷺ او اسماعیل ﷺ به په وخت کې د بناء البیت داسي داعا کوله "ربنا تقبل منا انک انت السمیع العلیم، او دا ډېره به په زمان قدیم کې متصل بالبیت وه یعني هغه ځای چې اوس امام المسجد الحرام هغه ځای ته نژدې درېږي ولې چې په عصر قدیم کې د کعبې زائرین او طواف کونکي کم وه، نو دوه رکعته واجب د طواف به هغې ډېرې ته نژدې کېدله او طواف کونکو به طواف هم کاوه یعني اذدحام نه جوړېدی وروسته چې طواف کونکي ډېر سوه، نو هغې ډېرې ته نژدې د لمونځ کونکو تر منځ ډېر اذدحام جوړېدی، نو یې مقام ابراهیم ﷺ نقل کړی هغه ځای ته چې د مطاف څخه بېه ګوښه د هینداړو په ګنبد مانند ښېښه کې کېښېښود.

**درویش والي**:- چې تر دې اوس هجري سنه (۱۴۲۰) له مخو کلو کې یعني پنځه ویش کاله د مخه چې درویش به حج ته سفر کاوه نو چې طواف به مو وکړی، نو د طواف ګاه څخه به ووتلو څو ګامه وروسته به مقام ابراهیم ته ورغلو او هلته به مو واجب دوه رکعته بېله ډېر اذدحامه اداء کړه، لکن په اوسنی زمانه کې چې زائرین د کعبې مکرمې نهایت ډېر سوه نو حکومت سعودي مطاف ډېر فراخه کړی چې مقام ابراهیم ﷺ په منځ کې د مطاف راغلی.

**د حاجیانو غلطي**:- د بعض بېعلمه او جاهلانو حاجیانو دا عقیده وي چې واجب د طواف خاماخوا په مقابل او نژدې ومقام ابراهیم ﷺ ته حاجي پسله طواف ګزاري، نو دوی پنځه یا شپږ کسه سره ملګري سي او

لاسونه سره ورکړي او يو سړی يې د مقام ابراهيم ﷺ سره پر لمانځه ودريږي هغه چي لمونځ وکړي بيا بل پر لمانځه ودريږي وهکذا. او بلي خوا ته د طواف کونکو سېلاب را روان وي. نو ددغه لمونځ کونکو سره ټېلې او ټېلې وي، بعض وخت لمونځ کونکی غخار کړي.

**درويش وايي**:- چي د جهل او بيعلمی دغه نتيجه ده ولې چي واجب د طواف خو په ټوله مسجد حرام کې روا وه بلکه په حضور د زړه يې اداء کړي وای خير، هرکس که ديوانه باشد مېگويد که ديوانه ديگران نند

او بعض مفسران ح وايي چي په زمانه کي د طواف د ابراهيم ﷺ مقام ابراهيم په جبل ابي قبيس کي پټ سوی و، نو چي ابراهيم ﷺ او اسماعيل ﷺ د بناء البيت څخه فارغه سوه نو خدای ﷻ و ابراهيم ﷺ ته امر وکړی چي ته اعلان د حج البيت وکړه په خلکو کي نو ابراهيم ﷺ ووېل چي زه

نو بغوي د سعيد بن جبيره څخه او هغه د ابن عباس ﷺ څخه داسې روايت کړى چې ابراهيم ﷺ کله چې اسماعيل ﷺ رضيع و سره د مور هاجرې ﷺ د مکې وخالي او بې اوبو شېلې ته راوستل يعني په غوښتنه د سارى ﷺ او په حکم د خداى ﷻ او هورې يې د يوې درختي لاندې کېښول او يو څه خرما او يو ژى اوبه يې ورته کېښښولې او خندي ستون سو. د شام پر خوا هاجرې پسې نارې کړې "الى من تتركنا في هذا الـوادي الـذي ليس فيه انس ولا مـاء" مور چاته پرېږدې په دې شېله کې نه په دې کې د الفت څوک سته او نـه هم اوبه. ابراهيم ﷺ د زړه لـه درده او د سترګو د اوښکو له سببه هغې ته جواب نه کړى ور بيا هاجرې ﷺ ورتـه وويـل آالله امـرك بهـذا، ابـراهيم ﷺ د سر پـه اشـاره جـواب د "نعـم" ورکړى يعني هـاجرې ﷺ ورتـه وويـل آيـا خـداى ﷻ تـه امـر کړې چې مـا او رضيع زوئ اسماعيل دلته پرېږده. ابراهيم ﷺ د سر په اشاره ورته وويل چې هو، نو هـاجرې ﷺ وويـل "اذ الايضيعنا"، نو چې خداى ﷻ امر کړى يې نو مـوږ خداى ﷻ نـه ضـائع کوي، ابراهيم خندي ولاړى او تر جبل ابي قبيس چې نهام سو نو داسي يې وويـل" رب اني اسکنت مـن ذريتـي بـواد غير ذرع" الآية" او دعا يې هم وکړه "رب اجعل هذا بلـداً آمنـا الآيـة "نـو هـاجرې ﷺ خرما څه څه وخوړله او اوبه يې هم څېښلې او د حيرت او دهشت شپې او ورځې يې په دغه شېله کې تېرولې، اخر الامر خرما او اوبه دواړه ختم سوه، او د هغه په اثر ددې شيدې هم ختمې سوې او اسماعيل هم وږى او هم تږى سو او په ريګو کي به لغښتى هاجره ﷺ د زوئ ددغه حالت په ليدو سره ناقراره سوه، نو نژدې غر چې د صفا په نامه يادېږي، ولاړه په دې اميد چې ګوندي يو څوک پر شا وخوا ووينې او کومک خندي وغواړي شا وخوا يې وکتل څوک په نظر نه ورغله، او په عين حال کي به يې وخپل زوئ ته کتل

يعني چي مږ سو او كه ژوندي دي (له دې سببه حاجيان چي د صفا پر غره ودرېږي تر اوسه پوري د كعبې پر خوا ګوري) وروسته هاجره ؓ د صفا له غره څخه راكښته سوه او لاندي ډېره ژوره شپله وه نو په ځغاسته تر هغې شپلې تېره سوه، او بيا په عادي تګ نژدې غره ته چي مروه يې نوم و ولاړل چي شاه وخوا وګوري خو هوري يې هم څوك نه وليدى بيرته نا اميده د صفا پر خوا روانه سوه څو شپلې ته ورسېدله بيا په ځغاسته څندي تېره سوه د صفا غره ته ورسېدله شاه وخوا يې وكتل او د زوئ پر خوا يې هم وكتله زوئ يې په هغه اضطرابي حالت كي وليدى، حاصل دا چي اوه واره هاجره پر هيئت مذكوره د صفا او مروه تر منځ تګ او راتګ يې وكاوه چي په جاهليت او اسلام كي دغه تګ او راتګ باقي پاته وو، او عليه الصلواة والسلام او اصحابو كرامو ؓ هم دغه ځغاستي كړي دي او خداي ﷻ په بيان كي د سعي بين الصفاء والمروة دا ايت هم نازل كړى دى "ان الصفاء والمروة من شعائر الله الآية" او دا سعي واجب ده په حج كي ركن د حج نه ده عند ابي حنيفة ؒ

**درويش وايي**:- چي په ابتدائي حجر كي زما هغه شپله هم پر هغه پخواني حال د شګو ډكه باقي وه، او حاجيان به په ځغاسته تر هغې شپلې تېرېدله، لكن اوس حكومت سعودي هغه شپله ډكه كړې ده او په ښه زيبا ډول يې د صفا او مروه مابين فرش كړى دى، او د صفا او د مروه څخه د تګ او راتګ لاري يې هم سره جلا كړې ده، نو د شپلې هغه نام او نشان خو نسته البته د شپلې ځاى تر نورو ځايو لږ كښته دى مګر سعودي لپاره د احتياط پر يوه سر د شپلې او پر بل سر د شپلې ودواړه طرفه ته زرغونه ميلان نصب كړي چي په هغو سره حاجيانو ته د شپلې معلومات كېږي او ددې دوو ميلو په هر طرف كي په ځغاسته تېرېږي، او دا طريقه به تر الى

یـوم القیامـة پـوري جـاري وي، ان شـاء الله تعـالی، خـو اخـر د قصې د هاجرې ﷺ دادی چې دې چې اوه شوطه پوره کړه او اخري شوط کې پر مروه ولاړه وه او د خپل زوئ وخوا ته یې کتله یو اواز یې واورېدی چې وې کتله یو سړی یعني جبرائیـل ﷺ په رنګک د سړي پر هغه ځای چې ددې زوئ پروت و، او ددې ځای نوم زمزم و، خپله پونده یې کښېښودله نو د مځکې څخه اوبه را وغورځېدلې هاجرې را میدان کړه چابک چابک یې پر هغه باندې خاورې را وګرځولې او په غبرګو یې و ژې (ګوډې) ته اوبه اچولې او د چینې مابین یې غاروی، او په حدیث صحیح کې راغلي دي چې علیه الصلواة والسلام ووېل "رحم الله ام اسمعیل لوترکت زمزم لکان عیناً معیناً او کما قال" یعني خدای ﷻ دې رحم وکړي پر مور د اسماعیل ﷺ که دې پرې ایښې وای زمزم پر خپل حال یعني خاورې یې نه وای پر راګرځولې او په غبرګو یې اوبه نه وای خندې اخستې نو زمزم بـه داسې چینه وای د مځکې پر مخه به بهېدلای، بعض ناپوه جاهلان وایي ته بوهېږي چې زمزم د هغه ځای نوم دی او د دوئ جاهلانو دا خیال دی چې د زم زم معنی داده چې ودرېږې لکن دوئ هغه لفظ چې پر درېدو دلالت کوي خو ضم ضم دی زمزم نه دی، خیر هاجرې اوبه وچښلې او کوچني یې په غیږ کې کړ ځېدله چې یو ځای به یې یو شین وابنه پیدا کړی هغه بـه یې خوړی او بیرته یې شیدې په تیو کې پیدا سوې خپل زوئ بې په مړاوه او شپې او ورځې بې تر هغه درختي لاندې چې زمزم ته نژدې وه تېرولې .

**فائده**: د زمزم ځاه دخدای ﷻ یو نخښه ده چې دا په لکو حاجیانو ته اوبه ورکوي بلکه نن صبا د مکې والو په هرکور کې د زمزم اوبه ځېنل کېږي بلکه سعودیانو د مکې شریفې څخه په ذریعه د پیپو دزمزم د ځاه څخه اوبه مدینې منورې ته هم نقل کړي دي چې هورې هم ټوله زائرین هغه

اوبه څیښني، او ټولو کورو ته د مدینې منورې د څیښلو لپاره هم د زمزم اوبه استعمالیږي.

**فائده:**- فقهاء او مفسرین او محدثین رح وایي چې د زمزم اوبه د جنت تر اوبو هم مشرفې دي ولې چې څه وخت چې جبرائیل ﷺ علیه الصلوٰة والسلام معراج ته بیوی، او زړه یې خندي راوکښی د زمزم په اوبو یې ور پرې وی او د جنت څخه یې د ځانه سره د جنت اوبه را نه وړې.

**قصه معترضه:**- تاریخ وایي چې د جاهلیت په وخت کې د یوه پخوا یو نر او یوې ښځې په داخل کې د کعبې د خوني زنا سره وکړه او خدای ﷻ دوئ دواړه ډبره کړه نو د جاهلیت خلکو نر د صفا او ښځه د مروا پر غره ودروله لپاره د عبرت رفته رفته په مرور د زمانو شیطانانو په زړو کې د هغو دا ورواچول چې تاسي دا بتان مسحه کوئ کرار کرار شیطان ودې حد ته دوئ ورسول چې دې دوو بتانو ته اهل جاهلیت سجدې کولې او خدایان یې وګرځول، او دا کار او عبادت جاري وو چې په فتح مکې کې دا بتان سره د هغو بتانو چې پر شا وخوا د کعبې شریفې ولاړ وه ټوک ټوک سوله.

**پاته قصه:** مظهري او روح البیان وایي چې د جرهم د قبیلې چې عرب وه او صحرانشینه وه، د دوئ یو قافله د تجارت لپاره د مکې چې پخوا یې نوم بکه وه پر لاندې لاریاندې تیریدله چې دوئ مرغان ولیدله چې شاء وخوا د زمزم د ځاه ګرځیدله. نو دوئ په خپلو کې سره وویله چې مرغان خو بې اوبو نه ګرځي نو یو یا دوه کسه یې را واستول چې تاسي وګورئ چې په دې غرو کې خو کومه چینه نه ده پیدا سوې خلګ چې راغله که ګوري هاجره زوئ یې په غیږې کې د زمزم سره ناسته ده نو خلګ ولاړه

قافله والا یې خبر کړه هغه راغله او هاجرې ﷺ ته یې وویل که ته مور ته دغې چینې اوبه راکوې نو موږ خپلې کډې راولو او دلته به خېمې یا کېږدۍ ودروو او دا چینه به هم پسې جوړه کړو یعنې چې څاه څنډې جوړې سي. هاجرې د وهشت د دفعې لپاره ددوئ دکډو راتګ غنیمت وګانړه او دوئ ته یې وویل چې اوبه خو درکوم اما د ملکیت دعوې به یې نه کوئ هغو ورته وویل چې ښخې صحیح ده هغه خلګ دلته تم سوه او په کډو پسې یې څو کسه واستول کډې ښځې او کوچنیان یې راوستل، او خېمې یا کېږدۍ یې نصب کړې او هاجرې ته یې هم یوه خیمه او د اواریدو بعض شیان ورکړه، او د زمزم پر څاه باندې یې څه کار وکړی چې اوبه یې ډېرې سوې او قافلې وال په خپل تجارت پسې ولاړه خیر رفته رفته په مرور د ایامو د ابراهیم ﷺ زوئ خدای ﷻ لوئ کړی او عربي ژبه یې هم د دغو جرهمو څخه زده کړه اوبه کرار کرار د ختو کورونه جوړ سول، او اسماعیل ﷺ چې ځوان سو په هغو جرهمو کې یې واده وکړی، او مور هاجره یې وفات سوه تر دغه وخته پورې ابراهیم ﷺ د خپل زوئ و ملاقات او د مابېني و ملاقات ته ساری نه پرېښود. اخر الامر هغې اجازه ورکړه چې ولاړ سه لکن دآسه به نه کښته کېږې ولې چې ساره د هاجرې په مرګ نه وه خبره، نو ابراهیم ﷺ چې د بکې شېلې ته راغلی که ګورې کلي او کورونه جوړ سوي دي. نو د چا څخه یې پو ښتنه وکړه چې دا سماعیل کور کوم دی خلګو ور وښودی ابراهیم ﷺ چې کورته ورغی نو اسماعیل ﷺ نه وو نو د ښځې څخه یې پوښتنه وکړه "این زوجك" مېړه دې چېرې دی؟ هغې ورته وویل چې ښکارته تللی دی او د اسماعیل ﷺ داکارو چې د حرم د سرزمین څخه به وتی په حل کې به یې ښکار کاوه او ماښام ته به راغلی نو ابراهیم ﷺ هغې ښځې ته وویل خو نو مړور یې ده او ښځې خو نه پېژندی

"هل عندك ضیافت" ته د میلمستیا شی لرې یعني چي ما مېلمه کړئ هغې ورته وویل یا شی نسته، نو ابراهیم ﷺ پوښتنه د معاش او اقتصادي حالت خندي وکړه هغې ورته وویل چي د معشیت ډېره تنګي ده، نو ابراهیم ﷺ هغې ښځي ته وویل چي مېړه دي راسي زما سلام پر ووایه او نوم یې نه ور وښو او نه ښځي خندي پوښتنه وکړه چي ستا نوم څه دی خیر ابراهیم ﷺ ولاړی، مازدیګر چي اسماعیل ﷺ وادي ته راغلی د تولي شېلې څخه خوشبوئي ولاړېدله او د خوشبوئي تاثیر دده د کور پر خوا و، دی پوه سو چي زما پلار خلیل الله به راغلی وي، نو د ماینې څخه یې پوښتنه وکړه چي زموږ کورته نن څوك راغلی و. ښځي د سپکاوي په لهجه ورته وویل یو سپین ږری راغلی او ستا پوښتنه یې وکړه، نو اسماعیل ﷺ ورته وویل نو یې څه نه در ته وویل هغې ورته وویل هغه سړي دا وویل چي مېړه دي راسي زما سلام پر و وایه او دا ورته ووایه چي د دروازې چار چوب دي بدل که اسماعیل ﷺ ورته وویل هغه زما پلار و زما پلار د دروازې د چار چوب څخه مطلب ته یې په کنایه زه ستا په طلاق امر کړی یم څه ولاړه سه خپل کورته یعني پر ما طلاقه یې. او بیا اسماعیل ﷺ بله ښځه په هغه قوم کې وغوښتل او واده یې وکړی، څه موده وروسته ابراهیم ﷺ بیا د ساری ﷺ څخه اجازه وغوښتله چي زه به ولاړ سم خپله ترکه به وګورم بیا هغې دا شرط پر عائد کړی چي د آسه به نه کښته کېږي.

**شروېش وایي**:- د هغو ښځو دغسي حال دی چي شاید ابراهیم ﷺ به ساری ته د مخه وار ویلي وي چي هاجره وفات سوې وه مګر بیا هم ساره پر بد ګمانه وه چي ابراهیم ﷺ د آسه کښته سي نباید چي د هاجرې سره یې نوره معامله نسي پیدا خیر خو ابراهیم ﷺ مکې ته راغلی د اسماعیل ﷺ په کور کي بله ښځه ناسته وه نو ده د اسماعیل ﷺ پوښتنه خندي

وکړه هغې ورته وویل چې هغه ښکار ته تللی دی او ورته وه یې ویل چې انشاء الله ژر به راسي راکښته سه یرحمك الله. ابراهیم ﷺ ورته وویل چې "هل عندك ضیافة" هغې ورته وویل هو نو یې شیدي او غوښې ورته را واخستې ابراهیم ﷺ هغه وخوړلې او دعاء د برکت یې ورته وکړه (په شیدو او غوښو کې راوي وایي که ددې ښځې په کور کې دوډۍ وای غلمینه یا وریشنه یا خرما او ابراهیم ﷺ دعا د برکت ورته کړې وای نو مکه به اکثر د ښارو وای په مځکه کې "بُراً او شعیراً او تمراً" او ابراهیم ﷺ د ښځې څخه پوښتنه د عیش وکړه هغې ورته وویل الحمدلله نحن بخیر وسعة. نو بیا ښځې ورته وویل چې ته را کښته سه زه به دې سر او ږیره د پرېمینځم ابراهیم ﷺ ورت وویل د کښته کیدو اجازه نه لرم نو هغې ښځې یو غټه ډبره را ګیل کړه او د آس ویوه طرف ته یې کښېښول او ابراهیم ﷺ پر آس سپور یوه پښه یې پر هغه ډبره کښېښول ښځې د هغه طرف سر او ږیره ور پرېوله او بیا وهغه بل طرف ته ور واوښتل هغه بل طرف یې ور پرېولی او وښځې ته یې وویل چې مېړه دې راسي زما سلام پر وایه او وروسته ترسلامه ورته ووایه چې د دروازې چار چوب دې اوس سم دی ښه یې مضبوط ساته (راوي وایي چې په دغه ډبره کې د ابراهیم ﷺ ده دواړو پښو اثر پیدا سو) نو څه وخت چې اسماعیل ﷺ کورته راغلی بیا د پلار بوئ پر ولاړسو نو یې مایني ته وویل چې نن کورته یو څوك راغلی وو ماینې ورته وویل چې یو سپین ږیری حسن الوجه او چې ډېره ښه خوشبو یې وه سړی راغلی و، فقال کذا کذا یعني هغه مځکنۍ خبرې د ابراهیم وذې ته او د دې وه ابراهیم ﷺ ورته بیان کړې، او مایې سر او ږیره ور پرېوله او دا هم ده د مبارکو پښو اثر دی په دغه ډبره کې نو اسماعیل ﷺ ورته وویل چې هغه سپین ږیری زما پلار ابراهیم ﷺ و او ته زما د دروازې عتبه یې نو یې

زه امر کړی یم ستا په خوندي کېدو سره، او څو کلونه وروسته بیا ابراهیم ﷺ د مکې پر خوا را روان سو په امر د خدای ﷻ نو څکه دا وار د چا څخه اجازه نه وغوښتل مکې ته راغلی اسماعیل ﷺ تر یوې درختې لاندي ناست و او غشي یې جوړول نو چي فراق زده پلار ئې ولیدی په الهام سره خدای ﷻ په وپېژندی نو ور ولاړ سو اسماعیل د خپل پلار احترام وکړی او پلار دی په خپل څکر پوري ونیوی او مفسرینو ددې ملاقات مجمل بیان داسي کړی دی" فضعا کما یضع الوالد بالولد والولد بالوالد".

نو وروسته یې اسماعیل ﷺ ته وویل چي خدای ﷻ په یو کار امر کړی یم نه زما کومك کوې اسماعیل ورته وویل "نعم" یعني هو نو ابراهیم ﷺ ورته وویل چي زه خدای ﷻ امر کړی یم چي دلته یوه خونه لپاره د عبادت د خدای ﷻ جوړه کړم "وفي الحدیث الذي رواه مالک عن انس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ الرکن، اي الحجر الاسود، والمقام، اي مقام ابراهیم یاقوتان من یواقیت الجنة وهکذا روي عن ابن عمر ﷺ.

**پوښتنه**:- ابراهیم ﷺ ولي هاجره او ددې رضیع زوئ په داسي ځای کي پرېښول چي نه انسان وو او نه اوبه.

**ځواب**:- څه وخت چي ساری زوئ راوړی چي نوم یې اسحق ﷺ ابراهیم ﷺ کښېښو او هاجرې هم زوئ راوړی چي نوم یې اسماعیل کښېښو نو د ساری قصد په وسو او هغې دا ورته وویل چي هاجره او زوئ ددې به د بکې په غرو او شېلو کې اړدې او پرېږدې.

**پوښتنه**:- په داسي ځای کي د یوې ښځې او رضیع د هغې پرېښول خو مرادف د قتل دي نو ابراهیم ﷺ ولي د ساری په خوله دا کار وکړی.

**ځواب**:- ابراهیم علیه السلام ته د خدای ﷻ له خوا څخه امر داسي راغلی چي د ساري خواهش ور پر ځای کړه او د خدای ﷻ حکمت دا و چي د بکې وچه شبله یو وار په انسانانو اباده کړي او بیا تعمیر د هغې بیت الله چي په طوفان نوح کي اسمانوته پورته سوی وه از سر نو کړي" والله علیم حکیم وليس لاحد حق الاعتراض على مايفعله المولى عز وجل.

**فائده**:- پوه سه چي ابراهیم على نبينا عليه الصلواة والسلام چي مرتبې ته د خلیل الله رسېدی د څونه امتحاناتو او تکلیفاتو سره مخامخ سو، مقابله د نمرود لعين، او بیا په اور کي غورځول دده او له اور څخه ده نجات پیداکړی، وترك الوطن او هجرت ته چي یو عظیم الم جسماني دی مجبور سو او دی او دده همسره ساري رضي الله عنها دوه په دوه یې هجرت وشام ته وکړی، او بیا په پرېښولو د خپلي بلې همسري يعني هاجره رضي الله عنها او ددې رضيع زوئ اسماعیل علیه السلام په شېلې کي د بکې چي قديم نوم يې و د مکې مکرمې د خدای ﷻ له خوا څخه مکلف سو او هغه تکلیف هم ابراهیم علیه السلام برداشت کړی ددې ټولو تکلیفو او جسماني ازارو سره ابراهیم علیه السلام په مقام درضا بمایضع الله جل سلطانه" به خوشحاله او مستقیم وو، زیرا که ضرب الحبیب زبیب، برا حتی نه رسید انکه زحمتي نه کشید.

او دا هم د ابراهيمي وقائع څخه بداهةً معلومه سو چي د رب جل وعلا قرب او دوستي مسخره نه ده، "وقد ورد في الحديث الصحيح النبوي ﷺ اشد الناس بلاء الانبياء ثم الاولياء ثم الامثل فالامثل" بيت

هم خدا خواهي وهم دنیای دون — این خیال است ومحال است وجنون

وقال الاخر

بقدر الكد تكتسب المعالي — ومن طلب العلى سهر الليالي

او بل شاعر وايي

چا ویل چې په دریاب کې درر شته او باز غواړي چې ځان ورسوي پای نه

**درویش وایي:-** چې په دې باره کې یو مکتوب۶۴ د امام رباني مجدد الف ثاني شیخ احمد السر هندي قدس سره د هر مو زون او په زړه پوري دی او د درویش د خبرو تائید کوي او د ابراهیم ﷺ د حالاتو عکاسي کوي دا مکتوب و شیخ فرید ﷺ ته صادر کړی دی، **سلکم الله سبحانه وعافاکم في الدارین بحرمة سید الثقلین علیه وعلی اله الصلوات والتسلیمات،** لذت والم دنیا بر دو قسم است جسماني وروحاني هر چیز که جسد را دران لذت است روح را ازان الم وهر چیز که جسم ازان متألم است روح را ازان التذاذ است، پس روح وجسم نقیض یکدیگر باشند ودرین نشات، یعني حیاة دینوي که روح بمقام جسم تنزل نموده است و گرفتار جسم وجسماني شده روح نیز حکم جسم پیدا کرده بلذت او متلذذ گشته است وبالم او متالم، اینست مرتبه عوام کا لانعام، کریمه،" ثم رددناه اسفل السافلین درشان ایشان صادق است ، وای هزار وای اگر روح ازان گرفتاري خلاص نشود، وبه وطن اصلي رجوع نماید، پایه آخر آدم است وآدمی گشت محروم از مقام محرمي یعني دوستي ومحبت الهي وعشق خداوندي،

گر نه گردد باز مسکین زین سفر نیست ازوی هیچ کس محروم تر

یعني از انوار صفاتي وذاتي از بیماري روح است که الم خود را لذت مي انگارد ولذت را الم مي شناسد در رنگ صفراوي، که بواسطه علت صفرا شیریني را تلخ میاید پس بر عقلاء فکر ازاله این مرض لازم است تا در الام و مصائب جسماني خرم وشاد ان باشد و زندگاني نماید،، بیت

از پي این عیش وعشرت ساختن صد هزاران جان بباید باختن،

وچون نیک ملاحظ کرده میشود معلوم میگردد که اگر درد نبا درد و الم ومصیبت نمي بود بجیزي نه مي ار زید ظلمت انرا وقائع وحوادث زائل میگردانند تلخي حوادث در رنگ تلخي داروي نافع است که ازاله مرض مینماید، محسوس این فقیر شده است در دعوتهاي که طعام مي پزیرند وخلوص نیت نمي توانند کرد، و جمعي از طعام خواران بشکوي میخزند ومنقصت طعام

وصاحب طعام مینمایند وصاحب طعام را ازین معنی شکستګي دل حاصل میګردد، وهمین شکستګي صاحب طعام ظلمتي را که در طعام رفته بواسطه عدم خلوص نیت ازاله مینمایند و درمعرض قبول مي ارند اګر شکوه آن جماعت نمي بود و انکسار قلب صاحب طعام نمي شد طعام سرا سراز ظلمت وکدورت بود احتمال قبول را در آنصورت چه ګنجایش پس مدارکار برشکستګي وا واره ګي آمد ومانازپرور دګان جویان عیش وتنعم را مشکل کاریست، وما خلقت الجن والانس الا لیعبدون نص قاطع است وعبادت عبارت از تذلل و انکسار است پس مقصود از خلقت انسان خواري او است علي الخصوص مسلمانان ودینداران که دنیا سجن ایشانست در زندان عیش جویان بودن از عقل دور است پس ادمی را از مشق محنت کشي چاره نبود واز ورزش بار برداري ګذرنه حضرت حق سبحانه وتعالي مابي طاقتان را بر این معنی استقامت فرماید بحرمت سید البشرﷺ .

**درویش وایي**:- دا وو د ملغرو او د جواهراتو ډک امېل چي مجدد الف ثاني رحمه الله زمونږ په غاړه کي راوچوی، لکن لیت شعري من یعمل به وینظر الیه بنظر الوعظ والنصیحت ومن الله التوفیق للعمل بامثال هذه الموعظة من علماء الامت المرحومة واولیاء حضرت الحقیقة رحمهم الله

# وَعَهِدْنَآ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِـۧمَ وَإِسْمَٰعِيلَ أَن طَهِّرَا بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِينَ وَٱلْعَٰكِفِينَ وَٱلرُّكَّعِ ٱلسُّجُودِ ﴿١٢٥﴾

او مونږ وصیت وکړی یعني امر مو وکړی ابراهیم علیه السلام او اسماعیل علیه السلام ته چي تاسي به پاک ساتئ نو د "ان" سره حرف جر محذوف دی او یا به تقدیر د قول یعني قلنا لهما .

**یوه نکته**: چي اضافت د بیت چي خدای جل جلاله وخان ته وکړی لپاره د تشریف د مضاف ده یعني بیت عبادتي، سعید ابن جبیر وایي چي مراد د

پاك والي څخه پاك ساتل دي د كعبه مباركي د بتانو څخه او د انجاسو ظاهره و څخه. وعن كل فعل ينافي الحنيفة. لپاره د هغو كسانو چي طواف كوي پر دې بيتې، او د هغو خلګو لپاره چي اوسېږي په كعبه كي يعني نژدې و كعبې ته او يا مراد دادی هورې اعتكاف كوي او "ركع" جمع د "راكع" ده او "سجود" جمع د "ساجد" ده، يعني المصلين عندها ذكر جزء او مراد څندي كل دی.

**فائده**: د "طهر" دا معنی نه ده چي حول البيت بتان پراته وه په هغه كي بلكه معني دا ده چي تاسي وساتئ كعبه ددې څخه چي پر ماحول بتان نسي نصب نو دا آيت په داسي ترجمه دی لكه چي خدای ﷻ په باره كي په د حورو د جنت وايي "ولهم فيها ازواج مطهرة اي خلقهن الله طاهرات فافهم.

**پوهه**: چي د كعبي مباركي فضائل غير متناهيه دي چي په مسجد حرام كي څوك ناست وي او كعبي شريفي ته ګوري دا هم عبادت دی په حديث مبارك كي راغلي دي چي خدای ﷻ لره په هره ورځ يو سل او شل رحمته دي چي پر بيت الله شريفه باندي نازلېږي، شپېته يې د طواف كونكو لپاره دي او څلوېښت د لمونځ ګذارانو لپاره دي او شل د صرف كتونكو لپاره دي.

**فائده**: حكم د ټولو مساجدو په نړۍ كي حكم د كعبې دی يعني د انجاسو ظاهره او باطنه و څخه به پاك ساتل كېږي، تخصيص د كعبې په دې سبب چي په نړۍ كي په دغه وخت كي بله بيته د عبادت الله نه وه، په اثر كي د عمر رضي الله عنه راغلي دي چي هغه د يو سړي په زوره خبري په مسجد نبوي كي واورېدې نو يې ورته وويل دا څه كوې ته پوهېږې چي زه چېري ناست يم.

پوهه: چي هغه بيته چي خداى ﷻ يې وخان ته نسبت كړى دى هغه په حقيقت كې زړه د مومن دى او د تطهير د بيت القلب معنى داده چي زړه د مومن بايد وغير الله ته ملتفت نه وي قال الشاعر :

دل بدست آرا كه حج اكبر است — از هزاران كعبه يكدل بهتر است

كعبه بنيا د خليل از را است — دل نظر گاه خليل اكبر است

## وَإِذْ قَالَ إِبْرٰهِمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا بَلَدًا اٰمِنًا

او په ياد كړه هغه وخت يا محمد ﷺ چي وويل ابراهيم ؈ يعني ددعا په توكه اى خدايه وګرځوه دغه ځاى چي حرم دى يو ښار چي د امن وي يعني اهل ددې ښار بيغمه وي د قحط سالۍ څخه او دخسف څخه په مځكه كې او د مسخ څخه يعني لكه يهود چي بيزوګان سوه او د زلزلو څخه او د جنون څخه، او د آتشک څخه او د پيس څخه او دغسي نور امراض چي په بلادو كې واقع كيږي .

پوهه: چي "آمناً" صيغه د نسبت ده لكه "لابن او تامر اي بلداً منسوباً الى الامن" نو پر دې تقدير اسناد د آمناً وبلد ته اسناد حقيقي دى او بعض مفسران رح يې دا ترجمه كوي "امناً بلدا" نو اسناد و بلد ته مجاز دى ولي چي آمن خو صفت د اهل وو او اسناد يې و بلد ته وسو مثل ليل نائم او عشية راضية .

فائده: دا دعاء ابراهيم ؈ هغه وخت وكړه چي اسماعيل خپل زوئ او هاجره په هغه وچه شېله كي د مكې پرېښوله، او دى متوجه شام ته سو نو پر غونډۍ او غره د كدا ودرېدى او مخ يې د مكې د شېلې وخواته كړې داسي يې وويل "رب اني سكنت من ذريتي بواد غير ذي زرع" الخ او وروسته يې هم دا دعا وكړه "رب اجعل هذا بلداً آمناً" نو مقصود په دې دعا سره هم بلديت ددې شېلې او هم امنيت دى .

# وَارْزُقْ اَهْلَهٗ مِنَ الثَّمَرٰتِ

او رزق ورکړې واهل ته ددې بلد بعض د میوو څخه، دا دعاء ابراهیم ﷺ ددې سببه وکړه چې په وخت کې د دعاء دا ځای یو شبله وه بېله میوې دارو درختو وغیر ذالک.

**درویش وایي**:- چې ابراهیم ﷺ د میوو خواست وکړی ددې سببه هره میوه چې د نړۍ په یوه کنج کې وي په مکه مکرمه کې هر وخت پیدا کېږي، یعني په ذریعه د تجارت، او دغه رنګه په یو حدیث کې راغلي دي چې ابراهیم ﷺ دا دعا وکړه خدای ﷻ جبرئیل امر کړی چې یوه قریه د قراوو څخه د فلسطین چې ډېرې میوې پکښې دي د بېخه را وکاږه نو په کعبه شریفه اووه واره طواف په وکړه، او بیا یې درې مزله د مکې څخه لیرې کښېږده چې هغه ځای اوس هم په نامه د طائف مشهور دی او اکثره میوې د مکې هم ددغه طائف څخه راځي بلکه مکه مکرمه د دوبي او د ژمي او د پسرلي او د مني د میوو څخه هر وخت ډکه وي.

**درویش وایي**:- چې زه د حج په کاروان زمیني کې دې ښارته د طائف ورغلی یم ډېر ښائسته ښار وو او جاري اوبه پکښې وې، او ښه آب او هوا او ډېر لوئ لوئ زیبا اوکوچینك مساجد پکښې وه.

# مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

هغه څوک چې ایمان یې راوړی وي پر خدای ﷻ، یعني پر خدای ﷻ یې تصدیق په یو والي سره او ایمان یې راوړی وي د اخرت پر ورځ چې د قیامت ورځ ده.

**پوهنه**: چي "من آمن" بدل بعض دی د "اهله" څخه.

**درویش وایي**:- چي وجه د تخصیص دا ده چي کومك د کفارو سره پر کفر لازم نسي.

**فائده**: څه وخت چي ابراهیمؑ سوال د امامت دبعض اولاد لپاره وکړی او خدای ﷻ امامت خاص کي په مومنانو سره ولي چي وې ویله" لاینال عهدي الظالمین" نو ابراهیمؑ رزق هم قیاس کی پر امامت نو ځکه یه خواست د رزق د پاره د مومنینو د اهل مکه وکړی ، چونکه دا قیاس مع الفارق و نو خدای ﷻ دي متنبه کي چي رزق خو رحمت دینوي دي هغه عام دی مومن او کافر لره "بخلاف الامامة والتقدیم في الدین" ولي چي هغه نعمت اخروي دي قال السعدي الشیرازي رحمه الله

اي کریمي که از خزانه غیب — گبر وترسا وظیفه خور داري

دوستان را کجا کني محروم — تو که با دشمنان نظر داري

## قَالَ وَمَنْ كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُ قَلِيلًا

نو خدای ﷻ وه ابراهیمؑ ته وویل چي هغه څوک د اهل مکې چي کافران وي هغو ته هم رزق ورکوم یعني کومک ورسره کوم په لذاتو کي د دنیا د قسمه څخه د مال وغیره لپاره د اثبات د حجت پر دوئ لکن دا تمتع په لږ وخت وي.

**پوښتنه**: بعض کافرانو ته په سوو کلونه بلکه بعضو ته د زرو کلونه تمتع د دنیایي لذائذو او شهواتو خدای ﷻ جاري ساتلي دي نو دا څرنګه تمتع قلیل دی؟

**ځواب**: د دنیا ټوله عمر لږ دی نظر و اخرت ته، ولي چي دنیا متناهي ده او اخرت غیر متناهي دی، نو د متناهي نسبت وغیر متناهي ته به ولي قلیل نه وي او تمتع د کافر په دنیا کي قلیل من القلیل دی ولي نعمتونه د دنیا که څه هم بعض وبعض ته په قلت او کثرت موصوف کیدای سي لکن بالبداهة نظر و نعمتونو ته د اخرت الجاریه الی ابد الابد ښخي ډېر قلیل دي چي اندازه د قلت یې تر بیان د ژبي او تر تحریر د قلم لوړ دي .

**یوه خبره**: چي "تمتعاً" یا مفعول مطلق د امتعه دی په اعتبار د موصوف محذوف اي تمتعاً قلیلاً، او یا صفت د ظرف محذوف دی "ای امتعه زماناً قلیلاً وهو مدة حیاته وفي الحدیث الذي رواه الترمذي رحمه الله" او ترمذي دا حدیث هم صحیح بللی دی قال قال رسول الله ﷺ لو کانت الدنیا تعدل عند الله جناح بعوضة ماسقی کافراً منها شربة ماء یعني که نعیم د دنیا برابر وای د یوه وزر سره د غماشي په نیز د خدای ﷻ نو بې نه وای اوبه کړي کافر د دنیا د نعمتو سره په یو غړپ اوبو سره" وفي الحدیث الذي رواه ابن ماجه عن ابي هریرة رضي الله عنه والطبراني رحمه الله بسند صحیح في الاوسط قال علیه الصلواة وعلی آله وصحبه اکملها من التسلیمات اوفرها. الدنیا ملعونة وملعون ما فیها الاذکر الله وما والاه وعالماً و متعلماً.

**یوه خبره**: چي علامه بیضاوي د اعراب د لاري دا احتمال هم راوړی دی چي کلمه د "من" په "من کفر" کي دي مبتدا وي او متضمن دي معنی لره د شرط وي او فا متعد دي خبر وي او پر دې توجیه چونکه دا سوال واریدیږي چي د شرط او جزا تر مابین باید سببیت وي یعني شرط سبب به د جزا وي، نو قاضي بیضاوي د دې سوال د دفع کېدو لپاره داسي ویلي

دي والكفرو ان لـم يكن سبباً التمتيع لكنه سبب لتقليله بان يجعلـه مقصـوراً بحظوظ الدين غير متوسل بها الاخرة يعني ويمنعها مـن ان تكـون وسـائل لنيل ثواب الاخرة بخلاف المؤمن فان المؤمن ما انعم الله عليـه فـي الـدنيا لاجل شكره وصرفه في مرضات ربه سـبب لنيـل درجـات الاخـرة المؤبـدة وتبع البيضاوي المحقق المظهـري رحمه الله و زاد المظهـري ويمكـن ان يقال متاع الحيوة الدنيا خبيثة ملعونة عنـد الله كمـا مـر فـي الحـديث النبـوي المذكور آنفاً) فيمكن ان يكون الكفر سبباً لحصوله لان الخبيث يكـون سـبباً للخبيث، انتهى مع الزيادة من الفقير غفرله

ثُمَّ أَضْطَرُّهُۥٓ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلنَّارِ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴿١٢٦﴾

او بيا زه دي مجبوره كوم و عذاب ته د اور او بـد ځـاى د ورتـګ دى اور، اعاذنا الله تعالى منه.

**سوال:** كافر خو مجبور نه دى وعذاب ته د اور ولي چي دا ممكنه وه چي په دنيا كي د ايمان راوړى واى، خفاجي رحمه الله وايي چي دا لفظ مجاز دى ددې څخه چي عذاب پر كـافر پـه ورځ د قيامـت واقع كېـدونكى دى وقوعاً محققاً حتى كانه مربوط به.

**درويش وايي:-** چي دا سوال د سره وارد نه دى حتى چي جواب ته يې ضرورت پيدا سي، ولي چي لفظ د "ثم" دلته لپاره د تراخي بعيد دى يعنـي چـي ورځ د قيامـت ده، او پـه ورځ د قيامـت خـو كـافر مجبـور دى وعذاب النار ته يعني كه څه هم وقوع د اور خو دده نه ده خوښه لكن ناچاره دى په حكم د خداى ﷻ چي ملكي به دې دوزخ ته غورځوي او په قيامت كي ايمان خو سبب د خلاصون نه سي كېـداى لانقطاع دار التكليـف ولله در البيضاوي رحمه الله فسر هذه الاية بقوله اي الزه يعني زه مجبـوره كـوم كـافر پـه

ورځ د قيامت کي "اليه اي الى عذاب النار، لكفره اي في الدنيا، وتضيعه" او چي ده ضائع کړه مامتعناه چي ما ور کړي وده ته "من النعيم" يعني د هغو نعمتو يې شکر نه ووايي يعني چي سبب دده د ايمان ګرځېدلی وای، "لـذ المضطر" دا مفعول مطلق تشبيهي دی يعني كلذ المضطر يعني لکه په دنيا کي چي يو سړی مجبور کړه سي "ومايكره" كارته، والله اعلم بالصواب، او تفسير مظهري هم عيناً مشابت د تفسير د بيضاوي کړی دی، او دروح البيان د تفسير حاصل هم وما قلنا ته راجع کېږي.

**دروېش وايي:-** چي هذا سانح جديد ان شاء الله، او پوه سه چي "بئس" د افعال ذم څخه دي او مخصوص بالذم يې محذوف دی يعني عذاب النار حاصل ددې ايت دادی چي کافر ته دا دنيايي فاني امهال ده يعني خدای ﷻ مهلت ورکړی دی تا چه حجت پر ده تام سي او امهال نسته يعني له عذابه خلاصېدل په اخرت کي، فان كل نفس تجزي بما كسبت" نو كافران بايد ددې دنيا په فاني نعمتو او جاه وجلا غوره نسي فان المطيع والعاصي فيها سواء ونسبت تلك النعم الدنيوية من موجبات الرفقة في الاخرة قال الحافظ الشيرازي رحمه الله

بمهلتي که سپهرت دهد زراه مرو ترانه گفت که آن زال ترک دستان گفت
قال الله تعالى ﴿سنستدرجهم من حيث لا يعلمون﴾

**پوه سه:** چي د خدای ﷻ شان د بندګانو سره يعني وروسته تر ظهور د دين محمد ﷺ داسي دی لکه يو سړی چي مهماني جوړه کړي او دا اعلان وکړي چي څوك چي زما مهماني ته راغله زه به هغه ډېره و نازوم اوکه نه راغله سر به يې په تور ور غوڅ کړم قال الله تعالى "والله يدعو الى دار السلام" يعني خدای ﷻ بولي او دعوت ورکوي و دار السلام يعني جنت ته دا خو د خدای ﷻ اعلان مهماني وتولو انسانانو ته او بيا خدای ﷻ خپل

قاصد او داعي ته چي محمد ﷺ تووره په لاس ورکړه چي څوك زما ضيافت قبول نه کړي يعني ايمان نه راوړي د هغه سر به په تره ور غوځ کړه نو عاقل سړي لره په کار ده چي د خدای پاك ﷻ ضيافت په خپل خوښه قبول کړي يعني ايمان راوړي.

**فائده**: روح البيان والا رحمه الله ددې ايت مبارك تفسير د اولياء الله رح پر ډول داسي کړی چي "بلدهو الصورة الجسماني دی، والكعبة هو القلب، او طواف حقيقي طواف دی د زړه په حضور د عالم الغيب والشهادة يعني بيت الله شريفه مثال ظاهر دی په عالم الملك کي چي موږ يې په سترګو وينو، او قلب كعبه حقيقي ده په عالم ملكوت کي چي موږ يې په سترګو نه وينو، او ده زياته کړې ده چي هغه اولياء الله رح چي پر طواف حقيقي يعني د زړه قادر وي دا هغه کسان دي چي په شان کي د هغو مخبر صادق ﷺ داسي ويلي دي ان لله عباداً تطوف بها الكعبة وفرق بين من يقصد صورة البيت وبين من يقصد رب البيت.

**حکايت**: يو عارف د اولياء الله څخه قصد د حج د بيت الله شريفي کړی و او په کور کي بې دا ويل چي زه بيت الله ته ځم نو ده يو زوئ درلو دی نابالغه د هغه ګمان دا سو چي په بيت الله کي به خدای ﷻ موجود وي نو ده په خپل ګمان کي دا وويل چي که ما پلار د ځان سره بوزي زه به د رب البيت په زيارت مشرف سم، نو کوچني و پلار ته وويل چي ماهم بيت الله ته در سره بوزه پلار يې ورته وويل چي ته کوچني يې د بيت الله د زيارت قابل نه يې کوچني بغاري کړې چي مابه خواماخوا درسره بيايې پلار يې مجبور سو نابالغ زوئ يې ورسره ملګری کړی. او ميقات ته چي راغله دواړو احرام وتاړه او تلبيه يې وويله او پلار او زوئ دواړه چي مسجد حرام ته داخل سوه او د پلار سترګي يې پر بيت الله شريفي ولګېدې زوئ

بې لويه چغه وکړه او غخار سو پلار چي راپورته کاوه هغه مړ وو نو پر پلار بې ډېر دهشت طاري سو او دايې وويله ما لولدي وما لقطة كبدي، څه وسوه زما په زوی او څه وسوه زما دويني په ټوټې نو د يوه جانبه څخه د کعبې شريفې يې هاتفي آواز واورېدی چي ته په طلب کي د بيت الله راغلی وې او ودي ليدله، او زوی دي په طلب د رب البيت راغلی وو او هغه هم رب البيت وليدی نو طاقت يې بالا نه وو نو مړ سو، او خلک سره راټول سوه لکن کوچنی د اسمان وخواته پورته سو او د خلکو څخه غائب سو، او بيا هاتفي آواز وسو چي هغه کوچنی نه په يو ځای او مکان کي دی، او نه په جنت کي دی" بل هو في مقعد صدق عند مليک مقتدر والله علی کل شي قدير، ولقد صدق من قال من طلب فقد وجد،

## وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرٰهِيمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَإِسْمٰعِيلُ

ای محمده ﷺ وخلکوته چي پورته کوله

**پوښتنه**: قواعد خو جمع د "قاعدة "ده چي په دې ځای کې معنی تادای ده چي اساس يې هم بولي نو سوال دادی چي قاعدة او اساس خو په مخکه کي د ننه پاتېږي فما معنی رفع القاعدة ؟

**ځواب**: عمومي اهل تفسير خو وايي چي معنى د رفع القواعد داده چي نوره بناء پر وکړي ولي چي په بناء سره د تادای درك او ظهور کېږي، نو معنى د رفع القواعد اظهار د کښته والي څخه و لوړ والي ته، او کسائي ﷺ وايي چي معنى د قواعد مطلق تادايونه د دېوالـه دي ولي چي هر تادای يې قاعده ده د لوړ دای لپاره .

**درويش وايي**:- چي پر تفسير د کسايي ﷺ جمعيت د قواعدو بلا تکلف صحيح دی. او پر اول تفسير يې جمعيت په دې اعتبار دی چي بيت الله شريفه خو مربع ده نو هر دېوال يې تادای لري .

**سوال**:اسماعيل ﷺ خو د ابراهيم ﷺ سره شريك وو يعني دی خو هم فاعل دی بناء وو، نو ولي يې مفعول چي القواعد دی تر اسماعيل دمخه راوړی؟

**ځواب**: لپاره د تنبيه پر دې چي اصل باني ابراهيم و او اسماعيل خو لکه شاګرد د بناء وو ډبري او خټي به يې ورکولې چونکه اسماعيل ﷺ لږه هم دخل په بناء البيت کي وو نو عطف بعد ذکر المفعول على ابراهيم وکړی، بغوي ﷺ وايي چي راويان داسي روايت کوي چي ځای د بيت الله شريفي د مخه تر نوي مځکي دوه زره کاله خدای ﷻ پيدا کړی و. هغه داسي چي دغه ځای يو سپين ځګ وو پر اوبو باندي نو بيا خدای ﷻ نوره مځکه تر هغه ځګ لاندي وغوړول بيا چي آدم ﷺ مځکي ته راغلی نو په سبب د يوازي والي وحشت او دهشت ورته پېښ سو نو د خدای ﷻ په

دربار کې یې د دفع ددې وهشت خواست وکړی، نو خدای ﷻ بیت المعمور چې د سرو یاقوتو څخه جوړه وه او دوې دروازې یې درلودې د شنه زمرود څخه جوړې وې یو شرقي دروازه وه او یوه غربي وه او دا بیت المعمور یې پر ځای د بیت الله کښېښوله، او آدم ﷺ ته یې وحي وکړې چې ما ستا لپاره بیت المعمور د اسمانو څخه را کښته کړی نو ته ولاړسه پر هغې بیتې به طواف کوې لکه چې ملکي پر عرش طواف کوي او د هغې بیتې لوري ته به لمونځ کوې لکه چې ملکي په وړاند د عرش لمنځونه کوي، نو آدم د هند څخه د بیت الله پر لور را راوان سو او خدای ﷻ دده سره یوه ملکه ملګرې کړه چې د هغې بیتې لاره یې ورښووله او پیاده روان وه، اخر هر څو زمانه چې تېره سوه په لار کي بیت الله ته را ورسېده او په ښوونه د جبرئیل یې تولـه مناسك الحج پر ځای کړه نو چې آدم ﷺ د مناسکو څخه د حج فارغ سو، نو ملکي په ډله ډله ورته راغلې او ده ته یې داسي وویل "بر حجک یا آدم لقد حججنا هذ البیت قبلـک بالفي عام" او ابن عباس ﷺ وایي چې آدم ﷺ څلوېښت حجه د هنده څخه پر پښو کړي دي راوي وایي چې کعبه مبارکه د سرو یاقوتو پر خپل ځای ولاړه وه تر طوفان نوح ﷺ پوري، کله چې طوفان د نوح ﷺ پر راتلو سو هغه بیت الله خدای ﷻ وڅلورم اسمان ته پورته کړه او معبد د ملکو یې وګرځوله چې روزانه او یا زره ملکي ورځي، او بیا هغو ملکو ته چې اول وار ورغلي دي تر اوسه پوري نو بت نه دی رسېدلی وهذا یدل علی کثرت الملائکة الکرام ولایعلم جنود ربک الاهو" او خدای ﷻ جبرئیل ﷺ راواستاوه چې حجر اسود د جبل ابي قبیس په یوه غار کي پټه کړي صیانة له من الغرق نو د بیت الله شریفي ځای خالي پاته وو نو تر زماني پوري د ابراهیم ﷺ نو وروسته ابراهیم ﷺ خدای ﷻ امر ورکړی چې زما د عبادت لپاره د بکې

په شپله کي یوه خونه تعمیر کړه په کومك د اسماعیل ﷺ چنانچه د مخه بعض قصه ددې تېره سوه، نو ابراهیم ﷺ د تعیین د ځای د بیت الله د خدای ﷻ څخه غوښتنه وکړه لکن د ځای د ښولو په باره کي د علماء اختلاف دی ابن عباس ﷺ وايي چي خدای ﷻ جبرئيل را واستاوه او ځای د بناء د بیت الله یې ور وښووله، او بعض راویان د ابن عباس ﷺ داسي روایت کوي چي خدای ﷻ په اندازه د بیت الله شریفي یو وریځ پیدا کړه، او ابراهیم ﷺ ته یې امر وکړی چي ددغي وریځي په سایه کي ورسره ځه نو ابراهیم ﷺ د وریځي په سایه کي ورسره روان و ځو چي وریځ د کعبې شریف پر اندازه ودرېدل نو د وریځي ابراهیم ﷺ ته نعره وکړه چي ددې سایه پر اندازه خونه جوړ کړه لا تزد ولا تنقص .

**درویش وايي**:- چي پر هر تقدیر دا ښونه د ځای د کعبې مصداق دی ددې قول د خدای ﷻ "واذ بوّنا لابراهیم مکان البیت .

وروي ابن عباس ﷺ دی وايي چي بناء د کعبې مبارکي چي ابراهیم ﷺ کوله د پنځو غرو د ډبرو څخه یه کړې ده طور سینا(۲) طور زیتا(۳) ولبنان چي ډیوه غره نوم دی په شام کي (۴) والجودي وهو جبل بالخجریرة(۵) او تادي یه دحراء څخه وکړې وهو جبل بمکة.

**پوښتنه**: دا مذکوره غرونه خو ډېره فاصله سره لري نو دا ډبري چا ابراهیم ﷺ ته راوړې؟ بعض علماء وايي چي ملکو په هره شپه کي دیوه غره ډبرې ورته راوړلې چي ابراهیم ﷺ ته ښول کیدله چي دا د فلاني غره ډبرې دي، او بعض علماء وايي چي مومنانو د جناتو د هغې زمانې به ورته راوړې والله اعلم بحقیقة الحال، ابن عباس ﷺ وايي چي ځه وخت چي ابراهیم ﷺ وځای ته د حجر اسود ورسېدی نو خپل زوی اسماعیل ته یې وویل چي ته یو ښه ډبره راوړه چي نصب یې کړو اسماعیل ﷺ یوه ډبره

ورته راوړه ابراهیم ﷺ ورته وویل چي تر دې ښه ډبره راوړه اسماعیل ﷺ چي په طلب د ډبري را ووتی جبل ابي قبیس ورته ناره کړه چي ستا زما سره یو امانت سته دروایه خله نو ابراهیم ﷺ هغه ځای ته ورغلی او حجر اسود یې راواخستی او په موضع حال کي کېښېښو وهو في ذالک الی یومنا هذا .

**مسئله**: مسحه کول د حجر اسود په هر شوط کي د(۷) شوطو سنت ده ولي آنحضرت ﷺ مسحه کړې ده .

**سوال**: علیه السلام چي مسحه کوله هغه وخت نو باید دا مسحه کول واجب وای ؟

**جواب**: هو واجب به وای که چېري ﷺ هغه یو وخت نه وای پرې ایښې لکن په احادیثو صحیحو کي ثابته ده چي آنحضرت ﷺ یو پلا پر اوښ سپور طواف یې کاوه چي پر حجر اسود به راغلی اشاره به یې په لکړه سره ورته وکړه والله اکبر بې ووایه .

**مسئله**: مسحه کول د حجر اسود که څه هم سنت نبوي ﷺ دی لکن ازار د طواف کوونکو حرام دی، نو بېله اذدحام اوبېله ډکو او ټېلو که ممکن سي خو ډېر اعلی ده لکن په اوسني وخت کي خصوصاً په آخري ورځو کي د حج دا امکانات نسته .

**د بعض حاجیانو غلطي کارنامې**: بعض صحرائي حاجیان دا گمان کوي چي د حجر اسود مسح کول په هره توگه چي وي ثواب او سنت کار دی نو بعض حاجیان ددغو صحرائي کسانو چي په بدن قوي وي طواف گاه ته ور داخل سي اویو حاجي پوري وهي او بل غڅار کي او په نر او ښځو کي لکه مست څزه اوړې ښورويي حتی چي حجر اسود ته خان ورسوي او د

حجر اسود سره چي نور مسح کونکي وي د هغو مخانو ته منګولي ور واچوي او حجر اسود یا لاخر مسحه کړي، او بعض ددوئ د حجر اسود په غاړ بنه سر ور ننه باسي نو چي طواف خلاص کړي نورو ملګرو ته خپل جهالت پر ډول د سنت ورښیي او ووایي چي نن مي اوه واره حجر اسود مسحه کړې، او بعض حاجیان درې څلور سره ملګري سي اوخلک نر او ښځي غخار وي او پري وهي څو تر حجر اسود خانونه وروررسوي او هورې یو پر بل پیره کوي حتی چي تولله حجر اسود مسح کړي.

**درویش وایي:-** چي دا ډول مسحه کول د حجر اسود خو یقیناً حرام ده البته که یو حاجي په اولو طیارو کي مکې مکرمې ته ورسېږي چي د حاجیانو ازدحام کم وي او یا په اخیرو طیارو کي سفر وکړي او چي اختر تېر سي او حاجیان مخ پر کم والي سي یعني د دولتو د طیارو پر وازنو ډېر وسي نو په دوارو صورتو کي امکان سته چي ببله ازاره د طواف کونکو دي حجر اسود مسحه کړي وقد جربناه مراراً

## رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا ۖ إِنَّكَ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿١٢٧﴾

اي خدایه ﷻ زموږ څخه قبوله کړې یعني دعا زموږ او تولـه عبادات زموږ چي د جملې څخه د هغو بناء البیت ده او ته اي خدای ﷻ اورېدونکی د ټولو مسموعاتو چي د جملې څخه د هغو زموږ دعا ده او ته خبر یې په ټولو معلوماتو چي د جملې څخه د هغو زموږ نیت دی په عمل د بناء البیت.

**درویش وایي:-** چي ربنا منادی مضافه ده په تقدیر د حرف نداء، او دا جمله حال د ابراهیم عليه السلام او اسماعیل عليه السلام څخه په تقدیر د قول اي قائلین یاربنا.

**فائده:** په دې آيت کي تنبيه پر دې ده چي يو سړی چي عبادت الهي كما امر الله به وكړي بايد چي پس له تمامه د عمل تضرع او عاجزي وكړي وخدای ﷻ ته په قبول کي د هغه عبادت ولي چي خدای ﷻ فاعل مختار دی او قبول د عمل پر ده واجب نه دی .

**فائده:** بعض عاشقانو په مدح کي د كعبې مباركي داسي ويلي دي

روبحرم نه که درآن خوش حريم — هست سه پوش نگاري مقيم
صحن حرم روضه خلد برين — رو بچنان صحن مربع نشين
قبله خوبان عرب روي او — سجده شوخان عجم سوی او
كعبه بود نوگل مشكين ما — تازه ازو باغ دل ودين ما

**ومما قيل في مدح هذا الحرم المنيف والبيت الشريف**

اي که درين راه قدم مي نهي — روي توجه بحرم مى نهى
پاي بآندازه درين كوي نه — پاي اگر سوده شود روي نه
چرخ زنان طوف كنان در حضور — تو شود پروانه واو شمع نور
عادت پروانه ندانی مگر — چرخ زند اول وسوزد دگر

**فائده:-** د ابراهيم ؑ څلور زامن وه اسماعيل" اسحق" مدين" ومداين .

**فائده:-** مجاهد ؒ وايي چي آدم ؑ ته خدای ﷻ امر د تګ وبيت الله شريفي ته وركړی يعني د هند څخه چونکه د هند او مكې مكرمې تر منځ ډېر مفاوزه وه نو خدای ﷻ و طيِ مكاني كرامتاً ده ته وركړې چي په يوه ګام کي ده د درو ورخو لار د نورو خلكو قطع كول انتهى والله اعلم

**فائده:** په صحيح متفق حديث کي راغلي دي چي سيدنا عائشه ؓ د رسول الله ﷺ څخه پو ښتنه وكړه چي حطيم چي حجر يې هم بولي د كعبې

جزء دی او که څرنګه؟ علیه السلام ورته وویل هو! نو دې ورته وویل چې ولې یې په کعبه کې نه دا خله وه؟ علیه السلام ورته وویل چې ستا قوم چې چنده سره جمع کړې وه، په هغه چنده پوله کعبه نه جوړېدله نو یې حطیم په قدر د شپږ زراع خندې وه ایستې. عائشه ﷺ وایي چې ما و علیه السلام ته وویل چې دا دروازه یې ولې دونه پورته ورکړې ده علیه السلام راته وویل چې دا ستا قوم لوړه دروازه ورکړه تاچې څوک چې ددوئ زړه غواړي هغه به ور داخل وي، او علیه السلام عائشه ﷺ ته زیاته کړه که چېرې ستا قوم تازه مسلمانان سوي نه وای مابه کعبه نړولې وای او دروازه به مې په مځکه پوري متصل کړې وای، او دوې دروازې بـه مـي ورکړي وای یوه شرقي او بله غربي یعني پر یوه به خلګ ننوتلای او پر بله دروازه به وتلای او ما به شپږ ګزه د حطیم په کعبه کې داخل کړي وای مطلب د حدیث دادی چې قریش چونکه تازه مسلمانان سوي دي نو که زه کعبه ونړوم دوئ به وای چې زموږ د پلار اونیکه خونه یې وه نړوله او بیرته به کافران سي.

**نړوبش وايي**:- چې هم دا سبب دی چې علیه السلام د کعبې یو کنج چې رکن یماني دی او بل کنج چې حجر اسود پکښې دی مسحه کول ولې چې دا دوه کنجه پر بناء ابراهیمي دي او هغه نور دوه کنجان د مکې چې د حطیم پر خوا دي نه یې مسحه کول ولې هغه دوه کنجه پر بناء ابراهیمي نه دي واقع.

**پوښتنه**: کعبه مبارکه خو د ابتداء څخه د ابراهیم ﷺ مربع خونه وه نو چې شپږ زراع قریشو خندې ویستله باید شکل د کعبې او حطیم داسې وای

حطیم

=قریشي
=کعبه=

نو چي حطیم په کعبه شریفه سره ګډ سي هم به کعبه شریفه مربع شکل سي او سره ددې چي شکل د کعبې او د حطیم اوس داسي دی




**سوال**: نو دا ګول ځای په حطیم کي دڅه سبب دی؟

**ځواب**: په دغه ګول ځای کي، یو څو قدیم قبرونه دي نو قریشو هغه قبرونه په حطیم کي دننه راوستل نوددې سببه دیوال د حطیم ګول سو، فافهم فانه سانح عزیز.

**فائده**: هغه وخت چي اهل مکه وو د عبدالله بن الزبیر ﷺ سره پس له مرګه د معاویه ﷺ بیعت د خلافت وکړی او شامیانو او شا وخوا خلګو د یزید بن معاویه سره بیعت د خلافت وکړی نو یزید حجاج بن یوسف امر کړی چي د عبدالله بن زبیر سره جنګ وکړي او ډېر شمېر فوج یې ورسره کړی او ابن زبیر په ابتداء کي خلافت خپل په متابعت د هغه حدیث چي دده خاله عائشه ﷺ وده ته ویلی وو کمامر آنفاً د کعبې شریفي خونه وه نړول او دوې دروازې شرقي او غربي یې په مخکه پوري ورکړې او شپږ زراع د حطیم یې هم په کعبه شریفه کي داخل کي نو څه وخت چي لوي فوج د حجاج بن یوسف وه مکې ته راورسېدی او اهل مکه او ابن زبیر ﷺ د مقابلې او جنګ توان نه درلودی نو دوئ په حرم شریف کي پناه ونیوله نو حجاج بن یوسف پر جبل ابي قبیس باندي مجنیق ورته نصب کي چي د منجنیق څخه په پخوا زمانو کي د توپ کار آخسته کېدی ده و عسکرو ته امر وکړی چي کعبه شریفه په منجنیق وولي عسکرو منع وکړه نو حجاج بن یوسف په خپله منجنیق پر کعبه شریفه وچلاوه او د منجنیق په غټو ډبرو

یې کعبه شریفه وویشتل خو کعبه شریفه یې ونړول او پنا غوښتونکي د حرم شریف د تسلیمېدو ته مجبوره سوه او حجاج حرم مکي ته داخل سو او عبد الله بن زبیر یې ګرفتاره کړی. او امر یې وکړی چي د زمزم وڅاه ته نژدې دي حلال کړل سي په دغه وخت کي اسماء بنت ابي بکر صدیق ﷺ چي د عائشه ﷺ خوره وه. او د عبدالله ابن زبیر مور وه ژوندی وه او عمر یې تر سل کاله بالا وو نو دا د خپل زوئ د حلالېدو خبره سوه نو لکړه یې را واخسته په عاجزه بدن حرم ته راغله او پر لکړه یې تکیه وکړه او هغه وخت چي سنګدله حجاج ددې د زوئ پر غاړه چاړه تېره کړه او اسماء ﷺ چي د زوئ وینه ولیدله دستي حیض ورغلی سره ددونه عمره او تر تیو یې شیدې راغلې نو دې ﷺ وویل چي زویه هغه ځای چي ته په کښې وې خدای ﷻ اولاً پیدا کړی دی یعني رحم په تا پسي وژړل یعنې دم الحیض. او هغه چي تا اول د هغه خایه شیدې رو دلي وې هغه ځای هم درپسي وژړل یعني لبن ثدیها نو زه نو نه در پسي ژاړم او وه یې ویله "انا لله وانا الیه راجعون" او د سترګو اوښکي یې چا نه ولېدلې.

**درویښ وایي**:- چي دغه دی نهایت صبر د یوې ښځي په امت محمدیه ﷺ کي.

**تبصره**: حجاج بن یوسف څونه دلاوره او د خدای ﷻ څخه ناخبره انسان وو. او سره ددې چي مسلمان هم وو چي یو وار د کعبې شریفي څونه ونړول او بیا یې عبد الله بن زبیر په حرم کي شهید کړی.

خوانندګان محترم: د امذکوره کارونه د حجاج بن یوسف د ضد انساني او ضد اسلامي کارو څخه یو نمونه مشت از خروار ده ولي د تاریخ په پاڼرو کي ثبت د حجاج بن یوسف تر یولك بالا په شمول د تابعینو او اصحابو رضي الله عنهم خلك ظلماً په قتل رسولي دي حتی چي په

عربوکي دا يو متفق عليه خبره ده چي په ورځ د قيامت که د ټولو دنيا د ظالمانو ظلم به په يوه پله کي واچول سي او د حجاج بن يوسف دا په بله پله کي واچول سي نو د حجاج بن يوسف ظلم به بانديز دروند وي. او تاريخ وايي چي هميشه به دحجاج په دربار کي څرمن اواره وه او سياف يعني جلاد به موجود و چي دچا دغيبت دده په باره کي جاسوس ور ورساوه هغه بې پر هغه څرمن ودراوه او جلاد بې سر خندي غوڅ کړی حتی هغه وخت چي حجاج مړ سو او د ښخپدو لپاره چي يې مقبرې ته ورووړی وروسته تر ښخپدو بعض علماو ده ته د مغفرت دعا کوله. يوه سړي د حاضرينو څخه د جنازې د حجاج داسي وويله چي ته څه دعا د مغفرت ورته کوې پر مادي ماينه په درې طلاقه سره طلاقه سي که خدای ﷻ دی وبخښی باره ملايانو د عصر دا سړی تر قال وقيل لاندي راوستی بعض ورته وويل پر تا ماينه طلاقه سوه ولي حجاج که هر څو ظالم وو لکن مسلمان خو وو نو تاته څه معلومه ده که خدای ﷻ بخښلی وو، او بعض ملايانو ورته وويل چي نه ده طلاقه ولي دا تعليق بالمجهول دی.

اخر هغه سړی حسن بصري ؒ ته ورغلی او خپل خبره او د ملايانو اختلاف يې ورته ذکر کړی حسن بصري ؒ ورته وويل که خدای ﷻ ديو لك او څو زرو مسلمانانو قتل ظلماً ور معاف کړي ستا د يو څو کالو زنا به هم خدای ﷻ در وبخښي يعني که ستا ماينه دا اوس پر تا طلاقه هم سي نو ستا باقي مانده عمر خو به ته زاني يې دا زنا به هم خدای ﷻ در وبخښي.

**حکایت**: يو وخت د حسن بصري ؒ راپور يو جاسوس وحجاج بن يوسف ته رسولی و يعني حسن د حجاج غيبت کاوه، نو حجاج عسکر پسي واستوله په دې مجلس کي د حجاج يو خير خواه د حسن ؒ موجود

و هغه سړي ژر وحسن بصري ته خبر ور کړی چې د حجاج عسکر در پسې
راراوان دي خان يو خواته پټ کړه حسن بصري رحمه الله د کوره چابك ووتی او
په يوه نژدې غره کي يو زاهد عابد ولي الله سړی و حبيب عجمي رحمه الله په
نامه يادېدی او په غره کې يوه خونه جوړه کړې وه او د خدای ﷻ عبادت
بې کاوه ورغلی او ورته وې ويله چې د حجاج عسکر راپسې دي حبيب
عجمي رحمه الله ورته وويل چي دا زما په خونه ننوزه خدای ﷻ به دي وساتي
او حبيب رحمه الله د باندي ناست و. خير د حجاج عسكر د حسن بصري رحمه الله
کورته ورغله په کور کي ورته وويل سوله چي حسن د باندي ولاړی نو د
حجاج ظلم پېشه عسکرو د يوه او د بله څخه د حسن رحمه الله پوښتني کولې
خو آخر يې دا معلومه کړه چې حسن رحمه الله د حبيب عجمي رحمه الله پر خوا تللی
دی نو عسکرو حبيب رحمه الله ته راغله او حبيب ته يې وويل چي حسن دلته
راغلی حبيب رحمه الله ورته وويل هو راغلی عسکرو ورته وويل چي څه سو
حبيب ورته وويل چي په دغه خونه ننوتی عسکر په خونه ورننوتل هر څو
چي يې په سپينه ورځ وکتله نه يې کړی پيدا بيرته راووتل حبيب رحمه الله ته
يې وويله چي حسن خو دلې نه وو حبيب رحمه الله ورته وويل چي په دغه خونه
خو ننوتی او بيرته نه دی راوتلی خير عسکرو دا راپور حجاج ته ورساوه
حجاج په خپله پسي راسپور سو او د حبيب عجمي رحمه الله خای ته ورغلی او
د حبيب څخه لکه دده عسکرو پوښتنه څنډي وکړه حبيب رحمه الله وحجاج ته
هم هغه مخنی جواب ور کړی حجاج په خونه ور ننوتی هر څه کوشش چې
وکړی حسن يې نه کړی پيدا، بيرته راووتی حبيب رحمه الله ته يې وويل چي
حسن په خونه کي نه وو حبيب ورته وويل په خونه خو ننوتی بيا نه دی
راوتلی، حجاج ورته وويل که حسن ددغي خوني څخه راووتی زه هغه ته
هيڅ نه وايم او ماتاته در بخښلی دی حبيب ور ناري کړې چي حسنه که په

خونه کي يې راووزه حسن بصري رحمه الله هم د هغې خوني ځخه راووتی نو حجاج ورته وويل چي ته په خونه کي چېري ناست وې حسن بصري رحمه الله ورته وويل چي په مابين کي د خوني ناست وم هر پلا به تا پر ما لاس هم کښېښو خير حجاج خندي ولاړی او حسن ته يې هيڅ نه وويل حجاج چي ولاړی حسن يو مسخره پر حبيب عجمي رحمه الله وکړه او ورته وي ويل ويني زما جاسوسي دې وحجاج ته وکړه حبيب رحمه الله ورته وويل رېځ مه لره په رښتيا ويلو زما د حجاج ځخه خلاص سوې.

**حکايت**: په مطول کي وايي چي په دوره کي د حکومت د حجاج يو شاعر وو چي د نورو کسانو سره په يوباغ کي د تورو انګورو ناست وو او انګور هغه وخت غوره وه يعني تور سوي نه وه او د حجاج بحث مابين ته راغلی نو دې شاعر بېله نوم اخستو د حجاج داسي وويله.

اللهم سود وجهه" خدايه تور کي مخ دده په زړه کي يې حجاج و" واقطع عنقه" او مغزی يې مات کړې واسقني من دمه او په ما وچښيويني دده په مجلس کي د حجاج راپور چي ناست و دستي يې دا خبره حجاج ته ورسول حجاج شاعر ور وغوښتی او ورته وې ويل چي تا دغه مذکوره خبري کړي دي شاعر ورته وويل هو لکن ستا نوم مي پر خوله ولاکه راوړی دی ما خو انګور يادوله چي ماوويله چي خدايه مخ يې تور کړې يعني پاخه يې کړې او مغزی يې مات کړې يعني چي تاك پوري پيوند وي زما په لاس يې مات کړې او وينه يې په ما وڅښېښې يعني چي توري اوبه د انګورو زه وڅښېښم حجاج د غضب په لهجه ورته وويل لاحملنك على الادهم" د حجاج مراد خو دا و چي توري زولنې به در واچوم او ادهم تور آس ته هم وايي نو شاعر خان نابوه واچاوه کله څه هم په مراد د حجاج پو هېدی نو داسي يې حجاج ته وويل " مثل الامير يحمل على الادهم والاشهب" شاعر په قصده اشهب

ورسره گډ کړی چي زه خو ستا مقصد تور آس بولم حجاج ورته وویل ویلك انه لحدید" افسوس دي وي تاله زما خو د ادهم څخه اوسپنه مراد ده او چونکه حدید نیز رفتار آس ته هم وایي نو شاعر خان غول واچاوه حجاج ته یې وویل چي تیز رفتار آس خو ښخي ښه دي، حجاج ته درد ورغلی پر دې چي ته ولي زما په مراد نه پوهیږي نو عسکرو ته یې وویل پورته یې کړئ د مخکي یې ووهئ عسکرو چي شاعر پورته کړی شاعر وویل سبحان الذي سخرلنا هذا پاکي دي وي هغه خدای لره چي ماته یې مسخر کړه دغه کسان چي زې پر اوږو واخستم حجاج بن یوسف ته د شاعر پر چالاکی خندا ورغله او شاعر یې خوشي کړی.

این قصه پایان ندارد پیش مگر خوانندگان محترم ازبیان بعض کارنامهاي حجاج بن یوسف بستوه امده باشند ومیخواند که حجاج بعد از تخریب کعبه مبارکه عبد الله ابن الزبیر﷛ بر طرز محبوب آن حضرت نبوي ﷺ بناء کرده بود، چه طور کعبه خدا را تعمیر نمودند راویان مي گویند که حجاج بن یوسف کعبه خدا را بر طرز قریش مخالف بناي ابراهیمي تعمیر نمود یعني یک دروازه شرقي بلند دادو وحطیم بقدر شش زراع از خانه خدا خارج نمود وباب غربي را بند نمود راوي میگوید که چون نوبت خلافت به هارون رشید رسید او انس بن مالک﷛ براي مشوره درباب کعبه خدا﷯ احضار نمود وبه او گفت که من اراده دارم که کعبه شریف را منهدم سازم وبرطریق محبوب رسول ﷺ وبر طرز بناء عبد الله ابن الزبیر﷛ تجدید بنایش نمایم، مالک﷛ گفت تراقسم بخدا﷯ می دهم یا امیر المؤمنین که اگر تو خانه خدا را برطرز ابن الزبیر﷛ بناء کني پس اگر پس از تو امیر دیگر شاید او بگوید که من کعبه خدا را بر طرز قریش بنا مي نمایم پس هیبت وحرمت خانه خدا﷯ از دل مردم بیرون میگردد فترک الهارون امراً اراده وبقیت البیت الشریف علی بناء للحجاج علی طرز بناء قریش وهي آلان باقیت علی الطرز المذکور والله جل سلطانه یعلم مایحدث بعد ذالک

رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِن ذُرِّيَّتِنَا أُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿١٢٨﴾

اي خدایه ﷻ مونږ وګرځوې مخلصان ستا او بعض د اولادو زمونږ وګرځوې امت مخلص ثالره او مونږ ته راوښیه احکام د دین زمونږ یعنې شرائع د حج او زمونږ توبه قبلونکی یې او ډیر مهربانه یې.

**پوښتنه**: چې حقیقت اسلام او اخلاص فرمانبرداري د اوامرو د خدای ﷻ په کولو سره او فرمانبرداري د خدای ﷻ په نهولو منهیاتو کې په پرېښولو کې ظاهراً او باطناً بدون اشراک غیره في عبادة الله ظاهراً کالمشرکین او قلباً کالمرائبین، قال ﷺ المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویدیه.

**پوښتنه**: چې ولې ابراهیم ﷺ او اسماعیل ﷺ تخصیص له بعض ذریته وکړی او ټوله ذریت ته یې دعا ونه کړه، ددې سبب دادی چې دوی پوهېدله چې زمونږ په اولاد کې به محسن او ظالم نفسه مبین وي کما یفهم من قوله تعالی لا ینال عهدي الظالمین

**پوښتنه**:- تخصیص د ذریة یې په دعا سره وکړی او سره ددې چې اصحاب د همم عالیه و چې انبیاء دي باید عام خلق په لیبت کې ددعا راولي؟

**فوائد**:- وجه د تخصیص د ذدریت هغه ایت دی "قوا انفسکم واهلیکم نارا" او بل سبب دا دی چې په حدیث شریف کې راغلي "مامن رجل من المسلمین یخلف من بعده ذریة یعبدون الله الاجعل الله له مثل اجورهم ماعبد الله منهم عابد حتی تقوم الساعة" نو چونکه په صلاح کې د اولاد نفع.

د والدينو سته نو ځکه يې خواست او دعا د ذريت لپاره وکړه، او بل سبب دادی چې ذکر د ذريت په دعا کې که څه هم تخصيص دی ذکراً لکنه تعميم معنأً ولې چې په اصلاح د اولاد الانبياء عليهم السلام سره صلاح دعامه خلکو مربوط ده، ولې چې اولاد الانبياء عليه السلام چې صالح سي هغه دعوت د صلاح عامه خلکو ته هم ور کوي، او بل سبب د دتخصيص دادی چې دوئ په دې پوهېدله عقلاً چې حکمت الهي ددې تقاضا نه کوي چې ټوله خلک دي متفق سي پر اخلاص، او توجه ظاهراً او باطناً دي د دې ټولو خلکو وخدای ﷻ ته سي ولې چې د دنيا نظام درهم او برهم کېږي ولذا قيل لو لاالحمقی لخربت الدنيا .

پوښتنه:- چې انبياء عليهم السلام خو معصوم د ګنهو څخه دي قبل النبوة وبعد النبوة پر صحيح مذهب د اهل سنت والجماعت لکه درويش چې نهايت تفصيل ددې مسئلې سره د بيان د دلائلو د مخالفينو او جوابونه له جانبه د اهل سنت والجماعت په مستقله رساله کې چې نوم يې کشف العظاء عن عصمت الانبياء دی کړی دی او دا رساله د ډېرو کلو راهسې طبع سوې ده او د کوټې په ښار کې دستياب کيدای سي، نو اصل پوښتنه داده چې توبه خو فرع د ګناه ده نوچې چا لره ګناه نه وي نو توبه دڅه شي کاږي . قاضي بيضاوي وايي استتابة لذريتهما ، حاصله چې مضاف محذوف دی يعني "تب علی ذريتنا" امام رازي رحمه الله په تفسير کبير کې وايي چې څه وخت خدای ﷻ ابراهيم عليه السلام خبر کړی چې ستا په ذريت کې به ظالم او عاصي وي نو ځکه يې دلته داسي وويل "ومن ذريتنا امة مسلمة" او بيا يې سوال د توبې وکړی لپاره د مذنبينو عاصيانو د ذريت خپل يعني هغه کسان چې اهل توبه وي، او بل جواب قاضي بيضاوي رحمه الله داسي ورکړی دی چې توبه سبق د ګناه نه غواړي شايد د دوئ دغه سوال هضما لانفسهما دي وي .

**نوټ**:- چي مناسك جمع د منسك ده بفتح السين وبكسرها والمعنى ابصرنا مواضع نسكنا اي المواضع التي يتعلق بها النسك اي افعال الحج كالمواقيت التي يحرم منها" او هغه ځايونه چي پر هغو حاجيان دريږي لکه عرفات مزدلفه، او ځای د طواف البيت او صفا ومروه ځای د سعي بعد الطواف او ځاينو د رمي الجمار في ايام النحر والتشريق او. دا هم احتمال لري چي مراد د مناسکو څخه دی، افعال د حج وي، لامواضعها نو پر دې باندې تقدير منسك مصدر ميمي دی د مکان نوم نه دی.

**سوال**:- د مصدر وجمع ته څو ضرورت نسته ؟

**جواب**:- د مصدر جمع رواه ده چي انواع مختلفه تر لاندې وي، كما يقول الفقهاء كتاب الطهارات باعتبار انواع المختلفه المندرجة تحتها من الوضوء والغسل والتيمم وطهارة الثوب وغيرها ففي الجمعية تنبيه على تلك الاختلاف نو پردې تقدير "ارنا" په معنى دعرفتادی لان نفس الا فعال لاتدرك بالبصر بل تعرف بعين القلب وهو المعرفة، فتدبر.

## رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ

اي خدايه واستوې په دوئ کې يعني په ذريت کې زمونږ يو رسول چي ددوئ د قوم او نسل څخه وي.

**څرونښ واپیې**:- چي ټوله مفسرين پر دې خبره متفق دي چي دا سوال د ابراهيم او اسماعيل په محمد رسول الله ﷺ سره قبول سوی دی، ولې يوازې عليه السلام دی چي له نسله د ابراهيم ﷺ او اسماعيل د دواړو دی، او بل نبي مشترك النسل په ذرية کي د ابراهيم نه دی پيدا سوی بيله عليه السلام، البته نور انبياء عليهم السلام له نسله د

ابراهيم ﷺ د پېره وه لکن د هغو سلسله النسب و ابراهيم ته په واسطه د اسحاق او يا مدين او مدائن رسېدله. عرباض بن ساريه ﷺ راوايت کړي دی چي عليه السلام ووېل "اني عند الله مکتوب خاتم النبيين و آدم لمنجدل في طينته وساخبرکم باول امري آنا دعوة ابراهيم" اشاره ده وآيت مذکوره ته يعني وبشارت عيسى ﷺ اشارتاً وهغه آيت ته د انجيل شريف چي ترجمه يې داده "ونبشرکم بنبي يا تي من بعدي اسمه احمد ورويا امي التي رئت حين وضعتني".

**پوهنه**:- چي د رويا څخه د سترګو ليدل مراد دي د خوب ليدل نه دی وقد خرجت منها نوراً اضائت لها منه قصور الشام. وهذا حديث حسن صحيح.

**يَتْلُوا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيْهِمْ ۗ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۱۲۹﴾**

داسي رسول چي هغه دي ايات ستا تلاوت کړي چي آيايت القرآن الحکيم دی او دوئ ته وښيي حکمت.

**پوهنه**:- د حکمت څخه مراد نور معارف او احکام دی سوی مافي القرآن، او بعض وايي چي مراد سنت نبوي ﷺ دی، او بعض وايي مراد څندي فقه ده، دوئ يې پاك کړه د شرك او نورو ګنهو څخه. او بعض مفسران رح تفسير د "يزکيهم" په اخستو سره د زکوات کوي د اموالو څخه ددوئ.

او ابن کيسان رحمه الله وايي چي مراد د عليه السلام به شاهد د تزکيه د خپل امت وي په ورځ د قيامت يعني په هغه وخت چي امت محمدي

شاهدي اداء کړي پر نورو امتو چي نبي ددوئ ودوئ ته تبليغ د احکام الهيه وو کړی دی. دا شاهدي هغه وخت منځ ته راځي چي امتونه د نورو انبياو عليهم السلام له تبليغه د نبي خپل منکر سي او عليه السلام به شاهد د تذکيې د خپل امت د شاهدانو کرځي، والی هذا اشارا الله ﷻ، لتکونوا شهداء الله الناس ويکون الرسول شهيداً عليکم. او ددې قصې تفصيل په بخاري او نورو کتابو کي د احاديثو مبارکه وو موجود دی. او په تحقيق سره ته اې خدای ﷻ يعني غالب يې چي هر څه ته اراده وکړې هغه کار پای ته رسولای سې او ته حکيم يې يعني هر کار چي کوې او هر شی چي پيدا کوې په هغه کي به حکمت او مصلحت د عالم وي "سواء علم الناس تلک الحکمة او لم يعلموا، مثلاً وسپنه چي خدای ﷻ په کانو کي د غرو پيدا کول په هغې کي حکمت د موټر سازۍ او طياره سازۍ وغير ها من الآلات الحربيه موجود وو، وان لم يعلم اوائل القرون الماضيه تلک الحکم الفائقه.

**درويش وايي**:- چي مجدد الف ثاني الشيخ احمد السر هندي قدس سره السامي د عليه السلام شان په دغه بنانسته مکتوب کي په عربي ژبه داسي بيان کړی دی.

**شعر**

ما ان مدحت محمداً بمقالتی ولکن مدحت مقالتي بمحمد ﷺ.

اقول وبالله التوفيق والعصمة ان محمد رسول الله سيد ولد آدم واکثر الناس تبعاً يوم القيامة واکرم الاولين والآخرين علی الله و اول من ينشق منه القبر، و اول شافع واول مشفع و اول من يفرع باب الجنة فيفتح الله له، وحامل لواء الحمد يوم القيامة تحته آدم ومن دونه قال عليه السلام نحن الاخرون يعني في الدنيا ونحن السابقون، اي في دخول الجنة وآنا قائل

قولا غير فخر ، يعني د فخر او كبر لپاره يې نه وايم يعني امتثال ددې ايت په وايم "واما بنعمة ربک فحدث" هغه قول دادی .

انا خاتم النبين ولا فخر، وانا خاتم المرسلين ولا فخر

وانا محمد بن عبد الله بن عبد المطلب ان الله خلق الخلق

مراد د خلق څخه انسان دی "فجعلني في خيرهم قبيلة ثم جعلهم بيوتاً فجعلني في خيرهم بيتاً و انا اول الناس خروجاً يعني من القبر و انا قائدهم اذا وفدوا وانا خطيبهم اذا انصتوا وانا مستشفعهم اذا حسبو، و انا مبشرهم اذا يئسو الكرامة والمفاتح بيدي، ولواء الحمد يومئذ بيدي، وانا اكرم ولد آدم على ربي يطوف علي الف خادم كانهم بيض مكنون واذا كان يوم القيامة كنت امام النبيين وخطيبهم، وصاحب شفاعتهم غير فخر .

بيت

نماند بعصيان كسي در گرو    چو دارد چنين سيدي پيش رو

پس ناچار مصدقان اينچنين پيغمبر سيد عليه السلام خير الامم باشند. كنتم خيراً امة اخرجت آه نقد وقت ايشانست.، ومكذبان او عليه السلام بد ترين بني آدم كه الاعراب اشد كفراً و نفاقاً" حال ايشان است تا كدام صاحب دولت راباتباع سنت سنيه او بنوازند ، و بمتابعت شريعت رضيه او سرفراز سازند ، امروز عمل قليل را كه مقرون بتصديق به حقيقت دين اوست عليه السلام بعمل كثير بر ميدارند ، اصحاب كهف اين همه درجات كه يافتند بواسطه يك حسنه است ، وآن هجرت بود از دشمنان حق سبحانه وتعالى بنور يقين ايماني در وقت استيلاي معاندان مثلا سپاهيان در وقت غلبه دشمنان و استيلاء مخالفان اگر اندك تر تردد اي پيش رفت كنند آن قدر نمايان ميشود ، و اعتبار ميگردد كه در وقت امن اضعاف آن در چيزي اعتبار نمي آيد ، وايضا چون آن سرور محبوب رب

العلمین است، متابعان او بواسطه متابعت بمرتبه محبوبیت میرسند چه محب در هر که از شمائل و اخلاق محبوب خود میبند آن کس را محبوب خود میدارد ومخالفان را از آنجا قیاس باید کرد.

شعر: محمد عربي که آب روي هر دو سر است کس که خاک درش نیست خاک بر سراو و اگر بهجرت ظاهري میسر نشود هجرت باطني را بکمال مرعي باید داشت با ایشان (یعني په ظاهر) وبي ایشان (یعني په باطن کي) ولعل الله یحدث بعد ذالک امراً الی اخر المکتوب شریف.

**مخکینی وایي**:- چي په اول د میاشتي د روژې چي دجمعي ورځ هم وه دا خای او مکتوب تحریر سو ابن عساکر ﷫ داسي روایت راوړی دی چي عبد الله بن سلام ﷜ چي سابقاً یهودي و اسلام یې قبول کړی، نو دده د ورور زامن وه چي یو مسلمه نومېدی او بل عبدالله. دواړو ته یې دعوت د اسلام ورکړی او ورته وه یې ویل چي تاسي خبر یاست چي په تورات کي خدای ﷻ ویلي دي چي زه یو نبي په اولاد کي د اسماعیل را استه وم چي نوم به یې احمد وي، نو که چاپر هغه نبي ایمان راوړی هغه هدایت ته ورسېدی اوکه چا ایمان نه پر راوړی هغه ملعون دی، نو مسلمه ﷜ ایمان راوړی او مهاجرو منع وکړه د ایمان راوړلو څخه نو دا آیت نازل سو.

**وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ ؕ**

او څوک به رغبت کوي له ملة او دینه د ابراهیم چي روښانه ملت دي

**یوه معنا**:- چي دا استفهام انکاري دی یعني هغه څوك رغبت د ملة څخه د ابراهیم نه کوي.

**بله معنا**:- چي "رغبت" چي متعدي په "الی" سي نحو "رغب فلان الی الصلواة" مثلاً نو یې معنی اراده ده یعني اراده د لمانځه یې وکړه او که

متعدي په "عن" سره وي لکه په دې ایت کي نو معنی یې ترك دی یعني څوك به ترك کوي د ملت ابراهیم؟ یعني هیڅ څوك یې ترك نه کوي، مگر هغه څوك چي سبك یې اموخته کړې وي خپل نفس یعني په هر کار کي تلوار کوي په مقتضی د شهوت نفساني بیله فکره په نفع کي د هغه او په ضرر کي د هغه او روح البیان د هغه داسي ترجمه کوي "اي اذ لها وجعلها مهینا حقیراً" نو "نفسه" مفعول به دی، مبرد رحمه الله او ثعلب رحمه الله وایي هغه بکسر الفاء متعدي دی معناه جهل او په ضمه سره لازمي دی معنا به بیعقل سو.

# وَلَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِي الدُّنْيَا وَإِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۳۰﴾

پوهنه:- چي لام موطئه دقسم دي اي با الله په تحقیق سره موږ دي غوره بنده او مختاره بنده گرځولی و په دې دنیا یعني په نبوت او په خلیل والي سره او په تحقیق ابراهیم په ورځ د آخرت کي دصالح بندگانو څخه دخدای ﷻ دي یعني مقرب بنده د خدای ﷻ چي دگنهو څخه د زړه او دبدن د ټولو څخه په اعلی درجه کي معصوم وو.

پوهنه:- چي دا ایات دلیل دی پر هغه آیت باندي "ومن یرغب آه" چي په استفهام انکاري سره راغلی وو ولي هغه څوك چي په صلاح ظاهري او باطني سره موصوف وي په دنیا او اخرت نو د هغه د ملت مخ گرځول سفاهت او بې عقلي ده.

# إِذْ قَالَ لَهُ رَبُّهُ أَسْلِمْ قَالَ أَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ (۱۳۱)

پوهنه:- چي "اذ" ظرف دی د "اصطفینه" یعني په هغه وخت کي دی مو ږ غوره او بر گزیده کړی چي ده ته خدای ﷻ وویل چي ته خالص وګر خوه خپل خان وخدای ﷻ ته او تفویض د خپلو کارو و خدای ﷻ ته وکړه. دا هغه وخت وو چي ده له غاره ښخه لمر. سپوږمی او ستوري ولیدل، نو ابراهیم وویل چي ما خالص ګرځولی دی خان ورب العالمین ته.

پوهنه:- چي ابراهیم امر الهي په اخلاص او انقیاد ظاهري او باطني پر وجه اتم پر خای کړی دی لکه چي دلته یې وویله "اسلمت آه" او په بل خای کي خدای ﷻ دده له قوله ښخه داسي حکایت کړی دی" اني وجهت وجهي للذي فطر السموات الخ" او بل داچي نمرود چي دی اور ته په ذریعه د منجنیق وغور خاوه او اورته نارسیده جبرئیل ﷺ ورته راغلی او ورته یه وویل "هل لک من حاجة" یعني ته یو حاجت لري ابراهیم ورته وویل" اما الیک فلا" تاته خو مي هیڅ حاجت نسته. جبرئیل ﷺ ورته وویل" الا تستا ل ربک" ایا ته خواست نه کوي چي دده عذاب ښخه دي خلاص کي، ابراهیم ﷺ ورته وویله حسبي بسئوالي علمه بحالي" ماله بس دی ولي چي خدای ﷻ زما په حال سره خبر دی یعني د نمرود اور ته روان یم "وعند ذالک التوکل وعدم الالتجاء الی غیرها تعالی في دفع البلاء عنه قال الله تعالی قلنایا نار کوني برداً وسلاماً علی ابراهیم انا کذالک نجزي المحسنین" وفي روح البیان اهل تفسیر وایي ولد ابراهیم في امارة نمرود بن کنعان

پوهنه:- چي نمرود بن کنعان هغه تاریخي ګمراه و چي اول سړی دی تاج یې پر سر کښېښو. او د خدایي دعوه یې وکړه او خلکو په خدایي هم قبول کړی، او کاهنانو او منجمانو و د ته ویلي وه چي ستا په ښار کي

ښې کال یو هلك زیږي چي زوال ستا د مملکت او هلاکت ستا به د هغه مولود د لاسه وي نو نمرود د تقدیر الهي سره لاړ د تدبیر شیطاني غوره کړه، هغه دا چي امر یې وکړی چي هر کوچنی یعني نر چي سږ کال په دې ښار کي زیږي هغه دي وژل کیږي نو د ابراهیم مور چي دغه کال امیدوار وه څه وخت چي د وضع الحمل دردونه ورته پیدا سوه نو دکور څخه ولاړه ددې ېږي له سببه که مې عیال نر وو خو نمرود یه راڅخه وژني، نو یو واله وچه یې پیدا کړه چي پخوا اوبه په کښي بهېدلې او اوس وچه وه نو هورې خدای ﷻ زوئ ور کړی یعني ابراهیم ﷺ نو کوم کالي چي دې وړي وه هغه یې په واغوسته او هورې یې تر خاشو لاندي کړی او کورته راغله مېږه یعني د ابراهیم ﷺ پلار آزر یې په خبر کړی چي په فلانۍ واله کي ما څه خاشې پر اچولي دي ستا زوئ دی پټ کړی چاره یې وکړه، نو پلار چې ورغلی ابراهیم ﷺ یې د هغې شېلې یعني ولي څخه نقل کړی او په مځکه کي یې یو غار ورجوړ کړی په شان د خوني، او د غار پرخوله یې غټه ډبره ور کښېښوله د درندګانو له ېږي نو مور به یې پټه ورتله او ابراهیم ته بې شیدې ور کولې، او ابراهیم ﷺ ته به خدای ﷻ په شبانه روز کي دونه نما او قوت ورکاوه لکه نورو کوچنیانو ته دکال قوت او نما، بعض راویان وایي چي ابراهیم پنځلس میاشتې په دغه غار کي وو، او بعض راویان وایي چي اوه کاله دلته و، وقیل غیر ذالك نو ابراهیم ﷺ په هغه زمیني غار کي خوانې ته نژدې سو او یاځوان سو.

قال نو یې وویل و مور ته "من ربي" زما خدای ﷻ څوك دی، مور ورته وویل "انا" یعني زه ستا رب یم" قال فمن ربك" ابراهیم ﷺ ورته وویل چي ستا رب څوك دی" قال ابوك" هغې ورته وویل چي زما رب ستا پلار دی" قال " نو ده ورته وویل چي زما د پلار رب څوك دی هغې ورته وویل ستا د

پلار رب نمرود دی، ابراهیم ﷺ ورته وویل چي د نمرود خدای څوك دی مور یې ورته وویل ږغ مه لره نمرود خو خپله خدای دی، نو ماښام چي یې پلار کورته راغلی مور یې ورته وویل چي تاسي به د کاهنانو د خولې ویله چي سږ کال به یو هلك پیدا کېږي چي د ټولي دنیا دین ته به تغیر ورکوي هغه خو دا ستا زوئ دی، مور یې هغه ټوله بیان د هغې ورځي سوال او جواب ټوله وپلار ته بیان کړه، نو پلار ابراهیم ته ورغلی او څه رنګه بیان چي ابراهیم ﷺ مورته کړی وو هغه یې وه پلار ته هم وکړی لکن دې ځای ته چي ابراهیم ورسېدی چي د نمرود خدای څوك دی پلار پر مخ ټینګه چپلاخه وواهه چي داڅه وایي نمرود په خپله خدای دی نو چي شپه تاریکه سوه نو ابراهیم ﷺ د غار و دروازې ته نژدې سو او د هغې لوي دېري تر چولو یې اسمان ولیدی او په هغه کي یې ستوري هم ولیدله، نو په خلق کي د اسمان او مځکي یې فکر وکړی چي خالق زما او د اسمانو او مځکو څوك دی، نو یو روښانه ستوری یې ولیدی" فقال هذا ربي" وروسته یې پسي کتله کتله څو چي ستوری کښته ولاړی او د ابراهیم څخه غائب سو" قال لا احب الآفلین" یعني زما نه دی خوښ یعني د ربوبیت لپاره تغیر کونکي شیان، خیر بیا سپوږمۍ یې ولیدل" فقال هذا ربي فلما افل قال لا احب الآفلین" او سحار یې لمر ولیدی" قال هذا ربي هذا اکبر" او بیا چي لمر غروب وکړی " کرر ذالك القول یعني لا احب آه .

وَوَصّٰى بِهَاۤ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ ؕ يٰبَنِىَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ؕ﴿۱۳۲﴾

او وصیت وکړی په هغه ملت سره او یا په هغه قول سره اسلمت په تاویل دکلمې و خپلو زامنو ته (بیضاوي).

پوهنه:- چي روح البیان وایي چي د ابراهیم ﷺ څلور زامن وه چي نومان يې اسماعیل، اسحاق، مدین او مداین وه کما مر، او مظهري او په دې خای کي روح البیان وایي چي د ابراهیم ﷺ اته زامن وه، (۱) اسماعیل چي مور يې هاجره القبطیة وه (۲) اسحاق چي مور يې ساره وه، او شپږ زامن یه د قنطورا بنت یقطن الکنعانیه څخه چي ابراهیم ﷺ وروسته تر وفات د ساره په نکاح کړې وه، یعقوب عطف دي پر ا براهیم یعني یعقوب هم وخپلو دولس زامنو ته دغه وصیت کړی وو.

پوهنه:- چي تر "أن الله آه" د مخه قول محذوف دی"اي قال کل واحد من ابراهیم ویعقوب وبنیهما" په تحقیق خدای ﷻ خوښ کړی دی تاسي لره دین یعني دین اسلام نو تاسي مه مره کېږي مګر پر داسي حالت چي تاسي به مسلمانان مخلصان یاست.

**پوښتنه**:- چې "فلا تموتن" په ظاهره نهي دی د موت څخه لکن موت خو ددوئ په قدرت کې نه دی نو نهي راجع و ترک ته د اسلام ده تر مرګه پورې.

**فائده**:- یعقوب د اسحاق بن ابراهیم زوئ و او دده دوه زامنو نو مان دادي (۱) روحیل(۲) شمعون (۳) لاوي (۴) یهودا (۵) یستوخور (۶) زبولون (۷) زوایا (۸) نفتونا(۹) کوزا(۱۰) اوشیر (۱۱) بنیامین (۱۲) یوسف

تاریخ وایي چې یعقوب او عیصو سره غبرګولیان وه نو د دوئ د مور چې څه وخت د وضع الحمل وخت را ورسېدی نو ددې په نفس کې د دوو هلکانو سره اختلاف او خبري سوې چې مور هم اورېدلي نو هغه یوه هلك چې وروسته یې نوم یعقوب کښېښول سو، وخپل ورور ته چې ماته لار راکړه چې زه د مور له نسه څخه ووزم هغه بل ورته وویل چې که تر ما د مخه ووتلي زه به د مور نس څیرمه، نو هغه د مخني هلك یعني یعقوب ورته وویل چې مور مه وژنه ورځه ته د مخه ووزه او هغه اول یعني یعقوب دده پنده تینګه کړه او وروسته پسې راووتی، ځکه د هغه نوم یعقوب کښېښول سو چې پر عقب د عیصو خارج سو او چې اول د مور له نسه راووتی د هغه نوم یې عیصو کښېښو، ولې چې د مور په نس کې یې عصیان د مور وکړی.

**پوښتنه**:- چې علماء وایي چې نومان یې په هره معنی چې وه هغه خپل د وضع علمي ښکاره کوي، یعني غالباً نوځکه عیصو یو سخت طبیعت او سخت ګیره شخصیت و او کسب او پیشه یې دهوسي او مرغانو

ښکار و او تېر اندازي به يې کوله، او يعقوب رحم دله او نرم سړی و او کسب او کښت کاري به يې کوله او مالداري به يې هم کوله.

تاريخ وايي چي يعقوب او عيصو په يوه ورځ دواړه مړه سوه په يوه قبر کي دواړه ښخ سوه لکه د مور به رحم کي چي سره يو ځای وه.

**فروبش وايي**:- وهذا من الواقعات الغريبة النادرة جداً. بعض علماء وايي چي يعقوب د يوسل اوه ځلوېښت کالو په عمر کي وفات سو، په مصر کي او يوسف ته يې وصيت کړی وو چي زما جنازه به بيت المقدس ته وړې او دخپل پلار اسحق د څنګ سره به مي ښخوې او يوسف هم داسي وکړه، تاريخ وايي چي څه وخت چي يعقوب سره د زامنو اوفاميله په دعوت ديوسف مصر ته ورغله او وې ليدله چي مصريان اکثره مشركان او بت پرستان وه نو ځکه يې خپل زامن تولـه را وغوښتلـه او هغه وصيت يـه ورتـه وکړی" يابني ان الله" الاية.

**فروبش وايي**:- د يعقوب دا وصيت پر اساس، مرګ پر اسلام او عمل صالح يې بهتر دی تر سلطنت د تولي دنيا، او تر مرګ پر کفر باندي د دنيا ذليل ترين عمر او ژوند ښه دی.

**پوښتنه**:- د ابراهيم ﷺ دعوت و تولو انسانانو تـه ددين ابراهيم لپاره خو معلوم الحال شی و نو نه په ذکر کي ددعوت د ابراهيم ﷺ وخپلو زامنو ته په قران کريم کي د ذکر يې څه حکمت دی،؟

**ځواب**:- ددې حکمت دپاره ذکر سوه چي خدای ﷻ وخلګو تـه وښيي چـي دعـوت و اسـلام تـه ډېـر اهـم او مقصـود اعلـی کـار دی حتـی چي

ابراهیم ﷺ مع عموم دعوته خص احب الناس الیه وهم الابناء بهذا الدعوت .

قیاس کن ز گلستان من بهار مرا

ولهذا قال عز وجل لنبیه وحبیبه ﷺ و انذر عشیرتك الاقربین

وبیروه دخدای ﷻ له عذاب ستا هغه قبیله چي تاته نژدې وي په لحاظ د نسب .

**پوهنه**:- چي یهودو وه علیه السلام ته وویل چي ته نه یې خبر چي یعقوب ﷺ چي وفات کېدی وصیت یې وازامنو ته د یهودیت ددین وکړی نو دا آیت نازل سو، .

**اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ**

**آیا تاسي حاضر واست اي یهودو چي دعوه د وصیت د یهودیت کوی پر یعقوب باندي او اعراض د ملت څخه د ابراهیم ﷺ کوی، واست حاضر په هغه وخت کي چي یعقوب ته مرګ راغلی یعني علامت د مرګ "اذبعد حضور الموت حقیقة لایمکن الایصاء .**

**پوهنه**:- چي "ام" منقطعه دی او معنی یې بل آه" ده، او "بل" صرف د انتقال لپاره دی د وصیت څخه د ابراهیم ﷺ او یعقوب وخپلو زامنو ته ورد ته د قول د یهودو معاصیرینو، او معنی دهمزه انکار دی" اي ماکنتم حاضرین وقت وصیة یعقوب لانکم ایها المعاصرون" د ېر وروسته تاسي یاست تر عصر یعقوبي نو تاسي څرنګه دعوه د وصیت د یهودیت پر ده کوي، او په تفسیر تیسیر کي وایي چي تر "ام" د مخه چي همزه نه وي نو

هغه په "ام" معنی د همزه الاستفهام دی. او استفهام هغسي انکاري دی.
او بيضاوي احتمال د "ام متصله" هم راوړی بتقدير همزه الاستفهام . يعني "ام کنتم غائبين ام کنتم شهداء، او المخاطب حينئذ ايضا اليهود، والمقصود الرد على اليهود المعاصرين المدعين لوصية يعقوب" يعني تاسي به يا غائب یاست دعصر يعقوبي څخه نو بيا دعوه دهغه شي څرنګه کوئ چي تاسي نه وي ليدلی، او که څانونه حاضر بولی نو دا خو بېخي دروغ دي لان بين عصركم وعصر يعقوب قرون كثيرة، او بعض مفسران رح وايي چي مخاطب په کنتم سره مسلمانان دي نو معنا د آيت داده چي تاسي اى مسلمانانو خو حاضر نه واست په وخت کي د حضور د موت د يعقوب ﷺ بلکه تاسي ته دا معلومات په وحي قرآني سره درکړه سو. اورد هذا الاحتمال البيضاوي رحمه الله وتبعه المظهري .

**فروبشي وايي**:- چي دا احتمال ډېر بعيد احتمال دی ولي چي د سباق سره يې مناسبت کمزوری دی، او د سياقه سره خو هيڅ مناسبت نه لري ولهذا اورد بلفظ قيل آه اشارة الى الضعف .

# إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعْبُدُونَ مِنْ بَعْدِي ۖ

چي ده وويل وخپلو زامنو ته چي تاسي به د څه شي عبدت کوئ تر ما وروسته يعني زما تر مرګوروسته

**پوهه**:- چي غرض د يعقوب ﷺ دا و چي زامن پر توحيد او اسلام اقراره کړي او ددوئ څخه ميثاق او ټينګه وعده واخلي. عطار رحمه الله وايي چي هيڅ نبي نه مري تر هغو پوري چي ده اختيار ورنه کړي په منځ کي د

ژوند او مرګ نو څه وخت چې یعقوب ﷺ ته په وخت کې د ناجوړی، ده ته اختیار ورکړه سو، نو ده له عزرائیل ﷺ څخه مهلت وغوښتی چې زه به زامنو ته وصیت وکړم، نو ټول زامنان او د دوئ اولادونه یې سره را جمع کړه او دا یې ورته وویل ما تعبدون من بعدي.

**پوښتنه**:- د یعقوب ﷺ زامنان خو نبي زاده ګان وه نو د یعقوب ﷺ دا خبره ودوئ ته کول آیا پر شرک ددوئ ببرېدی وروسته تر مرګ خپل؟

**ځواب**:- راغب اصفهاني ﷫ وايي چې مقصود د یعقوب ﷺ له عبادت څخه فقط عبادت مشروعه نه و مراد، بلکه مراد دده دا و چې باید مقصود ددوئ په ټولو اعمالو کي رضا د خدای ﷻ وي، او د هغو عملو څخه دېر لري ګرځي چې وسیله و خدای ﷻ ته نه وي، ګویا غرض د یعقوب ﷺ دا و چې دوئ ته دعوت د نجات د شرك خفي څخه ورکړي اعنی الریاء والسمعة، او دا ببره د یعقوب ﷺ پر دوئ نه وه چې دوئ به شرك او عبادت د بتانو وکړي بلکه پردوئ ببرېدی چې دنیا به دوئ مشغوله کړي له عبادت او عمل څخه لوجه الله ﷻ ولهذا قیل ماشغلك عن الله فهو طاغوت ای ضم، قال الرومي ﷫ في مثنویه

چیست دنیا از خدا غافل شدن نی قماش ونقره وفرزند وزن

قال العلامة التفتازاني ﷫ في حاشیة الکشاف چې کلمه د ما عامه ده یعني ذوي العقول او غیر ذوي العقول دواړو ته شامله ده انتهی باختصار.

قَالُوا نَعْبُدُ إِلٰهَكَ وَإِلٰهَ اٰبَآئِكَ إِبْرٰهِمَ وَإِسْمٰعِيلَ وَإِسْحٰقَ إِلٰهًا وَاحِدًا ۖ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ﴿١٣٣﴾

دا جمله مستانفه ده کانه قیل فماذا قالوا في جواب یعقوب قالوا الخ
زامنو ورته وویل چي موږ به عبادت کوو ستا د خدای ﷻ او ستا د پلرو
د خدای ﷻ هغه پلرونه ستا چي ابراهیم او اسماعیل او اسحاق علیهم
السلام دي چي یو خدای ﷻ ددوئ متفق د ټولو وو، او موږ وهغه
خدای ﷻ ته منقاد او تسلیم او اخلاص درلودونکي یو .

**سوال:**- چي ابراهیم ؑ خو د یقعوب ؑ نیکه و او اسماعیل ؑ
خو يې اکا و، نو ګردو ته يې آبا څرنګه وویل ؟

**جواب:**- لفظ د اب پر جد باندي اطلاق ښخي شائع دی حتی چي لکه
حقیقت طاریه ګرځېدلی دی، او عرب اکا ته هم پلار وایي او خاله ته مور
وایي. قال رسول الله ﷺ عم الرجل صنو ابیه، رواه الترمذي کذا في
المظهري، نو د اعراب له لاري د ابراهیم، اسماعیل او اسحق عطف بیان
دی د آبائك الخ.

**فائده:**- چونکه عطف پر مجرور بیله اعاده د جار که اسم وي
او که حرف وي نحات ناروا بولي، نو ځکه پر مجرور محلاً
چي ضمیر د "الهك" دی چي عطف د آبائك کاوه نو جار
چي آله و د آبائك سره يې راوه ګرځاوه، لکن د تکرار د لفظ
د آله چي توهم د تعدد د آلهه و کېدی، نو ځکه لپاره د دفع

ددغه توهم یې آلهاً واحداً ووایي. وقوله ونحن له مسلمون، جمله اسمیه ده او حال د فاعل څخه د "نعبد" او یا د مفعوله د نعبد او یا له دواړو څخه، ولي په نحو کي قانون دادی چي په جمله کي ضمیر د فاعل او مفعول دواړه وي د هغي جملي په حالیت کي درې سره وجهي روا دي، او دا هم احتمال لري چي جمله د ونحن آه جمله معترضه وي قاله المظهري رحمه الله، او هغه احتمال چي قاضي بیضاوي بیان کړی دی چي الهاً واحداً منصوب علی الاختصاص دی یعني نخص الهاً واحداً او نعني الهاً واحداً پر هغه ابو حیان رحمه الله دا اعتراض کړی دی چي نحات وایي په منصوب علی الاختصاص

مضمون:- په قیامت نسته داسي پوښتنه د چا زوي یې له کوم وطنه، او ستاسي څخه پوښتنه نه کېږي د هغو عملو چي نامبرده ډلي کوله یعني په قیامت د هر چا څخه د خپل عمل پوښتنه کېږي نه د بل چا د عمل که خپل وي که بېګانه وي. امام بغوي په خپل تفسیر کي وايي چي رئیسان د یهودیانو د مدینې منورې کعب بن الاشرف مالك بن الضیف وهب بن یهودا یاسر بن ابی الاخطب او نصاری د نجران یعني السید، والعاقب وغیر هما د مسلمانانو سره یې په دین کي بحث شروع کړی، او هري ډلي دا ویل چي دین حق او مرضي عندالله دین زموږ دین دی وبس نو یهودیانو دا وویل چي زموږ نبي موسی افضل الانبیاء دی، او زموږ کتاب تورات افضل الکتب السماویة دی، او زموږ دین بهترین د دینو دی، او د عیسی او دده د کتاب انجیل څخه یې انکار وکړی او دغه رنګه د آنحضرت ﷺ او د قرآن څخه یې هم انکار وکړی، او دغه رنګه نصاری وو وویل چي زموږ نبي عیسی افضل الانبیاء دی، او زموږ کتاب انجیل افضل الکتب الالهیه دی او زموږ دین افضل الادیان دی، وکفروا بمحمد ﷺ والقرآن، او یهود او نصاری و دواړو مسلمانانو ته دا وویل چي زموږ دین ته را واوړئ ولي چي بل دین حق مقبول عندالله نسته بېله زموږ له دینه څخه. فانزل الله تعالی .

# وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوا ۗ قُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرٰهِيمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۱۳۵﴾

او وبل به یهود او نصاری وو یعني و مسلمانانو ته چې تاسي ، یهودو په دین سئ او یا د نصاری و په دین سئ نو تاسي به هدایت یعني دین حق پیدا کړئ .

**پوه سه**:- پوه سه: چې تهتدوا خواب د امر دی .

**فائده**:- چونکه یهود او نصاری یو او بل ته کافران وایي کمامر في شان نزول الآیت نو دا خبره ددوئ "کونوا هودا او نصاری ددوئ اتفاقي خبره نه ده بلکه یهود وایي "کونوا هودا" او نصاری وایي "کونوا نصاراً، لکن جمع الله سبحانه وتعالی بین قولیهما اختصاراً في العبارة. او ته روایي ای محمد ﷺ چې نه موږ یهود کرځو او نه نصاری بلکه موږ ملت ابراهیم یو یعني موږ اهل د ملت ابراهیم یو فحذف المضاف، او یا معنی داده بل نتبع ملة ابراهیم، او یا معنا داده چې تاسي ای یهود او نصاری و متابعت وکړئ د ملة ابراهیم یعني مسلمانان سئ لکه موږ .

وقوله حنیفاً، حال دی له ابراهیم عليه السلام څخه .

**سوال**:- نحات وایي چې حال ما یبین بهیئة الفاعل او المفعول به، لفظ د ابراهیم خو نه فاعل دی او نه مفعول به بلکه مضاف الیه دی د ملة د لفظ دی ؟

**ځواب**:- نحات دا هم وايي چي مضاف كه يا فاعل و او يا مفعول به او حذف دده او مضاف اليه په ځاى كي د روړل معنا ته خلل نه د رلودی نو د هغه مضاف اليه څخه هم حال روا دی، ولي دا مضاف اليه حكما يا فاعل او يا مفعول به دی وفي مانحن فيه كذالك، ولي كه لفظ د ملت حذف سي او داسي وويل سي "بل ابراهيم آه" معنا ته خلل نه پيښيږي، ولي چي معنا يې داده "بل نتبع ابراهيم، وهذا المعنى صحيح لانه يرجع الى المعنى الذي يكون على تقدير ذكر الملة كما لايخفى، او بعض مفسران وايي چي حنيفا حال دی د ملت څخه .

**سوال**:- لفظ د ملت خو مونث دی او حنيفا مذكر دی والنحاة يشترطون المطابقة بين الحال و ذي الحال في التذكير والتانيث ؟

**ځواب**:- چونكه ملت او دين يو شی دی نو به ملت په تاويل د دين وګرځوو فحصل المطابقة .

**پوهنه**:- پوه سه: چي حنف چي مصدر د حنيفاً دی په معنا د ميل دی نو معنا د حنيفاً داده چي حالكون كون د ابراهيم يا دين دده منحرف و د يهوديت او نصرانيت څخه يعني نه يهودي او نه نصراني و، قوله وماكان آه، رد پر مشركانو د مكې چي دوئ دا دعوه كوله او پر يهوديانو او نصارى وو باندي چي مشركانو سره د بت پرستى او يهوديانو سره ددې عزير ابن الله بالى، او نصارى وو سره ددې چي عيسى ابن الله بولي تولو ځانو ته تابعان د ابراهيم د دين بولل، وهذا جمع الضدين ولي ابراهيم ﷺ خو په هيڅ نوعه مشرك نه و، نو څرنګه دا دري ډلي سره د شرك دعوه د متابعت د ابراهيم او د دين دده ﷺ كولاى سي. اين خيال است ومحال است وجنون، بلكه دين د ابراهيم ﷺ هغه دين و چي پر

هغه دین باندي نبینا علیه الصلوة والسلام او اصحاب کرام ﷺ او اتباع ددوئ دي چي هیڅ قسم شرك ځای نه پکښي لري، قال الله جل وجل سلطانه وصدق قوله وقرآنه

**قُوْلُوْآ** یعني ای مومنانو **اٰمَنَّا** یعني وحده بدون الاشتراك

**بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَیْنَا**

یعني قرآن مبارك بې دمخه راوړی ولي چي قرآن مبارك زموږ د ایمان سبب دی پر نورو کتابو.

**وَمَآ اُنْزِلَ اِلٰٓی اِبْرٰهٖمَ**

چي لس (۱۰) صحیفې دده وې.

**وَاِسْمٰعِیْلَ وَاِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ**

او چي نازل سوی وې پر اسماعیل او اسحاق او یعقوب علیهم السلام باندي.

**پوښتنه**:- چي اولاد د ابراهیم ﷵ كه څه هم نوي صحیفه او كتاب يې نه درلودی بلكه د ټولو اولادو د ابراهیم ﷵ هم معمول هم هغه صحیفې وې چي پر ابراهیم ﷵ نازلي سوي وې لكن چونكه دوئ په هغو صحیفو سره عمل كاوه نو هغه صحیفې خدای ﷻ پر دوئ هم نازل وګڼلې، لكه موږ چي وايو قرآن مبارك منزل دی علینا.

**فائده**:- اسباط جمع د سبط ده چي اصل ته د درختي وايي چي ډېر ښاخونه لري، او مراد دلته د اسباط څخه اولاد د يعقوب عليه السلام دي چي دولس (۱۲) وه، ولي چي هر يو يې لکه لويه درخته ډېر ښاخونه اولادونه يې درلوده .

**فائده**:- اسباط په بني اسرائيلو کي لکه قبائل د عربو دي يا قومونه په عجمو کې او په اسباطو کې د بني اسرائيلو انبياء وه که څه هم ټول انبياء

ﷻ من الحیوة والعلم والقدرة وغیرها، او ایمان دی پر احکام د خدای ﷻ، او ایمان دی پر اخباراتو د خدای ﷻ في المبدء والمعاد، امام بخاري ﷫ د ابو هریره ﷺ څخه داسي روایت کړی دی چي یهودیانو به تورات په عبراني ژبه وایه او مسلمانانو ته به یې په عربي ژبه ترجمه کاوه نو علیه السلام و مسلمانانو ته داسي وویل چي تاسي مه تصدیق د اهل کتابو کوئ او مه یې تکذیب، یعني چي د اهل کتابو په کتابو کي تحریف ډېر سوی دی بالزیادة والنقصان علی حسب مقتضی علمائهم، وقولوا آمنا بالله الآیه .

**درویش وایي**:- چي لله الحمد والمنة والاحسان چي زموږ قرآن کریم په کر الازمان والدهور کي له تحریفاتو څخه د علماء سوء ساتلی دی، نحن نزلنا الذکر وانا له لحافظون، یعني موږ قرآن نازل کړی او موږ یې ساتونکي یو .

## فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنْتُمْ بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوْا

نو که اهل کتاب ایمان راوړي په مثل سره د هغه چي تاسي ایمان پر راوړی، نو په تحقیق دوئ هدایت ته ورسېدله .

**درویش وایي**:- چي دلته یو سوال پیدا کېږي چي مسلمانانو خو ایمان راوړی دی پر قرآن او قرآن لره مثل نسته، او دغه رنګه د مسلمانانو خو ایمان دی پر علیه السلام او علیه السلام لره خو هم مثل نسته، مظهري په متابعت د بیضاوي ببله حوالې ورهغه ته وایي چي باء په بمثل کي زائده ده، نو یې معنا داده چي که اهل کتاب ایمان راوړي مماثل ستاسي د ایمان سره نو دوئ به پر هدایت سي، نو دا باء داسي ده

لکه په دې قول کې "جزآء سیئة بمثلها" ای جزاء سیئة مثلها، او یا لفظ د مثل زائد دی، نو بیې معنا داسې کیږي، که دوئ ایمان راوړي "بما آمنتم به یعیني القرآن ومحمد ﷺ. نو نظیر لفظ د زیادت المثل هغه آیت دی "وشهد شاهد من بني اسرائیل علی مثله ای علیه" او د عبدالله ابن عباس ﷺ قرائت ددې توجهه تائید کوي " فان آمنوا بما آمنتم به" او دغه رنګه یا تائید کوي قرآئت د ابي ﷺ "فان آمنوا بما آمنتم بهٖ" او بیضاوي داسې توجیه د آیت هم زیاته کړې ده چې کلمه د باء د تعدیه لپاره نه ده بلکه باء الآلة ده، نو بیې معنا داسې کړې ده ان تحروا الایمان بطریق یهدي الی الحق مثل طریقکم، فان وحدة المقصد لاتابی تعدد الطرق الیه" معنا داده که اهل کتاب قصد وکړي و ایمان ته په یوه لار سره چې موصل وحق ته وي لکه ستاسې لار "فقد اهتدوا" ولې چې پر ډېرو لارو یوه مقصد ته تګ پروانه لري، او بیضاوي او روح البیان په متفقه طور وایي چې دا ایت له قسمه څخه د تبکیت دی یعني الزام د خصم او تعجیز دی یعني اظهار د عجز د خصم کما في قوله تعالی "فاتوا بسورة من مثله وتحقیق هذا الجواب، چې ګویا مسلمانان و اهل کتابو ته وایي چې زموږ مقصود خو هدایت ستاسې دی، نو که تاسې داسې دین پیدا کړئ لکه اسلام په صحت کې فقد اهتدیتم، نو بیا موږ تاسې ته نه وایو چې موږ پر حق یو او تاسې پر باطل نو خصم که د سلیم فکره څخه کار واخلي او په نظر عمیق وګوري نو به ورته معلومه سي چې نه مثل د قرآن سته او نه مثل د علیه السلام سته، نو به ایمان راوړي، او د مسلمانانو دا د انصاف نظر به یې خوښ سي او دا به ورته معلومه سي چې مسلمانان زموږ سره کوم عداوت او دښمني نه لري بلکه مقصود یې زموږ هدایت دی .

**درویش وایي**:- چي دې طریقې ته د بحث طریقه د ارخاء العنان مع الخصم وایي، او په مناظره کي دا طریقه ډېره کامیابه طریقه ده، وکم من سالک سلکوا هذه الطریقة قدیما وحدیثا .

**نکته**:- درویش داسي عبارت ووایي بېله حوالې، په دې کي د درویش غرض تعریض پر مظهري رحمه الله نه دی بلکه غرض مي دا وو چي نقل د یو کتاب څخه که په حواله وي او که بې حوالې وي د مصنفینو تر منځ مشهور دی، او عیب نه ګڼل کېږي، نو درویش وخپلو حاسدانو ته حیران دی یعني که درویش حواله و ماخذ د دې تفسیر ونه کړه نو دوی وایي چي عبیدالله سارق دی وهذا جهل عظیم .

**وَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۱۳۷﴾**

او که اعراض وکړي دوی له ایمان څخه بالشرائط المذکورة او المفهومة من الآیات السابقة نو دوی په خلاف کي د حق دي .

**پوهنه**:- چي تنوین د شقاق لپاره د تعظیم دی اي في اختلاف من الحق عظیم .

**پوهنه**:- چي خدای جل جلاله شقاق د دوی لپاره ظرف وګرځاوه مبالغةً في بعدهم عن قبول الحق والایمان .

**پوهنه**:- چي شقاق مشتق دی له شق څخه بمعنی الجانب فکان کل واحد من الفریقین في شق غیر شق الآخر، او ژر دی چي کفایت به وکړي ستا ای محمد ﷺ له دوی څخه یعني د دوی له شره څخه، الله تعالی جل جلاله

اوریدونکی دی د اقوالو د کفارو او د مسلمانانو، او عالم دی په احوالو سره د ټولو یعني فیجزی کلهم في الآخرة مطابقا لعلمه في الدنیا.

**پوهنه**:- چي دواړه ضمیره یعني "ك" او "هم" منصوب المحل دي مفعولان دي د یکفی، او په حقیقت کي مفعول ثاني مقدر دی یعني "شرهم ای الیهود والصناری.

**پوهنه**:- چي دا وعده خدای ﷻ پوره کړې ده چي قتل او سبي یې پر بني قریظه مسلطه کړه، او فرارول وشام ته او نورو ځایو ته پر بني نضیرو، او ذلت او جزیه پر نصاری و د نجران.

**فائده**:- د تفسیر مظهري په منهیه کي راغلي دي چي مصریانو او نورو چي پر امیر المومنین عثمان ﷺ په مدینه منوره کي حمله وکړه او دی یې په خپل سرای کي محاصره کړی نو د شپې چي امیر المومنین وروسته تر تهجد د لمانځه د قرآن مبارك تلاوت کاوه او باغیان یې وسرای ته ورواوبنتل او امیرالمومنین ودغه ایت ته "فسیکفیکهم الله" د رسېدلو په وخت کي باغیان په دواړو لاسو په توره وواهه چي وینې یې پر دغه آیت ومبتلې، نو عثمان ﷺ وویل "انها لاول ید خطت المفصل" راوي وایي چي د دغو باغیانو څخه یو هم پر سالم حالت نه دی مړ وتمام القصة یجئ في محل مناسب لها ان شاء الله والقصة المذکورة في کتب الآحادیث المبارکة مذکورة.

# صِبْغَةَ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً ۫ وَّنَحْنُ لَهٗ عٰبِدُوْنَ ﴿۱۳۸﴾

**پوښتنه**:- چي د صبغة الله تفسير ابن عباس رضی الله عنه په قول د مظهري رحمه الله په دين الله سره کړی دی او په دې کي شک نسته چي د صبغ معنا حقيقة رنګول د جامې دي په يو رنګ سره نو پر دين يې اطلاق مجاز دی، او علاقه د مجاز يې داده چي اثر د دين پر متدين سړي ښکاريږي لکه اثر د صبغ پر جامه باندي، نو پر دې تقدير مصدر مؤكد لپاره د آمنا دی من غير لفظه ولي چي ايمان او دين سره يو شی دي، او يا بدل دی د ملت ابراهيم سره، فالتقدير بل نتبع دين الله، او يا منصوب دی على الاغراء يعني يو ځوك پر يو كار ګومارل يعين درواخلئ دين الله، او بيضاوي رحمه الله يې څو تفسيره کړي دي

(۱) اول ای صبغنا الله صبغة او د صبغة الله معنا يې هغه استعداد فطري او خلقي کړې ده چي خدای جل جلاله انسانان پر هغه پيدا کړي دي يعني استعداد قبول الاسلام كما اشير اليه بقوله عليه السلام "كل مولود يولد على فطرة الاسلام فابواه يهودانه الى اخر الحديث.

**پوښتنه**:- دې فطرت الهي ته ولي صبغه وويل سوه، يعني مجاز خو دی علاقه يې څه شی ده ؟

**ځواب**:- علاقه يې داده چي دغه فطرت الهي د انسان زينت دی چي په دې زينت الهي سره انسان د حيوانانو بې ادارکو څخه جلا دی لکه رنګ چي زينت د جامې دی.

(۲) هدانا الله هداية يعني موږ ته يې طريقه، حجت او دلائل د هدايت راښوولي دي .

(۳) او طهر قلوبنا بالايمان بتطهيره، والعلاقة انه ظهر اثر الايمان الذي هو المراد بتطهير الله عليهم كظهور اثر الصبغ على المصبوغ وتداخل في قلوبهم كتداخل الصبغ في المصبوغ. او يا مشاكلةً يې اطلاق د صبغ پر ايمان کړی دی .

**فائده**:- مشاكله دا بولي چې يو شی په لفظ د بل شي ذكر كړه سي ولي د هغه غيره همسايه راغلی وي كقوله تعالى "يخادعون الله وهو خادعهم، اى يجازيهم على خداعهم فسمى جزاء الخداع خداعاللمشاكلة، وقوله تعالى "جزاء سية سية مثلها .

**فائده**:- همسايه والی عادم دی كه ظاهراً وي كما في الآيتين المذكورتين، او كه تقديرا او حكماً وي كما في هذه الاية يعني صبغة الله لانه ليس آه مجاور ظاهرا ولفظا بلكه تقديراً، ولي چې په آحاديث مباركه و كي راغلي دي چې د نصارى و عادت دا و چې په اومه ورځ د ولادت د اولاد د دوئ به هغه مولود خپلو د ملايانو كورته ور استاوه تاچي په هغو ابو چي عيسى ﷺ په پرېوله سوی دی په وخت كي د ولادت چې دوئ معمود يه ابويه بولي دا كوچنی يې په پرېمنځي او د هغو ابو ژړ رنګ دی، او ملايانو به نوري اوبه په ګډولي او مالګه به يې هم پکښې اېښووله چې بد بويه نسي، او دوئ ته پر دې پرېولو باندي ځه نقود د مولود د پلار له خوا لاس ته راتله. او ملايانو به وروسته تر غسل د ابی د مولود و پلار ويل چې الآن صار نصرانيا حقا . او پاك سو د ټولو اديانو باطله و څخه. نو دا صبغه د نصارى وو كه څه هم لفظا نه ده ذكر لكن په

قرینه الحال سره کویا ذکر د فالآیة المذکورة رد لزعمهم الفاسد قوله ومن احسن آه.

**پوښتنه**:- چي کلمه د من مبتداء ده او احسن يې خبر دی او استفهام انکاري دی، یعني هیڅ څوك احسن تر خدای ﷻ نسته از روی صبغه. ولې چي خدای ﷻ خپل بندګان صبغ کوي یعني پاکوي يې په ایمان سره د چرکه څخه د کفر او له نجاساتو څخه د شرك، او نصارئ يې په اوبو پاکوي.

ع قیاس کن ز ګلستان من بهار مرا

او موږ خاص الخاص عبادت کونکي د خدای ﷻ یو، وفي المثنوي

ګو را رنګ از برون ومرد را | از د رون دان رنګ سرخ وزرد را
رنګهای نیك از زخم صفات | رنګ زشتان از سیاه آب جفا است

**فائده**:- په دې قول کي د خدای ﷻ "ونحن له عبدون اشاره و دې ته ده چي عارفان او اولیاء الکرام رح ددې لپاره عبادت کوي چي خدای ﷻ مستحق د عبادت دی، نه د شوق د جنت لپاره او نه له بېرې د دوږخ له سببه، په روح البیان کي وایي چي په زبور کي خدای ﷻ داسي فرمایلي دي " ومن اظلم ممن عبدني لجنة او نار فلو لم اخلق جنة ولا نارا لم اکن مستحقا لان اعبد" شیخ ابو العباس رحمه الله وایي چي اوقات د بنده څلور دي پنځم نه لري، الطاعة والمعصیة والنعمة والبلیة، او هر وخت لره برخه د عبودیت او بندګی سته چي زموږ څخه يې خدای ﷻ غواړي په حکم د ربوبیت او خدایي، نو که د سړي وخت د عبات و یعني عبادت د خدای ﷻ يې کاوه، نو حق د خدای ﷻ دادی چي په خوشحاله به اوسي او دوام دي پر وکړي، او که يې وخت د معصیت و یعني ګناه څخه دي

صادره سوه، حق د خدای ﷻ دادی چي سړی دي په خوابدی سي او توبه دي وکړي او که وخت د سړي د نعمت و یعني خدای ﷻ نعمت ورکړی نو حق د خدای ﷻ پر بنده باندي شکر کول دي، او که وخت د سړي بلا وه من مرض و فقر وغیر ذالك نو حق د خدای ﷻ پر بنده صبر کول دي او رضی په قضا د خدای ﷻ.

**فائده**:- پر بلا باندي د صبر معنا دا نه ده چي سړی به دفعه د هغې بلا نه غواړي بلکه معنا یې داده چي د خدای ﷻ څخه به ګیله او شکایت نه کوي، قال المولی الرومي قدس سره في المثنوي

کافرم من گر زیان کرد ست کس | در ره ایمان وطاعت یک نفس
سر شکسته نیست این سر را مبند | یک دو روز صبر کن باقي بخند
تازه کن ایمان نه از گفت زبان | ای هوا را تازه کرده در نهان
تا هوا تازه است ایمان تازه نیست | کین هوا جز قفل آن دروازه نیست

**پوه سه**:- روح البیان د سري سقطي رحمه الله څخه داسي روایت نقل کړی دی چي ما شل کاله نصیحت کاوه لکن په دام کي د نصیحت مي یو نفر واقع سو هغه داسي چي ما په جامه مسجد کي د بغداد په ورځ د جمعې نصیحت کاوه او دا جمله مي وویله عجبت من ضعیف عصی قویا، خیر د شنبې د سهار لمونځ چي ما وکزاره یو ښه ځوان راغلی چي وروسته یې د آسانو سپاره په پسې وه او تر مخ یې مریان څغاسته، او ځوان هم پر یوه آس سپور و، نو چي کښته سو پوښتنه یې وکړه ایکم السري السقطي یعني سري سقطي کوم یو دی ستا سو څخه، ناستو خلګو ماته اشاره وکړه یعني دغه سړی سري سقطي دی، نو ماته یې سلام وواېه او په آدب سره کښېښستی نو یې وویل چي پرون ما ستا څخه دا

جمله ووار یدله عجبت من ضعیف عصی قویا" نو ده وویل چي ستا څه مراد و یعني ضعیف او قوي دي څوك ښوروله؟ نو ده ورته وویل لاضعیف اضعف من بني آدم ولاقوي اقوی من الله عزوجل، او سره د خپل ضعف بني آدم د قوي بلکه اقوی خدای ﷻ عصیان کوي، سري ﷫ وایي چي دې ځوان وژړل او وه یې ویل چي ما غوندي غرق په ګنهو کي خدای ﷻ قبلوي، نو ما ورته وویل چي ته خپله معامله و خدای ﷻ ته په صدق او اخلاص او توبه سره صحیح کړه په ورځ د قیامت ستا خصوم خدای ﷻ له تا څخه راضي به کړي باعطاء العوض من جانبه، سري سقطي ﷫ وایي چي رسول الله ﷺ وویل چي ورځ چي د قیامت سي او پر ولي الله خصوم جمع سي او هر یو خپل حق غواړي نو خدای ﷻ ټولوته ووایي چي زما دوست مه په عذابه وي ستاسي حقوق زه درکوم، فبکی ځوان بیا وژړل، بیا هغه ځوان و سري سقطي ﷫ ته وویل ماته بیان کړه لار د خدای ﷻ سقطي ورته وویل که ته لاره د میانه روو اولیاؤ غواړې نو ټولي علاقې له مخلوقه څخه قطعه کړه او وخالق لا یزال ته متوجه سه، نو ځوان دومره ډېر وژړل چي د سمال یې په اوښکو لوند کړی، سري وایي چي دغه ځوان ټولي علاقې له مخلوقه قطعه کړې او د اهل او عیال څخه ګوښه نشینه سو او ټوله ژوند یې په مقبرو کي ګذاره کوله فمات علی تلك الحال رحمه الله سقطي ﷫ وایي چي ما یوه شپه ددغه ځوان د کشف الحال په باره کي استخاره یعني وروسته تر مرګ ددغه ځوان مي په خوب ولیدی چي وربښمین کالي د جنت یې اغوستي وه، او چي زه یې ولیدم وه یې ویل جزاك الله خیراً، ما ورته وویل چي خدای ﷻ څه معامله درسره وکړه، ده راته وویل چي وروسته تر مرګ یې دستي وجنت ته وروستلم او د هیڅ

ګناه پوښتنه بيې هم را څخه ونه کړه، هذا حاصل ما في روح البيان مع زيادة يسيرة .

قُلۡ أَتُحَآجُّونَنَا فِي ٱللَّهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمۡ وَلَنَآ أَعۡمَٰلُنَا وَلَكُمۡ أَعۡمَٰلُكُمۡ وَنَحۡنُ لَهُۥ مُخۡلِصُونَ ﴿١٣٩﴾

ته ووایه اي محمد ﷺ و یهود اونصارئ وو ته ایا تاسي زموږ سره د لاشل وایاست یعني ناحقه بحثونه راسره کوئ په شان کي د خدای ﷻ. یعني خدای ﷻ ولي نبي ﷺ په عربو کي برګزیده کړئ یعني محمد ﷺ، او سره ددې چي د نبوت کورني خو یهود وايي موږ وو او نصارئ وايي موږ او حال دادئ چي خدای ﷻ خو زموږ رب دئ او ستاسي یعني خدای ﷻ د یو قوم دون قوم سره علاقه خاصه نه لري نو خدای جل شانه د هر قوم څخه چي نبي مختاره کوي نو دی فاعل مختار دی کولای يې سي "لايسئل عما يفعل وهم يسئلون" او موږ لره خپل عملونه دي او تاسي لره خپل عملونه دي یعني لكل واحد منا ومنكم جزاء عمله ان خيراً فخير وان شراً فشر. او موږ مخلص بندګان د خدای ﷻ یو او تاسي مشرکان یاست نو موږ باید احق په کرامت د خدای ﷻ سو .

**پوهنه**:- چي په نبوت کي دوه مذهبه دي یو مذهب د اهل حق دی دوئ وايي چي نبوت فضل الهي دی او امر موهبي دی "یوتیها من یشیاء" او حکما وايي چي نبوت امر کسبي دی په مجاهده یعني په کوشش پوري د انسان کار لري او تصفیه د قلب او باطن غواړي، نو په دې آیت کي

خدای ﷻ پر دوارو مذاهبو و دویٔ ته الزام ورکړی، اول رد د اهل حق د مذهب له لاري دادی هو ربنا وربکم، نو که مونږ ته اراده د موهبت د نبوت وسي او که وتاسي ته بايد يو پر بل اعتراض ونه کړو، او پر مذهب د حکما و په دي قول سره رد وکړی و لنا اعمالنا ولکم اعمالکم" نو عين ممکنه ده چي زمونږ په عملو کي دي داسي مجاهدات او تصفيه د باطن پيدا سي چي سبب د نبوت دی وګرځي .

**فائده:**- اخلاص په عمل کي چي په بل عبارت يې احسان هم بولي چي بنده خپل عمل د شرک جلي او خفي څخه چي ريا ده خلاص کړي

**بيت**

بروي وريا خرقه سهل است دوخت    وگر برخدا در فروشي نکوست .

**فائده:**- که يو څوک مثلا دتهجد په لمانځه کولو کي په خلګو کي شهرت ولري، لکن ده ځان له خلګو څخه پټ ساته يو ځای د شپي مبلمه سو نو د تهجد لمونځ يې پرېښوی دا هم ريا ده په دې معنا چي خلک به وايي چي فلانی دومره تقوی داره دی چي په کور کي ده تهجد کاوه دلته يې په قصده پرېښوی .

**فائده:**- د فرضي عملو په اصل ذات کي ريا نسته ولي چي سړی پوهېږي چي لمونځ خو پر ده فرض وه خود به يې کاوه، نو عامل الصلوة به په لمانځه کي علو نفس وخلګو ته ونيسي او په کيفيت کي د اداء يې ريا سته مثلا چي يوازي فرضي لمونځ کوي چابک چابک يعني بېله مراعته د تعديل الارکان يې کوي، او په حضور کي د خلګو په ښه رکوع او قومه او په ښه سجده او جلسه بين السجدتين وغير ذالك سره يې کوي، نو په دې صورت کي د اصل لمانځه ثواب په ورځ کي د اخرت

خدای ﷻ ورکوي، او د تعدیل الارکان ثواب یې نسته. او د نفلي عباداتو په اصل او په کیفیت په دواړو کې د ریا امکان سته کما لایخفی فتدبر.

**درویش وایې:-** چي سعدي شیرازي قدس سره په بیان کې د ریا کاره د بر په زړه پوري اشعار ویلي دي هغه دادي.

شنیدم که نا بالغي روزه د اشت | بصد محنت آورد روزي بچاشت
پدر دیده بوسید وما د ر سرش | فشاندند بادام وزر بر سرش
چو بروي گذر کرد یک نیمه روز | فتاد اندرو آتش معده سوز
بدل گفت اگر لقمه چندي خورم | چه داند پدر غیب یا مادرم
چو روي پسر در پدر بود و قوم | نهان خورد وپیدا بسر برد صوم
که د اند که در بند حق نیستي | اگر بیوضوء در نماز ایستي
پس این پیرازان طفل نادان تر است | که از بهر مردم بطاعت درست
کلید در د و زخ است ا ن نما ز | که درچشم مردم گزاري دراز
اگر جز بحق میرود جاده ا ت | در اتش نشانند سجاده ا ت

**درویش وایې:-** چي عموما ریا کاري په پیرانو کې یعني چي مریدان لري او په طلب د نورو هم پسې وي، او په ملایانو کې خصوصا نامداره ملایان او یا زکوات اخستونکي اود مقتدیانو وجیب ته منتظر امامان خصوصا په میاشت کې د روژې، نو خدای ﷻ دي وکړي چي دا تعلق او غوره مالي د امامانو د عبادت شکل اختیار نه کړي.

أَمْ تَقُولُونَ إِنَّ إِبْرٰهِمَ وَإِسْمٰعِيلَ وَإِسْحٰقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطَ كَانُوا هُودًا أَوْ نَصٰرٰى

او که تاسي وایاست چې ابراهیم، اسماعیل، اسحق او یعقوب او دده اولاد علیهم السلام یهود وه لکه یهود چې وایي، او یا نصاری وو لکه دوئ چې هم دعوې د نصرانیت پر دغو نامورو انبیاؤ باندې دائره کړې ده

**پوهه**:- چې "ام" منقطعه دی چې په معنا د "بل آه" دی نو همزه یې لپاره د انکار دی، بعض مفسران رحمهم الله وایي چې ام په معنا د همزه دی فقط لپاره د توبیخ د دغو دوو ډلو، او روح البیان والا وایي چې ام متصله دی او معادل یې هغه همزه دی چې په اتحاجوننا کې دی، نو بیې معنا داده چې ستا سي څه له وسه پوره دی آیا اقامت د برهان کولای سئ پر خپل دعوی، او یا پر انبیاء د خدای جل جلاله درواغ وایاست.

**ډروېش وايي**:- چې دا تردید و دوئ ته ضعیفه معلومېږي ولې چې د محاجت څخه خو حقیقت نه دی مراد بلکه مراد مجادله صرفه ده نو هغه خو هم رکاب د درواغو ده، وفیه نظر لانه لا مشاحة في الترديد بين الكذبين فضلا عن الترديد بين الكذب ومماثله فتامل.

قُلْ ءَأَنْتُمْ أَعْلَمُ أَمِ اللّٰهُ

ته ودوئ ته ووایه چې تاسي بنه خبر یاست یعني په حال د نامورو انبیاؤ او که خدای جل جلاله بنه خبر دی، استفهام لپاره د توبیخ دی او بل دوئ و اقرار ته مجبوره کول دي چې خدای جل جلاله اعلم دی، او دا اقرار چې دوئ

وکړي نو هغه دعوى د دوئ چي ملت د ابراهیم عليه السلام يهوديت په قول د يهودو او يا نصرانيت په عقيده د نصارى و به غلطه ثابته سي، لانه تعالى قال "ماكان ابراهيم يهوديا ولا نصرانياً ولكن كان حنيفاً مسلماً" او يهود او نصارى خو مشركان دي لقولهم عزير ابن الله وعيسى ابن الله.

**پوهنه**:- چي هغه كسان چي پر دين حق د موسى عليه السلام او عيسى عليه السلام وه قبل النسخ هغه تول اتباع د ابراهيم عليه السلام وه في الدين، او هغه مشركين نه وه او خداى جل جلاله ويلي دي "وما انزلت التوراة والانجيل الا من بعده، اى بعد ابراهيم، نو څرنګه امكان لري چي ابراهيم المتقدم بازمنة كثيرة من موسى وعيسى تابعالهما بل هما تابعان له.

**وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهُ مِنَ اللَّهِ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿١٤٠﴾**

او څوك دى لوي ظالم استفهام انكاري دى، يعني تر دغه چا لوي ظالم نسته چي پټ كړي شهادت د خداى جل جلاله چي په تورات كي دا شهادت ثابت او كاتمان يې يهوديان دي.

**پوهنه**:- چي مراد له شهادت الله څخه دادى چي ابراهيم عليه السلام نه يهودي و او نه نصراني بل حنفي ملته و، او دغه رنګه يهود او نصارى و د خداى جل جلاله شاهدي په تورات او انجيل كي په نبوت د محمد ﷺ هم پټه كړې ده، وفي التوارت ينابى مقريخ كاموخ الى وتسماعون، او خداى پاك نه دى غافله د هغو عملو چي دوئ يې كوي يعني په ورځ د قيامت به جزاء وركړي.

تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۖ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٤١﴾

يعني دغه ډله د انبياء عليهم السلام يو امت وو چي ولاړه يعني په مرګ سره او دوئ لره خپل اعمال دي او تاسي لره خپل اعمال دي يعني د يوه سړي څخه د بل د عمل پوښتنه نه کېږي بلکه د هر چا څخه د خپل عمل پوښتنه کېږي .

**پوښتنه**: دا آيت بعينه او بلفظه دمخه تېر سو نو په تکرار کي يې څه حکمت دی ؟

**ځواب**: حکمت مبالغه ده په منع کي يهوديانو چي فخر به يې په آباء اجداد سره کاوه او اعتماد به يې پر دې و چي زموږ حتما په ورځ د قيامت شفاعت کېږي، نو په هم دې سبب پر کفر او عصيان ډېر دلاوره وه کما عرفت من احوالهم واعمالهم، په روح البيان کي وايي چي هارون رشيد چي خليفة المسلمين و چي د حج له سفره څخه فارغه سو نو په کوفه کي يو څو ورځي اقامت پذيره سو د کوفي څخه چي را ووتی بهلول مجنون رحمه الله په لاز کي ورته ولاړ و او ور ناري يې کړې په لوړ اواز درې واره يا هارون! ده د تعجب په لهجه وويل څوك دی چي ماته نعرې وهي يعني داسي لوړ اواز او په بې پرواهي سره، يو چا له ملګرو څخه ورته وويل چي دا بهلول مجنون دی، نو هارون خپل مرکب ودراوه او پرده يې پورته کړه ولي چي د هارون دا عادت و چي د عمومي خلکو سره به يې

خبري وراء الحجاب کولې. نو هارون بهلول ته وویل ما پیژنې بهلول ورته وویل هو! هارون ورته وویل زه څوك یم بهلول ورته وویل ته هغه سړی یې که څوك په مشرق کې ګناه وکړي او ته په مغرب کې یې ستا څخه بې په ورځ د قیامت خدای ﷻ سوال کوي. هارون وژړل او بیا هارون ورته وویل چي ته زما په حال کي څه وایي! بهلول ورته وویل چي پر قرآن ځان عرض کړه چي په جز ثاني کي د قرآن داسي راغلي دي "ان الابرار لفي نعیم وان الفجار لفي جحیم، هارون ورته وویل این اعمالنا! بهلول ورته وویل انما یتقبل عن المتقین. هارون ورته وویل این قرابتنا من رسول الله ﷺ بهلول ورته وویل فاذا نفخ في الصور فلا انساب بینهم. هارون ورته وویل این شفاعة رسول الله ﷺ لنا! بهلول ورته وویل یومئذ لاتنفع الشفاعة الالمن اذن له الرحمن ورضي له قولا. فبکی هارون بکاء شدیدا. او بهلول ته یې وویل چي ته خو په هر څه پوه ډېر عاقل یې خلك دي ولي مجنون بولي! بهلول ورته وویل چي کفارو د قریشو به د رسول کریم ﷺ په باره کي هم ویل "انه لمجنون" جنید بغدادي رحمه الله وایي چي په هر عمل کي د خیر اخلاص په کار دی او اخلاص یو پټ راز دی په منځ کي د رب او د بنده چي نه ملك مقرب په خبره ده چي نوشته یې کړي او نه شیطان په خبر دی چي فاسد یې کړي. وقال الفضیل بن العیاض ترك العمل من اجل الناس ریاء والعمل لاجل الناس شرك .

**درویش وایي**:- د ترك العمل مثال د مخه تېر سو والاخلاص ان یعافیك عنهما، په فتوی تا تارخانیه کي وایي چي که یو سړی عملاً خالصتاً لوجه الله شروع کړي وروسته په زړه کي ریاء ورو ګرځېده نو اول نیت ته اعتبار دی. بعض کارپوهان ددین وایي چي څوك چي عمل د خیر لپاره د ریاء او اوازي کوي مثال یې داسي دی لکه یو سړی چي پر اندازه

د نقود مروجه وو کو دري تراشلي وي او په يوه تيلي، کې اچولي وي او په بازار کې تيلي په شا روان وي، نو خلک چي ورته وګوري وايي به چي ددې سري څونه روپۍ په شا دي، او که دغه سړی دا تيلی د کودرو د بازار دکان ته وروړي يو ګز توکر نه په کېږي، نو ددې سري فائده په دغو کودرو کې صرف او صرف د خلګو خبري دي، دغه رنګه د مرائي فائده په عمل ريايي کې د خلګو خبري دي، د خدای ﷻ په نېز هيڅ ثواب نه لري، په حديث قدسي کې راغلي دي چي خدای ﷻ وايي انا اغني الشرکاء عن الشرک.

**مسئله**: په حديث شريف کې راغلي دي لعن الله من لعن والديه ولعن الله من ذبح لغير الله، امام نووي ﷫ وايي په شرح کې د مسلم چي مراد له ذبح څخه د غير الله دادی چي يا يې پر نامه د بت حلال کړي او يا پر نامه د موسی ﷺ مثلاً انتهى.

**درويش وايي**: چي په قول کې د نووي ﷫ بايد چي سړی د عميق فکره څخه کار واخلي او دا خان ته معلومه کړي چي بت پرستانو د مېلې په وخت کې د ذبح د حيوان لپاره د يو بت يا لات يا عزی وغيرها څرنګه والی يې کوی، تاريخ اسلامي دا شاهدي ورکوي چي بت پرستانو چي د بت پر نامه به يې يو حيوان ذبحه کاوه په ځای کې د الله اکبر به يې ويله باسم اللات مثلاً، نو اوس که يو مسلمان يو حيوان ذبح کوي اوقبل الذبح يې هم نيت وي او هم په خوله دا وايي چي دا پسه مثلاً زه د فلاني شيخ مړه يا ژوندي د روح د خوشحالی لپاره ذبح کوم د روح لپاره له خوشحالی څخه د هر مسلمان مراد دادی چي ثواب يې خدای ﷻ وه فلاني شيخ وروح ته ورسوي، نو په دې صورت فرقه وهابيه او ظاهر الحديث د نني زمانې، او فرقه سلفيه وايي چي دا سړی مشرک دی او

ذبیحه یې مرداره ده، دوئ وايي چې دغه ذبیحه تر ما اهل به لغیرالله لاندې ده.

**درویش وایي**: چې اهلال خو په ایت کې هغه رفع الصوت چې مشرکانو په عین وخت کې د ذبح کوله کمامر مثاله، او دی ذابح مسلمان خو په وخت کې د ذبح یعني امرار السکین داسې وویل بسم الله والله اکبر فقط هیڅ د شیخ نوم نه دی او نه یې په نیت کې سته په عین وخت کې نو ذبیحه ولې مرداره ده، او دی ولې مشرك دی. او بالفرض که یو جاهل مسلمان داسې ووايي په وخت کې د ذبح فلانی پیره را رسیږي هغه سړی بیله شکه مشرك او ذبیحه یې مرداره ده، آیا مسلمانان چې د عاشورې په ورځ پسونه او غوایي مثلا ذبح کوي چې خدای ﷻ یې ثوابونه و روح ته د حسن ؓ او حسین ؓ ورسوي دا نو ټوله مشرکان دی او دا ټولې ذبیحې یې مردارې دي ؟

**پوهنه**: چې د درویش خبره په اهل السنة والجماعة کې ده، او دغه رنګه په ورځ د دولسم (۱۲) د ربیع الاول په لکو پسونه او غوایي د علیه السلام وروح مقدس ته د ثواب د رسېدو له کبله کوي، آیا دغه په لکو مسلمانان ټوله مشرکان ګرځي او ذبیحې یې مرداري دي، که دوئ وايي چې نعم هو! دا خو به ډېره بېوقوفي او غایت دلاوري یې وي د دوئ.

او شیخ ابراهیم مراودي ؒ وايي چې څوك چې په وخت کې د راتلو د باچا یو پسه یا غویی وغیره ذبح کړي علماء د بخارى دا ذبیحه مرداره بولي لانه مما اهل به لغیر الله به، وقال المولى الرافعي ؒ چې دا کار حرام نه دی او نه یې ذبیحه حرامه ده ولي دا خلګ چې دا ذبح کوي لپاره د خوشحالۍ په راتګ د باچا یې کوي فهو کذبح العقیقة لولادة مولود شخص، مثل هذا لا یوجب التحریم آه، قال المولى اسماعیل الحقي في

تفسيره، وعلى هذا يُحمل افعال المسلمين صيانةلهم عن الشرك وضياع الاموال بجعلها ميتة فان الموحد مطح نظره رضى مولاه والتعبد اليه بما تيسر له من القربات آه .

**درويش وايي**:- چي دا اعدل د مذاهبو دی، او تنګ نظري ډلي دا شرک بولي او ذبيحه يې مرداره بولي، درويش وايي چي د دوئ په نظر په عالم اسلام کي ډېرخي لږ کسان له شرکه خلاص دي، وقد صرح ائمتهم بذا لک حيث قالوا بعد سنة ستمائة کل عالم الاسلام صاروا مشرکين الا جزئهم القليل جدا وقد الزمهم احد من علماء اهل الحق رح بان الله کم يغفر من عباده في شهر رمضان قالوا في کل يوم وليلة من الشهر المبارک يغفر مائة الف وفي الجمعة يغفر مثل کل الاسبوع وهکذا الى اخير الشهر المبارک فقال العالم المذکور قل ان المغفورين من المؤمنين ام من المشرکين فقالوا من المؤمنين فقال انکم تقولون ان الامة المرحومة کلهم صاروا مشرکين الا خربکم مع ان خربکم لا يبلغ اليوم مائة الف فالمغفورين الاخر في شهر رمضان کما اعترفت به من اى عبادالله فتحيروا في جوابه .

**پوښتنه**: په مذکوره صدقاتو او ذبائحو کي خو تعظيم د غير الله دی وهذا شرک .

**ځواب**: تعظيم د چا خو حصر په ذبائحو کي نه دی بل تعظيمات په افعالو او اقوالو سره هم کيږي، نو بناءً يو رئيس جمهور د امريکا او يا صدر اعظم د انګريزانو او يا د نورو کافرانو چي ويو اسلامي ملک ته ورځي تو له حکومتي وګړي او سياسي شخصيتونه د طيارو پر ميدان د هغه کافر د تعظيم او احترام لپاره تيار سی ولاړ وي، او هغه کافر چي له

طیارې څخه راکښته سي دوئ توله مراسم د خوش امدید ورته ادا کړي، او کاهي د کافر راتګ د توپو په غړمبوولو سره هم بدرګه کي، آیا دا توله تعظیم د غیرالله چي هغه هم کافر دی نه دی.

**پوښتنه**: آنحضرت ﷺ چي به مسجد ته راغلی او صحابه ﷺ به په مسجد کي موجود وه څوك نه ورته ولاړېدی، او یا چي به له سفره راغلی چا یې لاسونه نه ورمچول تاچي تعظیم د غیرالله رانسي؟

**ځواب**: دا توجیه غلطه ده د سبب د تعظیم د غیرالله دا کارونه نه کېدل، بلکه ذات پاك د آنحضرت ﷺ نهایت متواضع شخصیت او د تکبر د شائبه څخه پاك و، نو څکه ده مبارك صحابه کرام ﷺ له مذکوره کاروه څخه منع کوله، حتی چي په حدیث صحیح کي راغلي دي چي علیه السلام او صحابه کرام ﷺ یو خوا ته روان وه آنحضرت ﷺ پېش پېش نه تلی بلکه د دوئ سره به یو ځای روان و، او د خندق د جوړولو او کیندلو په وخت کي علیه السلام پر خپل مبارکه شا خاوري چلولې او خپل کالي به یې پخپله ګنډله. الی غیر ذالك من تواضعه ﷺ او ددې خبرې دلیل دادی چي په حدیث متفق علیه کي راغلي دي علیه السلام وایي که ما یو څوك امر کولای چي سجده وغیر الله ته وکړي ما به ماینه امر کړې وای چي مېړه ته دي سجده کوي "الحدیث" ولي چي ددې حدیثه څخه دا معلومه سوه چي هر قسم تعظیم د مېړه پر ماینې واجب دی. مګر تعظیم خاص بالله تعالی چي سجده ده، نو د ښځي تعظیم د مېړه دا خو هم لغیر الله دی. او په حدیث کي د حدیبیه چي ډېر طویل حدیث او متفق علیه دی داسي راغلي دي چي علیه السلام چي په نیت د عمرې سره له یونیم سل (۱۵۰) کسو صحابه کرامو ﷺ له مدینې څخه د مکې پر خوا روان سو او مکي والو ده ته اطلاع ورکړه چي موږ تا مکې ته د عمرې کولو لپاره نه

پرېږدو، نو علیه السلام په حدیبیه کې چې نژدې و مکې ته یو بیابان دی خپلې خېمې ودرولې او ټوله احرام بنده هم وه په امید ددې چې ګوندې قریش به اجازه د عمرې کولو را کړي او ددې اجازې غوښتلو لپاره یې عثمان ؓ مکې والو ته واستاوه خو هغه ناکامه راغلی، نو کافران هم یو د بله پرله پسې د خبرو لپاره حدیبیه ته راتله حتی چې یو کافر چې د علیه السلام سره په حدیبیه کې کتلي وه او ډېر بحث یې ورسره کړی و، هغه چې بېرته مکې ته ورغلی نو قریشو ته یې داسې وویل چې زه د کسری او قیصر او نجاشي غوندې د لویو شاهانو دربار ته ورغلی یم او هیڅ رعایت د دغو بادشاهانو مانه دی لیدلی چې دونده تعظیم دي د خپل شاه کوي لکه تابعانو د محمد ﷺ چې د محمد ﷺ کاوه، هغه کافر زیاته کړه چې هر وخت چې به محمد ﷺ نارې توه کړې او یا به یې ګروبی توکړی یو سړي به لاس ورته نیوی او هغه نارې او ګروبی به یې په لاس کې واخستی او په مخ او کالو پورې به یې مښنی الی اخیر الحدیث.

**درویش وايي:**- نو که تعظیم مطلق د غیر الله شرک وایي نو علیه السلام به صحابه کرام ؓ ددغه کارو څخه منع کړي وای ولې چې دا نهایت لوي تعظیم و د علیه السلام چې منع یې نه وکړه، نو دا د علیه السلام اجازه سوه په تعظیم کې د غیرالله هر ډول تعظیم چې وي که قولاً وي که عملاً وي او که اعتقاداً وي ماسوا له تعظیم خاصه چې سجده کول دي ویو چاته.

**سوال:** دمخه تاسي وویل چې علیه السلام نهایت متواضح آه، نو په حدیبیه کې یې ولې تواضع ونه کړه چې صحابه ؓ یې د مذکوره کارو څخه منع کړي وای ؟

**ثواب:** علی زعم انف الکفرة حتی چي هغو ته حقیقت د اخلاص او محبت د صحابه ﷺ د خپل خانه سره وروښیي تاچي کفارو ته دا معلومه سي چي صحابه ﷺ چي خلاف الطبع کارونه د علیه السلام سره کوي نو دده په محبت کي سرښندني ته هم تیار دي .

**درویش وایي:**- چي ددې مسئلې په زړه پوري بیان رساله کي چي پر هامش د خیالي یعني پر بیاض د خیالي چهاپ سوې ده، او بله رساله د بیانات صادقه بادید دستیاب کړئ چي له ډېره وخته چهاپ سوې ده .

## فصل فی شعب الایمان

**درویش وایي:**- چي دا شعب الایمان د وصایاو څخه د فتوحات مکیه ما رانقل کړی دی او له عربي څخه مي پښتنو ته په پښتو ژبه بیان کړی .

(۱) اول د خدای ﷻ توحید یعني لااله الاالله

(۲) اقرار د نبوت د آنحضرت ﷺ دی یعني محمد رسول الله .

(۳) ایمان پر ټولو انبیاء علیهم السلام درلودل یعني آمنت بجمیع الانبیاء کم کانوا .

(۴) ایمان پر ټولو الهي کتابو یعني آمنت بجمیع کتب الله تعالی المنزلة علی الانبیاء .

(۵) ایمان په ورځ د قیامت سره د ټولو ملحقاتو د ورځي د قیامت من الجنة والنار وغیرهما .

(۶) پنځه وخته لمونځونه کول .

(۷) زکوات ورکول (۸) یوه میاشت روژه نیول (۹) پر اغنیاؤ حج کول .

(۱۰) اودس کول (۱۱) د جنابت او د حیض او نفاس غسل کول .

(۱۲) د جمعې د ورځې غسل کول (۱۳) صبر کول پر مصیبتو
(۱۴) شکر کول د خدای ﷻ د نعمت (۱۵) ورع یعنې پېره له خدایه ﷻ
(۱۶) امید و رحمت عامه ته د خدای ﷻ کول (۱۷) حیاء له خالقه څخه کول (۱۸) په امانت کې خیانت نه کول (۱۹) مسلمانانو ته نصیحت کول
(۲۰) فرمانبرداري د اولو الامر کول چې مسلمانان وي او په معصیت یې امر نه کړي (۲۱) ذکر د خدای ﷻ کول (۲۲) خلکو ته تکلیف نه ورکول (۲۳) له مظلومه سره کومك کول (۲۴) او پخپله هم ظلم نه کول
(۲۵) هیڅ څوك تر ځان خوار نه ګڼل (۲۶) غیبت د چا نه کول
(۳۰) د چا کور ته چې ورځې د صاحب البیت څخه اجازه اخستل.
(۳۱) او که نامحرمه ځوانه ښځه په مخه در سي سترګې کښته اچول
(۳۲) له خلکو څخه عبرت اخستل (۳۳) د چا د نصیحت و خبرو ته غوږ نیول (۳۴) که چا بد درسره وکړه په ښه یې دفع کول (۳۵) بدې خبرې لکه ښکنځل نه کول (۳۶) فرج له زنا او لواطت څخه ساتل (۳۷) د ژبې ساتل له بې فائدې خبرو څخه خصوصاً چې ګناه کبیره وي لکه دروغ وغیره.
(۳۸) پر ګناه توبه کول خصوصاً چې کبیره ګناه وي (۳۹) توکل په ټولو کارو کې پر خدای ﷻ کول (۴۰) خشوع او خضوع کول په ټوله احوالو کې خصوصاً په لمانځه کې (۴۱) هغه کار نه کول چې فائده نه وي پکښې
(۴۲) د چا سره چې عهد او میثاق وکړي په هغه سره وفا کول.
(۴۳) او پر ښه کار باندې د چا سره کومك کول (۴۴) پر ظلم او بد کارۍ د هیڅ چا کومك نه کول (۴۵) د خدای ﷻ له مخلوقه سره که څه هم حیوانان وي ښه کول (۴۶) رشتیا خبره کول که څه هم پر خلکو ترخه پرېوځي (۴۷) الامر بالمعروف والنهي عن المنکر (۴۸) د دوو مسلمانانو چې په منځ کې نزاع وي اصلاح یې کول (۴۹) ټولو مسلمانانو ته د خیر

دعاء کول (۵۰) د مشرانو احترام کول (۵۱) علماو ته د عزت په سترګو کتل په ذلت او حقارت نه ورته کتل (۵۲) تولـه حدود د خدای ﷻ ساتل .

(۵۳) د جاهلیت نـارې نـه وهـل لکـه واجبلاه واویلاه (۵۴) پر یو لړ او اندك شي باندې يو له بله سره دښمني نه کول (۵۵) د درواغو شاهدي نه اداء کول، که څه هم د مور یا پلار لپاره وي (۵۶) د چا عیب نه ويـل، نه په حضور کې نه په غیاب کې، مثلا د فلاني څرنګه پیته پزه ده او یا څرنګه بك تندی يې دی وامثال ذالك (۵۷) تولـه لمونځونه په جماعت کـول (۵۸) مسـلمانانو تـه سـلام ويـل او د سـلام ځـواب ورکـول (۵۹) د مسلمانانو یو له بله سره هدایات استول (۶۰) په ښو اخلاقو سره د خلګو سره ژوند کول (۶۱) او د هر چا سر او پټه خبره باید پاش نه سي

(۶۲) خپل خان تـه زوجـه غوښتـل (۶۳) اولاد تـه کـه نر وي او کـه ښځه نکـاح ورکـول (۶۴) محبت د اهـل بیـت د علیـه السـلام (۶۵) عطـر او خوشبويي محب بولل (۶۶) د انصارو سره د علیه السلام محبت کول .

(۶۷) پر مسلمانانو سلاح نه راپورته کول که د رشتیا وي او که د بـازی په شـکل وي (۶۸) د مړي تجهیز او تکفین او پر هغـه د جنـازې لمونځ ګذارل (۶۹) د ناجوړې پوښتنه کول که څه اهل ذمه وي (۷۰) هر شی چي د خان لپاره خوښوې باید پر بل مسلمان يې هم پېرزو ولرې (۷۱) حب في الله او بغض في الله درلودل (۷۲) خدای ﷻ او رسـول کریم ﷺ تر هر چا محبوب ګڼـل (۷۳) د ملکو او انبیاء ؑ هر شی چي دوی د خدای ﷻ له خوا را وړی وي هغـه تولـه منل (۷۴) کـه پـه لار کې ډبـره یـا خوز (اغزی) پروت وي د لارې څخه يې لېرې کول .

قال علیه السـلام الایمان بضع وسبعون شعبة اعـلاه قـول لا الـه الا الله و ادناها اماطة الاذی عن الطريق، والحياء شعبة من الايمان .

**درویش وایي**:- چي پر هر مسلمان لازمه ده چي د قرآن سره محبت ولري او تعلیم او تعلم د کلام الله یې په صحیح ډول او په تدریج کوي .
پوه سه: چي د قرآن مبارك زدکړه د هفتو او د میاشتو خبره نه ده بلکه د کلو خبره ده، افسوس چي طالبان ایساغوجي مثلاً چي یو څو ورقي کتاب دی او د حکیم کتاب دی په درې (٣) میاشتي وایي او قرآن پاك چي هم په حجم غټ کتاب دی او هم د رب العزت کلام معجز دی په یوه میاشت کي وایي معلم او متعلم دواړو ته شرم په کار دی چي کلام الهي او وحي اسماني ته یې قدر د منطقو د یو کوچني کتاب نه دی ورکړی الله صبراً وما احسن ماقیل .

دل پر درد را دوا قرآن — جان مجروح را شفاء قرآن
هر چه جوئي زنص قرآن جو — که بود گنج علمها قرآن
جمیع العلم في القرآن لکن — تـقاصرت عنه افهام الرجال

خاتمه درویش عاصی بانواع المعاصی محمد عبید الله کندهاري ایوبي وایي چي الحمد الله والمنة وعلی سید الرسل الصلوة والتحیة وعلی آله واصحابه ناقلي علوم القرآن الی یوم القیامة دوهم جلد د جزء اول د قرآن پاك تفسیر د روژې د میاشتي د جمعی په ورځ پر (١۴) تاریخ پای ته ورسېدی او ددې توفیق الهی شکر به عاصي په کومه ژبه اداکړي .
شروع د جزء اول یعني جلد اول د تېر کال یعني سنه ١۴٢۴ هـ ق د شوال د (١۵) تاریخ څخه تخمیناً سوې وه نو گویا په (١١) یوولس میاشتي کي دادوه جلده پای ته ورسېده په راتلونکي تفسیرکي د درویش خو دا اراده ده او تقدیر الهی نه دی رامعلوم چي یوه پاره قرآني په یوه جلد کي راولم الارادة من العاصي والتوفیق من الله الباري .

درویش اقتباسا وایی، الهی همه ازتو ترسند، وعبید الله ازخود، زیراکه ازتو همه نیک آید وازوی همه بد، الهی اگر همه عالم بادگیرند چراغ مقبل نشسته نشود ، واگر همه جهانرا آب گیرد، داغ مدبر شسته نشود، برما از قبول خود دري بکشا ، که دیگر بسته نشود ، الهی توانگران بازر وسیم نازند، درویشان بانحن قسمنا سازند. دیگران مست شرابند ومن مست ساقی ازایشان فانی و از من باقی،

**درویش وایي**:- چه عبادات الهیه ازنماز وغیره باید که بحضور دل بحضرت کبریا جلت قدرته باشند واگر بظاهر درنماز هستی ودر دل در بازار میباشی این نماز تو آن نماز نخواهد بود "ان الصلوة تنهی عن الفحشاء والمنکر" آری فریضه نماز خواهد شد ،مگر از فیوضات نماز محروم مانده ، بیت

بروی وریا خرقه سهلست دوخت　　　وگر باخدا درفروشی نیکوست

دل کعبه خداست جل سلطانه پس مراعات این کعبه بطوری شود که درآن بتان ریا وسمعه نباشد واز نجاسات سودائیه پاک بوده باشد، کریمه وطهرا بیتی ، ظاهر آیت بکعبه حجاز است وباطن آیت بکعبه راز است ، خواجه عبد الله انصاری آن معدن رموز الهی قدس سره السامی بدین کعبه دل باین کلمات خجسته اشاره نموده ومیگوید ،ایعزیز حق سبحانه درظاهر کعبه بناکرده که ازسنگ وگل است، ودر باطن کعبه ساخته که از جان ودل است، آن کعبه بنا برداشته ابراهیم خلیل است، واین کعبه بناء افراشته رب جلیل است، آن معمور باثر طاعت مؤمنانست ، واین منظور عنایت رحمن است، آن ازاحجار وخاک مرکب، واین باسرار پاک مرکب، آن بمسجد الحرام معروف، واین بمقصد الآ نام موصوف، وآن مشتمل بر مقام ابراهیم، واین متصل بالهام رب الکریم، و در آن جاهفت طواف

محقق، و در ینجا صد هزار خوف ازحق، آن مقرون بچاه زمزم، واین مشحون بآه دمادم، آنجا تلبیه گویند واینجا تصفیه جویند، ازشرائط او احرام واستیلام است، و از قواعد این احرام و اعتصام است، در آن رکن ایمانی است، و در این کنوز معانیست، آنجا منزل عرفات ومقاماتست، اینجا محل حسنات وکراماتست، آن کعبه حجاز است، واین کعبه رازاست

( ابیات )

| | |
|---|---|
| دره خدا دوکعبه آمد منزل | یک کعبه صورتست ویک کعبه دل |
| تابتوا نی ز یارت دلها کن | کا فز و ن زهران کعبه آمد یکدل |
| اگر فریضه حج بجاءآو ر ید | بکعبه حجاز بروید |
| اگرفریضه معرفت خدای‌جونید | بکعبه دل بیائید |

درویش میگوید که اهل الله بهردو کعبه طواف مینمایند مگر برکعبه صورت در عمر خود یک دو بار وبر کعبه دل هروز صدبار، این وآن رامعمور داشتن کار اهل عرفانست، وفقط آن را معمور ساختن کار عوام است، درویش میگوید چون فقیر را بطریقه علیه نقشبندیه منسوب داشته اند لابدکه بکلمات شانسته مجدد الف ثانی قدس سره السامی، خاتمه جلد ثانی تفسیر ایوبی حنفی را مزین وبرکت افزا بسازم و او در مکتوب (۵۹) که بسید محمود صدور یافته چنان می‌نویسد، مخدوما آدمی را ازسه چیز چاره نیست (۱) علم (۲) وعمل (۳) واخلاص، علم دو قسمی است، علمی که مقصود ازان عمل است که علم فقه متکفل آن است، وعلمی است که مقصود ازان مجرد اعتقاد است، ویقین قلبی است که در علم عقائد وکلام به تفصیل ذکر یافته است بمقتضاي ارائي صائبه اهل سنت وجماعت که فرقه ناجیه اند ونجات بی اتباع این بزرگواران متصور نیست واگر هرسو مخالفت است خطر درخطر است، وبا لجمله علم وعمل

مستفاد از شرع است وتحصیل اخلاص که همچو روح است مر علم وعمل را وابسته بسلوک طریقه صوفیه است، انتهی بحذف کثیر رعایة لحال المستفیدین من هذا التفسیر چراکه بقیه مکتوب از فهم عمومی مستفیدان این تفسیر بالا تر بوده، درویش نه خواست که مستفیدان را درجنجال وقیل وقال اندازند، ودر مکتوب (۵۲) نوشته اند ، مخدوماً مکرماً نفس اماره انساني مجبول است بر حب جاه وریا ست وهمگي همت او ترفع بر اقران است وبالذات خواهان آن است، که خلائق همه بوی محتاج باشند ومنقاد او امر ونواهي او گردند و او بهیچ کس محتاج نباشد، ومحکوم احدي نبود واین درحقیقت دعوی الوهیت است ازوي، و شرکت است بخدای جل سلطانه، بلکه آن بی سعادت بشراکت هم راضي نیست ومیخواهد که حاکم او باشد وبس وهمه محکوم او باشند فقط، در حدیث قدسي امده "عاد نفسک فانها انتصبت بمعاداتی" یعني دشمن دار نفس خود را زیرا که بدرستي آن نفس استاده است بدشمني من، پس تربیت نفس نمودن به تحصیل مرادات او ازجاه وریاست وترفع وتکبر فی الحیقةامداد کردن است بادشمن خدای ﷻ وتقویت نمودن است مر اورا شناعت این امر را نیک باید دریافت، در حدیث قدسي وارد است "الکبریاء ردائی والعظمة ازای فمن نازعنی فی شیئ منهما ادخلته فی النار ولا ابالی" ترجمه حدیث که روایت آن مسلم کرده است چنان است که منی وتکبر چادر من است وبزرگی وبلند قدری لنگ من است پس هرکه منازعت کرد بامن در هیچ یکي ازین دو، در آرم اورا بآتش وپروا ندارم یعني این دو صفت خاصه من است، که هیچ کس را مجال شرکت در آن واتصاف بدان درست نیست، چناچه جود وکرم ومهربانی صفات من اند خلق را نیز ازان نصیب است، وجائز است

وصنف ایشان بدان بطریق مجاز الا این دو صفت که بطریق مجاز وصنف غیر من بدان درست نباشد بمثابه دو جامه که کسی پوشیه باشد پوشیدن دیگر آن را ممکن نبود، درویش میگوید که محبت جاه وریاست وترفع در پیران ناقص وعلماء سوء دیده میشود، اللهم احفظنا من هذه البلیة العظمی بجاه نبیک المصطفی صلی الله علیه وصحبه وسلم تسلیما کثیرا، وبعد از آن امام ربانی مي نویسد دنیایي دنی که مقهوره ومبغوضه حق است، سبحانه وتعالی بواسطه ان است که حصول دنیا ممد ومعاون حصول مراد است نفس است، پس هر که بدشمني مددنماید ناچار لعنت را شاید، وفقر فخر محمدی گشت علیه وعلی آله الصلوت والتسلیمات زیرا که در فقر نامرادی نفس است وحصول عجز که آن مقصود از بعثت انبیاء علیهم الصلوة والتسلیمات وحکمت در تکلیفات شرعیه تعجیز وتخریب همین نفس اماره است شرائع برای رفع هواهای نفسانی وارد شده اند هر قدر که بمقتضایی شریعت بعمل در آید همان قدر هوایی نفسانی رو بزوال آرد، درویش میگوید که از غوائل شیطن رجیم است که بعض عابدان جاهل را بوظائف نافله از قسم نماز وروزه وصدقات وغیرها راغب میگرداند وآن هم به نیت خالص بدون الریاء والسمعة میباشد مگر در عین حال از بعض فرائض یا واجبات یا سنن یا مستحبات بلا ابالی مبتلا میگرداند و اورا بنوافل مذکوره خوشنود میسازد، در همچنان غوائل ابلیس لعین حضرت امام الشریعة والطریقة مجدد الف ثانی در مکتوب (۲۹) که بمخلصان خود ترقیم نموده اند چنین میگوید، مقربات اعمال یا فرائض اند یانوافل، نوافل را درجنب فرائض هیچ اعتبار نیست آدائی فرضي از فرائض در وقتی از اوقات به ازادانی نوافل هزار ساله است اگر چه بنیت خالص اداء شود هر نفلیکه باشد از صلوة، زکوة، صوم، وذکر

وفکر وامثال اینها، بلکه گویم که رعایت سنتی از سنن و ادبی از آداب در حین ادابی فرائض نیز همین حکم دارد منقول است که روزي امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق ﷺ نماز بامداد بجماعت گزاردند بعد از فراغ از صلوة درقوم نگاه کردند شخصی را از اصحاب خد (سلمیان بن ابی حثمة) در آن وقت نیافتند فرمودند که فلانی بجماعت حاضر نشده حاضران عرض کردند که او اکثر شب بیدار میباشد یحتمل که در این وقت خواب برده باشد فرمودند که اگر تمام شب خواب میکرد ونماز بامداد را بجماعت مي گزارد بهتر بود درویش مگوید که حدیث مذکوره امام مالک ﷺ در موطاء اورده لکن الفاظ ونظم حدیث که در مشکوة مذکور است چنان است عن ابی بکر بن سلیمان بن ابی حثمة قال ان عمر بن الخطاب ﷺ فقد سلیمان بن ابیْ حثمة فی الصلوة الصبح (یعني برای نماز بامداد نه آمده بود) وان عمر ﷺ غدا الی السوق (یعني عمر ﷺ وقت طلوع آفتاب بازار رفتند) فمر علی الشفاء ام سلیمان (پس گزشت عمر ﷺ بر مادر سلیمان مذکور که شفا فام داشت) فقال عمر ﷺ لم ار سلیمان فی الصبح (پس گفت عمر که ما ندیدم سلیمان را درنماز بامداد) فقالت بات یصلی فغلبته عیناه (شفاء گفت که او تمام شب در نماز بوده یعني نوافل و تهجد میخواند پس غالب امده بر او چشم او یعني خواب اورا ربود) فقال عمر ﷺ لان اشهد صلوة الصبح فی جماعة احب الی ان اقوم لیلة (عمر فرمود که هر آینه که من حاضر شوم نماز صبح را در جماعت محبوب است برای ما ازینکه تمام شب در نماز باشم) درپش هیچ مدان میگوید که روایتکه مجدد ﷺ آورده مخالف روایت مشکوة که در مشکوة آمده ومذکورشد ودر صحاح حدیث هم بمهمان لفظ که مشکوة آورده مذکور است پس روایت که مجدد علیه الرحمة آورده شاید

حاصل حدیث مذکور بوده باشد، وآن که بعض عزیزان گفته که مجدد علیه الرحمة نقل حدیث مذکور بالمعنی کرده باشند بسیار بعید است زیراکه الفاظ حدیث بسیار مخالف المعنی هستند از الفاظ حدیث که مجدد ﷫ آورده ودر نقل حدیث بالمعنی اتحاد معنی شرط گردانیده اند، درویش پس میگردد بمکتوب امام ربانی ﷫ پس رعیات ادبی واجتناب از مکروهی اگر چه تنزیهی باشد فکیف که تحریمی باشد (یعنی ترک نماز جماعت که آن نزد حنیفیان واجب است نظراً الی قوله تعالی "واركعوا مع الراكعين، كما في فتح القدير" او یا سنت موکدات که در حکم واجب است کما هو المشهور فی کتب الفقه الحنفی، بمراتب از ذکر وفکر مراقبه وتوجه شیخ بهتر است آری این امور (یعني ذکر وغیره) با آن رعایت و اجتناب (یعنی از مکروهات) اگر جمع کنند فقد فاز فوزا عظیما، وبدونه خرط القتاد، مثلا تصدق بدانگی در حساب زکوة همچنانکه از تصدق جبال عظام از ذهب بطریق نفل بمراتب بهتر است، رعایت ادبی از آداب در تصدق دانگ زکوة مثلا آنرا بفقیر قریب دادن نیز بمراتب ازان بهتر است ، پس نماز خفتن را در نصف اخیر از شب گذاردن وآن تاخیر را وسیله تاکید قیام اللیل یعني تهجد ساختن بسی مستنکر باشد، چه نزد حنفیه رضوان الله تعالی عنهم اداء نماز خفتن در آن وقت مکروه است

فی البحر و افاد ان التاخیر الی نصف اللیل لیس بمستحب وقالوا انه مباح والی مابعده مکروه، وقال فی البحر عن القنیة تاخیر العشاء الی مازاد علی نصف اللیل مکروه کراهة تحریم آه، قال المجدد ﷫ وظاهر ازین کراهت کراهت تحریمه اراده دارند، زیرا که اداء نماز خفتن را تانصف اللیل مباح داشته اند واز نصف آن طرف مکروه گفته اند

پس مکروهی که مقابل مباح است مکروه تحریمي است، ونزد شافعیه جائز نسیت، پس بوسطه قیام اللیل وحصول ذوق وجمعیت خاطر در آن وقت مرتکب این امر گشتن بسیار مستکره است، از برای این غرض تاخیر وترهم کافی است و آن تاخیر مستحب است، هم وتر در وقت نیک اداء میابدوهم غرض قیام اللیل وبیداری وقت سحر میسرگردد، پس ترک این عمل باید نمود و صلوة گزشته را قضاء باید آورد، وایضا آب مستعمل که ازاله حدث بآن شده باشد یا به نیت قربت استعمالش کرده باشند در وضوء، تجویز آن نکنند که مردم آن را بخورند که آن آب نزد امام اعظم نجس مغلظ است وفقهاء رح منع خوردن آن آب کرده اند، وخوردن آن مکروه داشته اند ای بقیه آب وضوء یعنی در ظرف آن شفا گفته اند، اگر از اعتقاد کسي طلب نماید از آن باقی بدهند، واین فقیر را در دهلی درین دفعه این ابتلاء واقع شده بود که بعض از یاران را در واقعه نموده بودند یعنی در خواب یا کشف وغیره که آب مستعمل وضوء فقیر بخورند والا ضرر عظیم لاحق خواهد شد هر چند دفع کرده فائده نکرد، وبکتب فقه رجوع نمود مخلصی پیدا شد که اگر بعد تثلیث غسل نیت قربت نکند در مرتبه چهارم آب مستعمل نمی شود باین حیله تجویز نموده آب غسل چهارم به نیت قربت بخوردنش داد .

اندکی پیش تو گفتم　　　غم دل ترسیدم

که دل ازرده نه شوی ورنه سخن بسیار است ورزقناالله سبحانه وایاکم کمال اتباع حبیبه علیه وعلی آله والصلوة والتسلیمات، انتهی المکتوب الشریف باختصار کثیر والله سبحانه تعالی اعلم وعلمه تعالی احکم .

## د علامه عصر شیخ التفسیر والحدیث جامع المنقول و المعقول محسود الاقران فخر افغان

# حضرت مولانا محمد عبیدالله ایوبيؒ

## القندهاري النقشبندي السلیمانخیلي مدفیوضه العالیه

## ترجمه او لنډه تاریخچه او سوانح عمري او د مخلصانو لپاره پیژندګلوي.

دده نوم محمد عبیدالله دی او ابوالفضل یې کنیت دی او ایوبي یې تخلص دی په عقایدو کې سُني ماتریدي دی او په فروعو کې حنیفي مذهبه دی او په طریقت کې نقشبندي مجاز دی او په قوم سلیمانخېل دی او وطن یې کندهار دی.

او دی د عالم متقی الحاج محمد ایوب زوی دی او ده د پنجشنبې په ورځ د ماسپښین تر لمانځه وروسته پر ۱۵ د ذی القعدة الحرام ۱۳۴۳ هجري قمري د فاشمول په قریه کې پر نابوده دنیا سترګې روښې کړې دي او پلار یې یو تقواداره عالم و او په طریقه نقشبندیه کې مجاز و.

او د شارح لـه خولې چې زما پلار زما پر تعلیم زده کړې ډېر حریص و، حتی سره د ډېره صغر سنه یې زه پر سبق مجبور کړی وم. شارح وایي چې ځینې کتابونه د فقې شریفې او بعضي کتابونه د علم صرف او نحو ما پر مرحوم پلار وویله او بیا زما په زړه کې په برکت د دعا د والد مرحوم دا راسخ سو چې زه د وطنه او کوره ولاړ سم او په بې غمه زړه خپل تعلم او زده کړې ته دوام ورکړم الی ماشاء الله تعالی.

هغه و چې زه د کندهار وطن مالوف او د کور څخه د بلوچستان علاقې ته راغلم چې هغه زمین په هغه وخت کې د انګریزانو تر تسلط او حکومت لاندې و، نو په بلوچستان پښین کې مې پر جید متقي عالم مولوي تیمور شاه صاحب مرحوم باندې بعضي کتابونه د حکمت او عقائدو وویل، الغرض دوه کاله مې دلته تېر کړه. د شارح د بیان سره سم بیا زه باعث کړم صدق همت پر دې باندې چې ولاړ سم هند ته او په هند کې اجمیر ته چې هلته علامة الزمان الاستاذ الکلیة علماء الهند والافغان المولوي عبد الله الکندهاري المرحوم د مدرسه حنفیه صوفیه باني او سر پرست او مدرس اعلی و او دی مرحوم په دغه وخت کې معمر او

کلان ساله عالم و، او ده ته د اطرافو څخه لکه افغانستان، بلوچستان، پېښور، ازاد قبائل او د هند د ډېرو لېرو سيمو څخه جيد جيد طالبان راتله او د درياب څخه د علم دده مبارك د استعداد سره برابر يې استفاده کول، او ده مبارك د طالبانو سره عموماً، او د پښتنو طالبانو سره خصوصاً ډېر شفقت کوی.

د شارح د خولې چې زه اجمير شريف ته ورغلم او د جناب مذکور په مدرسه کې داخل سوم پس له څو مدې تعلم څخه دده په جناب کې ماته يوه لويه منزله حاصله سوه" وذالك فضل الله يوتيه من يشاء "

او شارح وايي چې ماپه خدمت کې د حضرت المرحوم درې کاله تېر کړه او ښه سليسه اردو ژبه مې هم زده کړه، او هلته ما کتب د تفاسيرو او رياضي او علم ادب او د متقدمينو د منطق بعض کتابونه لکه شرح المطالع او د حکماؤ متقدمينو بعض کتابونه لکه شرح الاشارات وغيره وويله .

پس له درې کاله انګليسانو د هند بر اعظم پر دوو برخو تقسيم کړی يعني پاکستان او هندوستان چې په دې سبب په منځ کې د مسلمانانو او هندوانو لويه فتنه او قتل و

قتال منځ ته راغلی او اجمیر شریف په حصه کي د هندوانو سو، نو هندوانو پر اقلیت د مسلمانانو د اجمیر شریف توره د ظلم د تېکي وکښل او په زرو مسلمانان یې په شهادت ورسول آخر حضرت الاستاذ المرحوم سره د څو پاته پښتنو طالبانو د پاکستان وهجرت ته مجبور سو، هغه و چي استاذ محترم بلوچستان د کوټي ښار ته راغلی چي هلته دده مرحوم د یوه شاګرد حضرت المولوي عبد الغفور صاحب مدرسه په نامه د مظهر العلوم په شالدره کي وه چي تر اوسه هم سته او په هغه مدرسه کي یې وخپل درس ته ادامه ورکړه.

شارح وایي چي ما لږ زمانه په دغه مدرسه کي تېر کړه او بیا مي د حضرت الاستاذ څخه اجازه واخسته او لاهور ته ولاړم چي په لاهور کي یو معمر عالم شیخ الحدیث والقرآن وسائر العلوم النقلیة والعقلیة مولانا مهر الله المرحوم په یوه مدرسه کي چي په اچهره کي چي د لاهور ښار ته نژدې ځای دی واقع وه شیخ الحدیث و، او زه هم په هغه مدرسه کي داخل سوم او د مرحوم د فیضه مستفیض سوم او د احادیثو کتابونه او بعضي د فقهي شریفي کتابونه او نور باقي مانده کتابونه مي پر دغه لوي استاذ المرحوم باندي

وويله، او د دوو كالوڅخه وروسته د ټولو درسي كتابو څخه فارغه سوم او د تحصيل شهادت نامه د استاذ المرحوم له خوا راكړه سوه. او زما عمر په دې وخت كي تخميناً پنځه ويشت (٢٥) كاله و، او بيا حضرت الاستاذ المرحوم ماته وظيفه د مدرس ثاني پخپله مدرسه كي وسپارله. يو كال چي مي درس وكړى حب الوطن والاقرباء مي د امن ګير سو او په اجازه د استاذ المحترم د لاهوره څخه كندهار ته راغلم، اول درس مي يو كال د موسى خان په جامع مسجد كي چي په هرات دروازه كي دى وكړى، او بيا زنګي اباد ته ولاړم يو كال مي هلته درس وكړى او بيا سنځري ته راغلم چي د يوې جامع قريې نوم دى ښار ته نژدې دولس (١٢) كاله مي دلته درس ته ادامه وركړه، او د سنځري د استوګني په وخت كي زه د شيخ كامل جامع الكمالات السيد الجيد الجواد مولانى عبد الغني المرحوم المشهور په بابك صاحب كدني مريد سوم او پس له يوه كاله جد جهد ماته د خلافت د طريقه نقشبنديه خرقه دده بابك المرحوم له خوا راكړه سوه، او ما د سنځري څخه په سبب د بعض اقتصادي مشكلاتو خوش آب ته هجرت وكړى چي هغه هم د كندهار ښارته نژدې يو جامع قريه ده،

او هلته مي پنځه کاله درس وکړی او بیا د خوشاب څخه کندهار ته ولاړم، او د ملا علم اخند په کلي کي مي په یوه جامع مسجد کي درس شروع او دیارلس (۱۳) کاله مي هلته درس وکړی، پس له هغه انقلاب د حزب الخلق په کومك د روس د افغانستان پر پاکه خاوره مسلطه سو او د مسلمانانو بندي کول او وژل یې شروع کړه، او عمومي مسلمانانو ونږدې اسلامي مملکتو لکه پاکستان او ایران ته هجرت وکړی او بعض مسلمانان نورو مملکتو ته ولاړه خصوصاً هغه وخت چي روسان مستقیما په لویه پیمانه داخل سوه، او د مسلمانانو له خوا د حزب الخلق او د هغو د معاونانو یعني روسانو سره جهاد اعلان سو، نو په هم دغه وخت کي زه د خپله عیاله سره نږدې اسلامي ملك پاکستان ته راغلم او په کوټه کي مي اقامت اختیار کړی زمانو مي مزدوری کولې او ما خپل درس ته په ډکه پیمانه جریان ورکړی حتیٰ چي په سوو طالبان به دورځي سبقانو ته راتله او په یوه کتاب به پنځوس شپېته تر سلو پوري شریکان وه .

او شارح وایي چي ما په فارغه وخت کي پر بعضي درسي کتابو حاشیي هم کولې چي هغه کتابونه او رسالې تر

څلوېښتو اوس زياتي دي او اکثره يې پر منظر عـام موجود او مقبول دي، الا عند الحاسدين الذين هم الحق ناکبون.

ناشر الکتـاب وايـي چـي شـارح محتـرم همېشـه د سياسـي ډلو څخه بر کناره وو او دی، او بعضـي حاسـدان او جـاهلان د تعصب قـومي د لاري يـا د تعصب علمي د لاري پر شـارح محتـرم قسـما قسـم بهتـانونـه ويلـه او واي يې لکـن بيـا هـم شارح محترم په هغو کي فکر نه واهه او دا آيت يې مد نظر و

﴿وتعز من تشاء وتذل من تشاء بيدك الخير﴾ د شارح د هجرت څخه اوس درويشت (۲۳) کالـه کېږي، د حاسـدانو حسد پر ده هيڅ تاثير نه دی کړی او نه يې عزت ور کم کړی دی او نه يې رزق ورکم کړی دی حتی د کوټي په ښار کي پرته د استوګني تر سرايه خپل جامع مسجد هم جوړ کړی دی، داوه د حضرت شارح محترم مختصر حالات.

والسلام

محمد فضل الحق حقاني تلميذه

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو. د دعا په هيله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

# د تفسیر ایوبي پښتو جلد دوهم فهرست

بسم الله الرحمن الرحيم

اَلْحَمْدُللهِ وَحْدَه وَالصَّلوةُ وَالسَّلَامُ عَلى مَنْ لاَ نبىَّ بَعْدَه

**محترمو لوستونکو !**

که غواړئ چي د مکتبة القراءت په اهدافو او تګ لارو باندي خان خبر کړئ او دا چي مکتبة القراءت څه غواړي !

ددې يوې څانګړي اداري اهداف او مقاصد دادي چي ومسلمانانو ته د غزلو، بې معنا او بې مقصدو قصواو ناولونو او د ليلا او د مجنون د ترانو پر ځاى ښه معياري او ديني معلومات لاس ته ورسي .

څرنګه چي موږ ولېدل چي اکثره مسلمانانو به د سفر پر وخت د خانه څخه جوړي سوي قصې لوستلې چي هغو به په حقيقت کي هيڅ يو مصداق هم نه درلود، نو که له يوې خوا د وخت ضائع کېدل وه خو له بله لوري به يې بيا هغه لوستونکي ته هم يوه منفي مفکوره ورپه برخه کول .

ځکه نو يواځنى اداري مکتبة القرات والتجويد کوئټې د الله تعالى په نصرت او مدد پخپلو نشرياتو پيل وکړ، تر څو چاپېريال او عامو وګړو ته داسي توکي پلاس ورکړي چي د وخت په ښه توګه د تېرېدو سره سره يوه ښه مفکوره هم ورپه

برخه سي، چي په دې لړ کي الحمدالله زموږ اداره د چاپيريال د ګڼو لپاره ځو علماء، پوهان او د وخت مخور اديبان او ژباړونکي په کار اچولي دي. تر ځو د چاپيريال د عقائدو او نظرياتو د ساتلو په اړه ګامونه اوچت کړي.

او همدارنګه دا اداره ده چي يواځي او يواځي پر خپلو ژباړو، ليکنو او ښه چاپ باندي باور لري که دا ووايو چي يواځي په ټوله پاکستان او افغانستان کي دا يوه ازاده اداره ده چي ددينې علومو د خپرولو هوډ لري. او همدا اداره ده چي ډېر کتابونه يې هم دا اوس وخپرولو ته چمتو کړي دي.

مکتبة القراءت والتجويد يواځنۍ اداره ده چي تر ټولو خپرندو يو ادارو له مخه يې د قرآن مجيد د يوه اهم علم "علم التجويد" ټوله واړه او لوئ کتابونه په ښه ليك، ښه کاغذ، ښائسته پوښونو پوښلي وچاپ ته وسپارل.

نه يواځي علم التجويد او قراءت بلکي پر علم فقه باندي يې يو نور الايضاح په درې جلدونو باندي مشتمل يواځنی کتاب چاپ کړ کوم چي د وخت وټولو مسلمانانو ته يې ګټه ورسول.

همدارنګه قدوري صلوة، قدوري نکاح، زبدة الفقه، آسانه فقه او داسي نور، خو يواځنی کار چي هم دا اوس ورته چمتو دي هغه د تفسير ايوبي کار دی چي الحمدالله دوه جلده يې ستاسو په مخ کي او پر دريم جلد باندي يې کار شروع دی.

# يو بل ويار

هم دا اداره ده چي ومسلمانانو ته يې د علم تفسير په دنيا کي پر يوه بل تفسير **معارف القرآن** باندي هم قلمونه را اوچت کړي دي چي ان شاء الله ډېر ژر به وتکميل ته ورسېږي

# خبرتيا

لکه څرنګه چي مو وويل چي دا اداره پر خپلو نشرياتو، ليکنو، ژباړو او خپرونو باندي باور لري. نو پکار ده چي د ادارې ودې تګل ته د وياړ په سترګه وکتل سي، او که څوك زموږ د ادارې ودې پاك تګل ته په کږه سترګه وګوري نو د عواقبو ذمه به يې پر خپل غاړه وي ولي چي اداره بيا پخپل هوډ کي ازاد لاس لري .

Scanned by CamScanner

د حضرت مولانا محمد زکریاء علیه الرحمه یو
مشهور او ګټور کتاب یعني

# فضائل اعمال

چي د وعظ او تقریر لپاره د هر پیش امام لپاره ضروري دی ولي چي په دې کتاب کي پر مختلفو اعمالو باندي ښه او په زړه پوري بحثونه سته چي د قرآن او احادیثو په رڼا کي ورباندي روښنایي اچول سوې ده.

له اردو څخه په خوږه پښتو د وخت د تکړه او ځوان عالم قاري محمد فضل حق حقاني په خوږې او روانې ژباړې ژباړل سوی دی او ډېر ژر به مینه والو ته وړاندي سي ان شاء الله

Scanned by CamScanner

تفسير ايوبي حنفي ۲ ټوک
د نصيراحمد احمدي لخوا
سکين او pdf سو.
تاريخ. ۸-۴-۱۳۹۹
واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹
د دعا په هيله احمدي!